# کشف الباری

عما فی

# صحیح البخاری

## کتاب البیوع

**تالیف ←** صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مدظله العالی
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی

**ترتیب وتحقیق ←** مولانا مفتی محمد مزمل سلاوت صاحب

**ترجمه ←** مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

**خصوصیات**

**جلد ۵**

① داحادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ دګرانو لغاتو لغوی، صرفي او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفي ترجیح
⑨ د حدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې داحدیث په کوم کوم ځائې کښې دې

**خورونکې** فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست مضامین

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۴۰-کتاب السلم



## ۱-باب: السلم فی کیل معلوم

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## ۳ - باب: السلم إلى من ليس عنده أصل

## ۴ - باب: السلم في النخل

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۸ - باب: السلم إلى أن تنتج الناقة

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۴۰ - کتاب الشفعة



### ۱ - باب: الشفعة فی مالم یقسم، فاذاوقعت الحدود فلاشفعة



### ۲ - باب: عرض الشفعة علی صاحبها قبل البیع

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۲۴ - کتاب الاجارة



## ۱ - باب: استئجار الرجل الصالح



## ۲ - باب: رعی الغنم علی قراریط

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۱۵ - باب: هل يؤاجر الرجل نفسه من مشركٍ في أرض الحرب



## ۱۶ - باب: ما يعطى في الرقية على أحياء العرب بفاتحة الكتاب

## ۴۴ - کتاب الکفالة



## ۱ - باب: الکفالة في القرض والدیون بالابدان وغیرها

## ۳ - باب: من تکلف عن میتٍ دیناً، فلیس له أن یرجع

## ۴ - باب: جوار أبی بکر فی عهد النبی ﷺ وعقده

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۵ - باب: الدين



## ۴۵ - کتاب الوکالة



## ۱ - باب: وكالة الشريك في القسمة وغيرها

## ۲ - باب: إذا وکل المسلم حربیًا فی دار الحرب، أو فی دار الاسلام جاز

که څوک مسلمان دَ دار الحرب باشنده په دار الحرب یا دار الاسلام کښې وکیل جوړ کړی

## ۵ - باب: وكالة الشاهد والغائب جائزة



## ۶ - باب: الوكالة في قضاء الديون

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۱ - باب: فضل الزرع والغرس إذا أكل منه



## ۲ - باب: ما يحذر من عواقب الاشتغال بآلة الزرع، أو مجاوزة الحد الذی أمر به

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۱۴ - باب: إذا قال رب الارض: أقرك ما أقرك الله. ولم يذكر أجلاً معلومًا فهما على تراضيهما



## ۱۵ - باب: ما كان أصحاب النبي ﷺ يواسي بعضهم بعضًا في الزراعة والثمرة

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۱۷ - باب: ماجاء فی الغرس



## ۴۷ - کتاب المساقاة، الشرب



## ۱ - باب: فی الشرب

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ٣-باب: من قال: إن صاحب الماء أحق بالماء حتى يروى، لقول النبى ﷺ (لايمنع فضل الماء)

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۴- باب: من حفر بئرًا فی ملکه لم یضمن



## ۵- باب: الخصومة فی البئر والقضاء فیها

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

**یووضاحت:**

په دے تقریر کښے چه مونږ د صحیح بخاری کومه نسخه د متن په طور غوره کړے ده. په هغے باندے د ډاکټر مصطفی دیب البغا تحقیقی کار شوے دے. ډاکټر مصطفی دیب په احادیثو باندے د نمبرو لګولوسره د احادیثو د مواضع متکررۀ د خودلو التزام هم کړے دے. که یو حدیث روستو راتلونکے وی. نو د حدیث په آخر کښے په نمبرو سره د هغے خودنه کوی. یعنی چه په دے نمبر باندے دا حدیث راځی. اوکه حدیث تیر شوے وی. نو د نمبر نه وړاندے ‹‹ر›› لګوی. یعنی دے نمبر طرف ته رجوع اوکړه.

# فهرست رجال الحدیث

| نمبر | اسماء المترجم لهم | کتاب | باب | صفحة |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | عمرو بن زرارة بن واقد الکلابی ابومحمد النیسابوری رحمه الله تعالیٰ | کتاب السلم | باب السلم فی کیل معلوم | ۶۱ |
| ۲ | عبدالله بن کثیر الداری المکی، ابو معبد القاری، مولیٰ عمرو بن علقمة الکنانی رحمه الله | ایضاً | ایضاً | ۶۲ |
| ۳ | ابوالمنهال عبدالرحمن بن مطعم البنانی المکی | ایضاً | ایضاً | ۸۸ |
| ۴ | محمد بن عبدسلام بن الفرج السلمی مولاهم ابوعبدالله البخاری البیکندی رحمه الله | ایضاً | ایضاً | ۶۵ |
| ۵ | صدقة بن الفضل ابوالفضل المروزی رحمه الله | ایضاً | باب السلم فی وزن معلوم | ۳۰۲ |
| ۶ | عبدالله بن ابی المجالد الکوفی رحمه الله | کتاب السلم | ایضاً | ۷۰ |
| ۷ | ابوالبختری سعید بن فیروز کوفی الطائفی رحمه الله | ایضاً | باب السلم الی من لیس عنده اصل | ۷۸ |
| ۸ | عمرو بن الشرید بن سوید ابوالولید الطائفی | کتاب الشفعة | باب عرض الشفعة علی صاحبها | ۱۰۲ |
| ۹ | ابورافع القیطی رضی الله عنه | کتاب الشفعة | ایضاً | ۱۰۳ |
| ۱۰ | ابوعمران عبدالملک بن حبیب الازدی الجونی البصری رحمه الله | کتاب الاجارة | ای الجوار اقرب | ۱۰۵ |
| ۱۱ | یعلی بن مسلم بن هرمز المکی رحمه الله | ایضاً | باب اذا استاجر اجیرا الخ | ۱۲۴ |
| ۱۲ | یوسف بن محمد العصفری الخراسانی نزیل البصرة | ایضاً | باب اثم من منع اجر الاجیر | ۱۲۸ |

| نمبر | نام | کتاب | باب | صفحہ |
|---|---|---|---|---|
| ١٣ | كثير بن عبد الله بن عمرو بن عوف المزنی رحمه الله | ايضا | باب اجر السمسرة | ١٤٣ |
| ١٤ | ابو المتوكل على بن داود رحمه الله | ايضا | باب ما يعطى فى الرقية | ١٥٤ |
| ١٥ | محمد بن جحادة اودي الكوفى ايامى | ايضا | باب كسب البغى والاماء | ١٦٤ |
| ١٦ | على بن حكم البنانى | ايضا | باب عسب الفحل | ١٦٦ |
| ١٧ | محمد بن حمزة ابن عمرو اسلمى الحجازى رحمه الله | كتاب الكفالة | باب الكفالة فى القرض والديون الخ | ١٨٥ |
| ١٨ | اشعث بن قيس بن معدى كرب بن معاوية كندى رضى الله عنه | ايضا | ايضا | ١٨٧ |
| ١٩ | يوسف بن يعقوب بن سلمه الماجيشون رحمه الله | كتاب الوكالة | اذا وكل المسلم حربيا فى دار الحرب او فى دار الاسلام جاز | ٢١٨ |
| ٢٠ | صالح بن ابراهيم بن عبد الرحمن بن عوف القرشي الزهرى المدنى رحمه الله | ايضا | ايضا | ٢١٩ |
| ٢١ | عقبة بن عبد الغافر اذدى العوذى رحمه الله | كتاب الوكالة | اذا باع الوكيل شيئا فاسدا فبيعه مردوده | ٢٢٩ |
| ٢٢ | نعيمان بن عمرو بن رفاعة الانصارى رضى الله عنه | ايضا | باب الوكالة فى الحدود | ٢٥٧ |
| ٢٣ | عبد الله بن سالم اشعرى رحمه الله | كتاب المزارعة | باب ما يحذر من عواقب | ٢٧١ |
| ٢٤ | ابو امامة الباهلى رحمه الله | ايضا | الاشتغال بآلة الزرع الخ | ٢٧٢ |
| ٢٥ | حنظله بن قيس بن عمرو رحمه الله | ايضا | باب | ٢٨٨ |
| ٢٦ | عمرو بن عوف المزنى رحمه الله | ايضا | من احيا ارضا مواتا | |
| ٢٧ | ظهير بن رافع رحمه الله | ايضا | باب ما كان من اصحاب النبى يواسى بعضهم بعضا فى الزراعة والثمرة | ١٤٣ ٣٢٦ |
| ٢٨ | ربيع بن نافع رحمه الله | ايضا | ايضا | ٣٢٨ |
| ٢٩ | كثير بن كثير رحمه الله | كتاب المساقاة | من راى ان صاحب الحوض الخ | ٣٨٧ |

بسم الله الرحمن الرحیم

# ٤٠- کتاب السلم

**دَ ماقبل کتاب سره مناسبت:-** امام بخاری رحمه الله دَ کتاب البیوع نه دَ فارغیدو نه پس کوم چه دَ بیوع په عام احکامو باندې مشتمل وو اوس دَیو خاص قسم بیع، بیع سلم احکام ذکر کوی.

**دَ بیع سلم مشروعیت:-** دَ بیع سلم مشروعیت دَ کتاب الله، سنت رسول الله ﷺ دَاجماع او عقل نه ثابت دی

**دَ کتاب الله نه ثبوت:-** ① ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ ﴾ (البقرة: ٢٨٢)

امام قرطبی رحمه الله دَدې آیت مداینه باره کښې دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما قول نقل کوی چه هذه الآية نزلت في السلم خاصة یعنی دا آیت خاص توګه باندې دَبیع سلم دَاجازت دَپاره نازل شوې دې.(1)

**دَ احادیث مبارکه نه ثبوت:-** دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت کوم چه امام بخاری رحمه الله او امام مسلم رحمه الله نقل کړې دې: عن ابن عباس قال قدم رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم المدينة وهم يسلفون في الثمار السنة والسنتين والثلاث فقال من أسلف في شيئ فليسلف في كيل معلوم ووزن معلوم إلى أجل معلوم (متفق عليه) (2) یعنی حضوراکرم ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو، دَمدینې خلقو به په میووکښې دَ یو دوه او دریو کالو دَپاره بیع سلم کوله نو حضوراکرم ﷺ اوفرمائیل څوک چه په یوڅیز کښې بیع سلم کوی نو ناپ تول او موده مقرر کولو سره دې سلم کوی.

**اجماع امت:-** او دَامت هم دَدې په جواز او اباحت باندې اتفاق دې صرف دَ حضرت سعیدبن مسیب رحمه الله نه انکار نقل دې.(3)

بل عقل هم دَدې خبرې تقاضا کوی چه بیع سلم جائز کیدل پکار دی ځکه چه اکثر داسې کیږی چه مبیع فوری طریقه باندې نه شی حاضرولې نو که چرې دَ دې دَپاره اجل مقرر کړې شی نو څه بدیت نشته چونکه کوم وخت چه هغه مبیع موجود وی نو ډیر ځل داسې کیږی چه هغه وخت مشتری سره پیسې نه وی. او کله په دغه وخت کښې بائع طرف نه مبیع ته سخت حاجت وی او فی الحال په مبیع باندې قدرت هم یقینی وی نو هغه خپل دغه حاجت دَ بیع سلم په ذریعه پوره کولې شی.(4)

---

(1) الجامع لاحکام القرآن (تفسیر قرطبی) :٣٥٩/٣ دارالکتاب العربی بیروت ومعارف القرآن للشیخ الکاندهلوی رحمه الله :٥٣٧/١ مکتبة المعارف شهدادپور.

(2) صحیح البخاری کتاب ٣٥ الباب: رقم الحدیث ٢٢٣٩ وصحیح مسلم کتاب: ٣٢ باب:٢٥ رقم: ١٦٠٤.

(3) فتح الباری: ٥٣٩/٤ قدیمی.

(4) فتح القدیر: ٦٧/٧ عثمانیه کوئټه.

**دَ سلم لغوی او اصطلاحی تعریف**:- سلم او سلف دواړه په یووزن اوپه یوې معنی دی. سلم دَ حجاز والو لغت دې او سلف دَ عراق والو.(١) دَ تقدیم په اعتبارسره دې بیع ته سلف اودَ تسلیم په اعتبارسره سلم وئیلې شی. په اصطلاح کښې بیع سلم بیع آجل بعاجل ته وئیلې شی یعنی په دې کښې دَ آجل بیع دَ عاجل سره کیږی.(٢) مبیع آجل وی او په اجل مقرربانديې مشتری ته حواله کولې شی او ثمن مشتری په وخت دَعقد کښې بائع ته اداکوی. په بیع سلم کښې مشتری ته رب السلم او ثمن او قیمت ته راس المال بائع ته مسلم الیه او مبیع ته مسلم فیه وائی.

# ١- بَاب: السلم فی کیل معلومٍ

## باب مقرر کولوسره عقد سلم کول

**دَ ترجمة الباب مقصد**:- دَ ترجمة الباب مقصددادې چه که مسلم فیه چرته کیلی څیز دې نودَدې دَ کیل علم هم ضروری دې.(٣)

[حدیث باب ۲۱۲۴] (٤)- حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَثِيرٍ عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الْمَدِينَةَ، وَالنَّاسُ يُسْلِفُونَ فِي الثَّمَرِ الْعَامَ وَالْعَامَيْنِ - أَوْ قَالَ عَامَيْنِ أَوْ ثَلاَثَةً. شَكَّ إِسْمَاعِيلُ - فَقَالَ «مَنْ سَلَّفَ فِي تَمْرٍ فَلْيُسْلِفْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ، وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ».

یعنی حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی رسول الله ﷺ مدینې ته تشریف راوړو او خلقو به په کهجورو کښې دَ یوکال دواو کالو یا دریو کالو په میعاد باندې بیع سلم کوله. نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه څوک هم تاسو نه په کهجورو کښې سلم کوی هغوی دې ناپ تول مقرر کولوسره کوی.

## رجال الحدیث

**عمرو بن زرارة**:- عمرو بن زرارة بن واقد الکلابی ابومحمد النیسابوری رحمه الله ۲۳۸هجری کښې

---

١) عمدة القاری:۱۲/۸۷ رشیدیه لسان العرب: ۳/۳۸۱.

٢) البنایة:۱۱/٤ حقانیه ملتان.

٣) فتح الباری:٤/٤٢٨.

٤) أخرجه البخاری أیضًا باب السلم فی وزن معلوم رقم الحدیث: ۲۲٤۰وفی باب السلم إلی اجل معلوم، رقم الحدیث:۲۲۵۳. ومسلم فی المساقاة، باب السلم رقم الحدیث:٤۱۱۸ – ٤۵۱۲۱، والترمذی فی البیوع، باب ماجاء فی السلف فی الطعام والتمر، رقم الحدیث: ۱۳۱۱ وأبوداؤد فی الجارة باب السلف رقم: ۳٤٦۲ والسنائی فی البیوع باب السلف فی الثمار رقم الحدیث ٤٦۲۰ وابن ماجة فی التجارات باب السلف فی کل معلوم،رقم الحدیث:۳۲۸۰.

وفات شوې دې [1] علامه ذهبى رحمه الله فرمائى المحدث الامام الثبت المقرئ. [2]

**شيوخ اوتلامذه** - هغوى به د هشيم يحيى بن زكريا سفيان بن عيينه وغيرهم رحمهم الله نه حديث نقل كولو اود هغوى نه امام بخارى امام مسلم امام نسائى وغيرهم رحمهم الله روايت نقل كړى دى. [3] امام نسائى رحمه الله فرمائى **ثقة**. [4] علامه محمد عبدالوهاب رحمه الله فرمائى **ثقة ثقة**. [5] علامه ابوالعباس سراج رحمه الله فرمائى كان مجاب الدعوة. [6] امام بخارى رحمه الله ۱۳ او امام مسلم رحمه الله اته (۸) احاديث د دوى نه نقل كړى دى. [7]

**اسماعيل بن علية** - دا اسماعيل بن ابراهيم بن مقسم رحمه الله دې. [8]

**ابن أبي نجيح** - دا ابن ابى نجيح عبدالله بن يسار رحمه الله دې. د دوى حالات هم **كشف البارى كتاب العلم باب الفهم فى العلم** كښې تيرشوى دى. [9]

**عبدالله بن كثير** - داعبدالله بن كثير الدارى المكى ابومعبد القارى سولى عمرو بن علقمة الكناني رحمه الله دې. [10] دې د ابنائې فارس نه دې د دوى انتقال ۱۲۰ هجرى كښې شوې دې. [11]

**شيوخ** - هغوى درباس رحمه الله او عكرمه رحمه الله (كوم چه د ابن عباس رضي الله عنهما آزادكړې شوې غلام دې) او عبدالله بن زبير رضي الله عنهما ابوالمنهال عبدالرحمن بن مطعم اومجاهدبن حبر المكى وغيرهم رحمهم الله نه روايات نقل كول. [12]

**تلامذة** - اود هغوى نه اسماعيل بن امية اسماعيل بن عبدالله ايوب السختيانى حمادبن سلمه سفيان بن عيينه عبدالله بن ابى نجيح او ليث بن ابى سليم وغيرهم رحمهم الله روايات نقل

---

[1] سيرأعلام النبلاء:۲/۲۹۴۹ بيت الافكار الدولية، تهذيب التهذيب: ۳/۲۷۱ مؤسسة الرسالة، بيرت، تقريب التهذيب: ۳/۷۶ دارالمعرفة بيروت.

[2] المصدرالسابق.

[3] المصدرالسابق.

[4] المصدرالسابق.

[5] المصدرالسابق.

[6] المصدرالسابق.

[7] تهذيب التهذيب:۱۵/۴۶۹.

[8] اوګورئى كشف البارى: ۲/۱۲.

[9] كشف البارى: ۳/۲۶۰.

[10] تهذيب الكمال: ۱۵/۴۶۹ طبقات ابن سعد:۵/۴۸۴.

[11] المصدرالسابق.

[12] المصدرالسابق.

کړې دی (١)

محمدبن سعيد رحمه الله فرمائي كان ثقة (٢) امام نسائي رحمه الله فرمائي عبدالله بن كثير ثقة. (٣) سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائي لم يكن بمكة أحدٌ أقرأ من حميد بن قيس، وعبدالله بن كثير رحمهما الله تعالى په مكه كښې حميدبن قيس او عبدالله بن كثير نه لوئى قارى بل څوك نه وو (٤)

ابوالمنهال عبدالرحمن بن مطعم- دا بناني مكي دې. دَدوى انتقال ١٠٦هجرى كښې شوې دې (٥) علامه يحيى رحمه الله فرمائي بصري، كان ينزل مكة (٦)

شيوخ- هغوى رحمه الله به دَ براء بن عازب زيدبن ارقم عبدالله بن عباس او اياس بن عبدمزني رضي الله عنهم نه حديث نقل كولو (٧)

تلامذه- اودَهغوى رحمه الله نه به اسماعيل بن امية حبيب بن ابى ثابت سليمان الاحول عامربن مصعب عبدالله بن كثير القاري او عمرو بن دينار وغيرهم رحمهم الله احاديث نقل كول (٨) ابوزرعه رحمه الله فرمائي مكي ثقة (٩) ابن حبان رحمه الله دَهغوى ذكر ثقات كښې كړې دې (١٠) ابن سعد رحمه الله فرمائي كان ثقة قليل الحديث (١١) امام بخاري رحمه الله فرمائي أثنى عليه ابن عيينة رحمه الله خيراً (١٢)

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما- دَدوى احوال كشف الباري كتاب بدء الوحى دَ لاندې تيرشوى دى (١٣)

**قوله: من سلف في تمر**- دلته يوه خبره دَ غورقابل ده چه زمونږ په روايت كښې من سلف في تمرفليسلف في كيل معلوم ووزن معلوم دې. علامه كرماني رحمه الله او علامه عيني رحمه الله فرمائي چه

---

(١) المصدرالسابق.
(٢) المصدرالسابق.
(٣) المصدرالسابق.
(٤) المصدرالسابق.
(٥) تهذيب الكمال: ٤٠٦/١٧.
(٦) المصدرالسابق.
(٧) المصدرالسابق.
(٨) تهذيب التهذيب: ٤٠٦/١٧.
(٩) الجرح والتعديل: ٥ الترجمة: ١٣٥٤.
(١٠) الثقات: ١٠٨/٥.
(١١) طبقات ابن سعد: ٤٧٧/٥.
(١٢) التاريخ الكبير: ٥ الترجمة: ١١١٨.
(١٣) كشف الباري: ٤٣٥/١، ٢٠٥/٢.

بعض روایاتوکښې من سلف في ثمر لفظ راغلې دې. یعنې دَتمر په ځائې کوم چه مثناة دې ثمر لفظ دې چه ثاء مثلثه سره دې.(۱) دې حضراتو دا دَ امام نووی رحمه الله په اتباع کښې وئیلی دی. علامه نووی رحمه الله شرح مسلم کښې لیکلی دی. وفي بعضها ثمر بالمثلثة.(۲)

لیکن زمونږ بحث خو دَ بخاری رحمه الله په روایت کښې کیږی اودَ بخاری رحمه الله په روایت کښې دا وینا کول چه په هغې کښې دَتمر په ځائې ثمر هم واردشوې دې صحیح نه ده. ځکه چه دَ بخاری رحمه الله چرته په یوطریق کښې هم دَ تمر په ځائې دَثمرذکر نشته.

**قوله: من سلف في تمر فليسلف في كيل معلوم ووزن معلوم** باندې اشکال اودَ هغې

**جواب:-** علامه بدرالدین دمامیمی رحمه الله فرمائی چه حضوراکرم ﷺ فرمائیلی دی **من سلف في تمر فليسلف في كيل معلوم ووزن معلوم.** په دې کښې دا اشکال کیږی چه دَتمر دَپاره شرعی معیار کیل دې وزن نه دې.

علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه بدرالدین دمامیمی رحمه الله مطلب دادې چه دَتمر په ځائې ثمر کیدل پکاردی په دې وجه که چرې ثمر شي نوهغه به دَ خپل عموم دَ وجې نه به کیلي او وزنې دواړو ته شامل شي اوکه دَ تمر لفظ شي نو په دې کښې کیل متعین دې بیا به هلته دَ کیل او وزن دواړو ذکربې محل شي. دا خبره علامه سندهی رحمه الله علامه دمامیمی رحمه الله دَ قول خودلودَ مطلب دَپاره ذکرکړې دې.(۳)

**دَعلامه سندهی رحمه الله جواب:-** دَدې نه پس علامه سندهی رحمه الله دَدې سوال چه دَ تمر لفظ کیدلوسره حضوراکرم ﷺ **فليسلف في كيل معلوم ووزن معلوم** ولې فرمائیلی. دا تاویل چه دلته به څه مقدر منلې کیږی یعنې **من سلف في تمر** مثلاً نو دَمثلاً لفظ اوس **تمر او غیر تمر** ټولوته شامل شي اودَدې نه پس به دَوزن ذکر بې محل نه شي. یا تقدیر عبارت به داسې راویستې شي **من سلف في تمر أو غيره** نو په دې صورت کښې به هم دَ وزن ذکرصحیح شي.(۴)

**دَ علامه قسطلانی رحمه الله جواب:-** علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه واؤ دَ او په معنی کښې دې یعنې فليسلف في كيل معلوم أو وزن معلوم او مطلب دادې چه چرته کیلي څیز دې نودَهغې کیل معلوم کیدل پکاردی یا که چرې دَ وزن څیز دې نو وزن ئې معلومیدل پکاردی.(۵) لیکن

---

(۱) شرح الکرمانی رحمه الله ۸۵/۱۰ عمدة القاری:۸۸/۱۲.
(۲) الصحیح المسلم مع شرحة الکامل للنووی رحمه الله ۳۱/۲.
(۳) صحیح البخاری مع حاشیة علیه للامام أبی الحسن السندی رحمه الله ۱/۳۷۱.
(۴) صحیح البخاری مع حاشیة علیه للامام أبی الحسن السندی رحمه الله ۳۷۱/۱.
(۵) إرشاد الساری:۱۱۷/٤.

دا توجیه کوم چه علامه قسطلانی رحمه الله کړې ده نه صحیح کیږی ځکه چه په روایت کښې خو صرف دَتمر ذکردې او دَدې مناسب هم کیل دې وزن نه دې. لهذا بهتر جواب هم هغه دې کوم چه علامه سندهی رحمه الله ورکړې دې.

**دَترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې.

**دَحدیث مذکور دویم سند:-**

حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ بِهَذَا «فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ».

[حدیث ۲۱۲۵، ۲۱۲۶، ۲۱۳۵]

یعنی امام بخاری رحمه الله فرمائی چه هم دا حدیث مونږ. دَ محمد رحمه الله نه هم په دې طریق سره بیان کړې دې او په دې کښې هم دغه دی چه معین ناپ اوتول سره.[1]

## رجال الحدیث

**قوله: حدثنا محمد:-** دَامام بخاری رحمه الله شیخ محمد رحمه الله کښې دَ شراحو اختلاف دې. ابوعلی جیانی رحمه الله فرمائی چه چادَدوی باره کښې صراحت نه دې کړې چه دا څوک دې. زما په نیز دا محمدبن سلام رحمه الله دې. علامه کلاباذی رحمه الله هم دا اختیار کړې دی.[2]

**محمدبن سلام بن الفرج رحمه الله:-** محمدبن سلام بن الفرج السلمی، مولاهم، ابوعبدالله البخاری، البیکندی ویقال: الباکندی ایضا ویقال بالفاء ایضا. (یعنی فیکندی اوفاکندی)

**وفات:-** دَدوی انتقال ۲۲۵ هجری کښې شوې دې.

**اساتذه:-** هغوی رحمه الله دَ ابراهیم بن عبدالرحمن الخوارزمی ابواسحاق ابراهیم بن محمد الزاری احمدبن بشیر الکوفی اسماعیل بن جعفر اسماعیل بن علیه اسماعیل بن عیاش سفیان بن عیینه عبدالله بن مبارک اومحمد بن الحسن الشیبانی وغیرهم رحمهم الله نه روایات نقل کړی دی.

**تلامذه:-** او هغوی دَامام بخاری رحمه الله اودَهغوی دَ خوئی ابراهیم بن محمدبن سلام البیکندی المؤدب، احمدبن الغمر، احمدبن عبدالرحمن، سلیمان بن داؤد السمرقندی، طاهربن محمودبن نضر، طفیل بن زید(سفیان) او عبیدالله بن عمرو بن حفص المروزی وغیرهم رحمهم الله تعالی نه روایات کړی دی.[3]

---

[1]) مرتخریجه سابقا.

[2]) عمدة القاری: ۶۲/۱۲ فتح الباری: ۵۴۱/۴ وإرشادالساری: ۱۱۶/۴.

[3]) تهذیب الکمال: ۲۵/۳۴۰ – ۳۴۳.

علامه يحيى بن يحيى رحمه الله فرمائي: بخراسان كنزان، كنزعند محمدبن سلام البيكندي، وكنزعند اسحاق بن راهويه. (۱) خراسان كښې (دعلم)دوه خزانې دي. يوه خزانه محمدبن سلام بيكندي سره او يوه خزانه اسحاق بن راهويه سره.

عبيدبن شريح رحمه الله فرمائي: كان محمدبن سلام من كبار المحدثين..... (۲)يعنى محمدبن سلام رحمه الله د كبارمحدثينونه دې اودهغوی (خدمت) حديث كښې يولوئې نوم دې. علامه ابن حبان رحمه الله ددوی تذکره په ثقات كښې كړې ده. (۳)علامه ابن حجر رحمه الله د ابوعصمة سهل بن متوكل رحمه الله قول نقل كړې دې چه ما امام احمدبن حنبل رحمه الله ته اووئيل: حدثني، فقال من أين أنت؟ فقلت من بخاري، فقال: ألم تسمع من محمدبن سلام مايكفيك. (۴) يعنى ابوعصمة رحمه الله فرمائي چه ما امام احمدبن حنبل رحمه الله ته عرض اوكړو چه تاسو ماته حديث اووايئی هغوی تپوس اوكړو ته د كوم ځائی يئی؟ ما عرض اوكړو دبخاری نه، نوهغه اوفرمائيل ولې د محمدبن سلام رحمه الله نه احاديث اوريدل ستاد پاره كافي نه دی.

**اسماعيل**:- دا اسماعيل بن عليه رحمه الله دې. (۵)

**ابن ابى نجيح**:- داابن ابى نجيح عبدالله بن يسار رحمه الله دې. (۶)

## ۲ - باب: السلم في وزن معلوم

### تول يعنى وزن مقرركولوسره سلم كول

**د ترجمة الباب مقصد** :- امام بخاری رحمه الله اول باب قايم كړې وو باب السلم في كيل معلوم كه چرې مسلم فيه دمكيلات نه دې نوكيل معلومول ضروری دی او اوس امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی كه چرې مسلم فيه دموزونات نه وی نووزن معلوميدل ضروری دی. لكه چه امام بخاری رحمه الله خبرداري وركول غواړی چه په موزونات كښې د كيل په ذريعه عقدسلم صحيح نه دې. (۷)

---

۱) تهذيب الكمال: ۲۵/۳٤۰ – ۳٤۳.
۲) تهذيب الكمال: ۲۵/۳٤۰ – ۳٤۳.
۳) كتاب الثقات: ۷۵/۹.
٤) تهذيب: ۲۱۲/۹.
۵) كشف الباري: ۱۲/۲.
۶) كشف الباري: ۳۰۲/۳.
۷) عمدة القاري: ۶۳/۱۲.

[حديث ٢١٢٥ – ٢١٢٦] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَثِيرٍ عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضی الله عنهما - قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - الْمَدِينَةَ، وَهُمْ يُسْلِفُونَ بِالتَّمْرِ السَّنَتَيْنِ وَالثَّلاَثَ، فَقَالَ «مَنْ أَسْلَفَ فِي شَيْءٍ فَفِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ، إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ». (١)

**ترجمه** - حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ مديني منورې ته تشريف راوړو اوخلقو کهجورې ددوو کالو اودريوکالو په ميعاد باندې سلم کوله. حضورپاک ﷺ اوفرمائيل کله چه څوك په يوڅيز کښې سلم اوکړی نو معين ناپ تول اومعين ميعادسره دې کوی.

## رجال الحديث

**قوله: حدثنا صدقة** - صدقة بن الفضل. دَ ده کنيت ابوالفضل دې. المروزی نسبت دې. دَدوی انتقال دَ امام بخاری رحمه الله دَ قول مطابق ٢٢٠ هجری نه لږ شان پس شوې دې. (٢) اودَ ابن عساکر رحمه الله دَ قول مطابق ٢٢٣هجری کښې شوې دې. (٣)

**اساتذه:** -هغوی رحمه الله دَ اسماعيل بن عليه، حجاج بن محمد، حفص بن غياث، سفيان بن عيينه، عبدالله بن وهب، عبدالرحمن بن مهدی، وکيع بن الجراح او يحيیٰ سعيدالقطان وغيرهم رحمهم الله نه روايت نقل کړی دی

**تلامذه:** - اودَهغوی رحمه الله نه امام بخاری، عبدالله بن عبدالرحمن الداری، ابوقدامة، عبيدالله بن سعيد السرخسی، عبيدالله بن واصل المبيکندی البخاری او محمدبن نصر المروزی وغيرهم رحمهم الله روايات نقل کوی.

وهب بن جرير رحمه الله به فرمائيل چه **جزی الله إسحاق بن راهويه وصدقة ويعمرعن الاسلام خيراً، أحييوا السنة بارض المشرق** يعنی الله تعالی دې اسحاق بن راهويه او صدقه بن فضل او يعمربن بشررحمهم الله ته دَاسلام دَ طرف نه ښکلې بدله ورکړی هغوی بلادمشرق کښې سنت ژوندی کړی دی. (٤)

ابن حبان رحمه الله دَهغوی ذکر ثقات کښې کړې دې اوفرمائی **کان صاحب حديث وسنة.** (٥) يعقوب بن

---

(١) مرتخريجه فی الحديث السابق.

(٢) تهذيب الکمال: ١٣/١٦٤.

(٣) المعجم المشتمل، الترجمة:٤٣٥.

(٤) تهذيب الکمال: ١٣/١٤٥.

(٥) الثقات لابن حبان: ٨/٣٢١.

سفیان رحمه الله فرمائی کان کخیر الرجال. (۱)علامه دولابی رحمه الله فرمائی ثقة بل احمدبن سیار رحمه الله هم دهغوی تعریف کړې دې. (۲)

**سفیان بن عیینه ابن ابی نجیح:-** دَدې دواړو حضراتو رحمهماالله تذکره وړاندې حدیث کښې تیره شوې ده.

**تشریح حدیث:-** که چرې مسلم فیه مکیلات نه وی نودکیل اوکه موزونات نه وی نو وزن معلومیدل پکاردی. دا مسئله اجماعی ده اوپه دې کښې هیڅ اختلاف نشته. لیکن سوال دادې که یوڅیزمکیلی دې او په هغې کښې بیع سلم دَ وزن په حساب سره اوکړې شی یایوڅیز وزنی دې اوپه هغې کښې بیع سلم دَ کیل په حساب سره اوکړې شی نو په دې کښې فقهاؤ حضراتو اختلاف دې.

**بیان اختلاف فقهاء:-** زمونږ دَ فقهاؤ فتویٰ دَ جواز ده. (۳)امام طحاوی رحمه الله هم دا اختیارکړې ده. صاحب دَهدایه هم دَدې تصریح کړې ده اوصاحب دکافی رحمه الله هم دا اختیارکړې ده. دَامام احمدبن حنبل رحمه الله نه دواه اقوال نقل دی یوقول زمونږ موافق دې او دویم قول دَعدم جواز دې. (۴) امام مالك رحمه الله فرمائی چه عرف بدل شوې دې یعنی چه کوم څیز مکیلی وو اوس دَهغې عرف دَوزنی شوې دې یا که یوڅیز وزنی وو نودَهغې عرف کیل شوې دې. نو په دې کښې هیڅ بدیت نشته. (۵) دَ شوافع هم دوه اقوال دی په دې کښې اصح قول دَجوازدې. (۶)

**دَحدیث باب مقصد:-** په دې حدیث کښې امام بخاری رحمه الله **إلی أجل معلوم** زیاتوالې ذکرکړې دې چه دَاجل معین کول هم عقدسلم دَپاره شرط دې. بل دا روایت دَاحنافو دلیل هم دې چه عقد سلم بیع مؤجل کښې صحیح ده نه چه په مبیع معجل کښې لکه چه دَ شوافع مسلك دې. (۷)**وسیأتی تفصیله.**

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت دَحضورپاك ﷺ دَ قول ووزن معلوم سره واضح دې. (۸)

---

۱) المعرفة: ۴۲۰/۲.

۲) تهذیب التهذیب: ۴۱۷/۳ کشف الباری: ۲۳۸/۱و ۳۰۲/۳.

۳) بدائع الصنائع: ۲۰۸/۵ردالمحتار: ۴۵۵/۷ الابواب والتراجم ص: ۱۶۵.

۴) المغنی: ۹۳۶/۱.

۵) المغنی: ۹۳۶/۱.

۶) إرشاد الساری: ۱۱۷/۴ المغنی: ۹۳۶/۱.

۷) عمدة القاری: ۶۳/۱۳

۸) عمدة القاری: ۶۳/۱۳

دَحديث مذکور دویم طریق:- حَدَّثَنَا عَلِي حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ وَقَالَ «فَلْيُسْلِفْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ». [1]

هم دغه حديث مذکور دَ علي بن مديني رحمه الله په طریق سره هم نقل دې او په هغې کښې داسې دي چه په معين ناپ او معين ميعاد سره بيع سلم کوئی.

## رجال الحديث

**علي:-** داعلي بن عبدالله المديني رحمه الله دې. [2]

**سفيان:-** دا سفيان بن عيينه رحمه الله دې. کشف الباري: ۲۹۷/۳.

**دَحديث دَ دويم طريق مقصد:-** په دې کښې هم امام بخاري رحمه الله دَ بيع سلم دَپاره اجل مشروط کيدو باندې تنبيه فرمائی.

**دَ حديث مذکور دريم طريق:-** [حديث ۲۱۲۶]

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَثِيرٍ عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - يَقُولُ قَدِمَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَقَالَ «فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ». [ر: ۲۱۲۴] [3]

دَ حديث ترجمه تيره شوې ده.

## رجال الحديث

**قتيبه:-** داقتيبه بن سعيد ثقفي رحمه الله دې. [4] بل دَ باقي رجال حديث تخريج هم په دې باب کښې تيرشوې دې. او په دې طريق کښې هم دَعقدسلم دَپاره دَاجل په مشروط کيدو باندې تنبيه ده.

[حديث ۲۱۲۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ ابْنِ أَبِي الْمُجَالِدِ. وَحَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي الْمُجَالِدِ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي مُحَمَّدٌ، أَوْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الْمُجَالِدِ قَالَ اخْتَلَفَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَدَّادِ بْنِ الْهَادِ وَأَبُو بُرْدَةَ فِي السَّلَفِ، فَبَعَثُونِي إِلَى ابْنِ أَبِي أَوْفَى - رضى الله عنه - فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ إِنَّا كُنَّا نُسْلِفُ

---

[1] مرتخريخه فى الحديث السابق.
[2] کشف الباري: ۲۹۷/۳.
[3] مرتخريجه ايضاً فى الحديث السابق.
[4] کشف الباري: ۱۸۹/۲.

عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ، فِي الْحِنْطَةِ، وَالشَّعِيرِ وَالزَّبِيبِ، وَالتَّمْرِ. وَسَأَلْتُ ابْنَ أَبْزَى فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ.[۲۱۲۸، ۲۱۲۹، ۲۱۳۶][۱]

حضرت عبدالله بن ابی المجالد یا محمدبن ابی المجالد رحمه الله فرمائی چه:

**ترجمه**- عبدالله بن شدادبن الهاد او ابوبرده عامر بن ابی موسیٰ رضی الله عنه په سلم کښې اختلاف اوکړو نو زه ئې عبدالله بن ابی اوفی صحابی رضی الله عنه ته تپوس دَ اولیګلم ما دَهغوی نه تپوس اوکړو هغوی اوئیل چه مونږ دَ رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه دَ زمانې نه غنمو جوارو منقې اوکهجورو کښې به عقد سلم کولو اوما دَ عبدالرحمن بن ابزی صحابی رضی الله عنه[۲] نه تپوس اوکړو هغوی هم داسې اووئیل.

## رجال الحدیث

**ابوالولید**:- دَ ابوالولید هشام بن عبدالملک الطیالیسی رحمه الله دی.[۳]

**شعبة**:- دا شعبه بن حجاج رحمه الله دی.[۴]

**ابن أبی المجالد**:- عبدالله بن أبی المجالد ویقال: محمدبن ابی المجالد الکوفی هغوی مولی عبدالله بن أبی أوفی رضی الله تعالیٰ عنه دی.

**اساتذه**:- هغوی رحمه الله دَ حضرت عبدالله بن ابی اوفی، عبدالله بن شدادبن الهاد، عبدالرحمن بن ابزی، مقسم او وراد مولی مغیره بن شعبه رضی الله عنه نه روایات کړی دی.

**تلامذه**:- هغوی رحمه الله نه اسماعیل بن عبدالرحمن السدی، اشعث بن سوار، اشعث بن أبی الشعثاء، حسن بن عمارة البجلی، شعبة بن الحجاج او ابواسحاق الشیبانی رحمهم الله نه روایات کړی دی.[۵]

عیسیٰ بن معین او ابوزرعه رحمه الله فرمائی ثقة.[۶] ابوعبید آجری فرمائی مادَابوداؤد رحمه الله نه واؤریده چه امام شعبه محمدبن ابی المجالد نه حدیث بیانوی نو شعبه په هغې کښې خطاء

---

[۱] وأخرجه البخاری ایضًا فی باب السلم إنی من لیس هذه أصل رقم الحدیث: ۲۲۴۴، ۲۲۴۵ وباب السلم إلی أجل معلوم رقم الحدیث: ۲۲۵۴، ۲۲۵۵ وأبوداؤد فی الاجارة باب فی السلف: ۳۴۶۴، ۳۴۶۵ والنسائی فی البیوع باب السلم فی الزبیب: ۴۶۱۹ وانظر کذلک فی جامع الاصول الباب السابع فی السلم رقم: ۴۲۴ وتحفة الاشراف رقم: ۵۱۷۱.

[۲] دَدوی تذکره کتاب التیمم باب التیمم هل ینفخ فیهما کښې تیرشوې دی.

[۳] کشف الباری: ۳۸/۲.

[۴] کشف الباری: ۶۷۸/۱.

[۵] تهذیب الکمال: ۲۸۸/۶.

[۶] الجرح والتعدیل: ۵/ الترجمة: ۸۴۴/۸ الترجمة: ۴۵۸۸۱.

کوی صحیح عبدالله بن ابی المجالد دی (۱) بخاری شریف کښې دهغوی هم یوحدیث دې اوهغوی د حضرت مجاهد رحمه الله خوم وو. (۲)

**تشریح حدیث**:- حضرت عبدالله بن شداد اوحضرت أبوبرده رضی الله عنهما په مینځ کښې اختلاف په دې خبره شوې وو چه آیا د سلم معامله کول دهغه سړی دپاره جائزده که نه چاسره چه مسلم فیه فی الحال موجودنه وی نوهغه اوس مسلم الیه جوړیدې شی که نه؟ نوهغوی دتحقیق دپاره ابن ابی المجالد حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه ته اولیګلو. هغوی جواب ورکړو چه مونږ به د نبی ﷺ په مبارکه زمانه کښې بیع سلم په مذکوره څیزونوکښې کوله. بیا د وړاندې باب په روسبی روایت کښې اضافه ده چه مونږ به دَدې تپوس نه کولو چه تاسره هغه څیز موجود دې که نه؟ **ماکنانسئلهم عن ذلك**. لهذا دَدې نه معلومه شوه چه دَدې خبرې تحقیق کول چه مسلم الیه سره مسلم فیه دې وخت کښې موجود دې که نه دا ضروری نه دی اوچه کله دا ضروری نه دی نوعقدسلم هم په دې باندې موقوف نه ده.

**یواشکال اوجواب**:- دَ مذکوره بحث سره یواشکال هم لرې شو. اشکال داووچه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب قایم کړو السلم فی وزن معلوم اوپه دې روایت کښې چه کوم څلور څیزونه ذکرکړې شوی دی په هغې کښې یوهم وزنی نه دې نودَدې جواب دادې چه په وړاندې باب کښې روایت راغلی هلته دَ زبیب په ځائی زیت ذکر دې اوهغه وزنی دې. امام بخاری رحمه الله دهغې طرف ته دَدې روایت په ذریعه اشاره کړې ده چه هم دَدې روایت په بعض طرق کښې دَ زیت لفظ دې کوم چه وزنی دې. (۳)

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دې بحث سره دَ حدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت هم واضح شو.

## ۳- باب: السلم إلی من لیس عنده أصل

### داسې سړی سره سلم کول چاسره چه اصل مال نه وی

**دَ ترجمة الباب مقصد**:- دلته دوه مسئلې دی. یوه دا چه مسلم الیه سره دَعقد سلم په وخت مسلم فیه موجود کیدل ضروری دی که نه؟ نوهیڅوك هم دَدې قائل نه دی چه دَعقدسلم په وخت دې دَ مسلم فیه مسلم الیه سره کیدل ضروری دې. لهذا دامسئله اختلافی نه ده. دویمه مسئله داده چه دعقد سلم په وخت دَحلول اجل پورې دَمسلم فیه په بازارکښې موجود کیدل ضروری دی یادَ حلول اجل په وخت دَدې موجود کیدل ضروری دی. دَ جمهورعلماؤ رائې داده چه دعقدپه وخت دَمسلم فیه بازارکښې ملاویدل ضروری نه دی دَحلول اجل په وخت ضروری

(۱) سؤالات أبی عبید: ۲۶۸/۳.
(۲) فتح الباری: ۵٤۰/٤.
(۳) فتح الباری: ٤۳۰/٤.

دی. لیکن امام سفیان ثوری رحمه الله او امام اوزاعی رحمه الله او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دعقدسلم په وخت دمسلم فیه په بازارکښې ملاویدل ضروری دی اوکه چرې دحلول اجل نه وړاندې ددې انقطاع اوشی نوداد عقدسلم دپاره مضر دی لکه چه مسلم فیه د عقددوخت نه واخله دحضوراجل پورې پوشان ملاویدل ضروری دی. (۱)

دامام بخاری رحمه الله ددې ترجمة الباب نه په ظاهره دهغه خلقو تائید کیږی چه وائی مسلم الیه سره دعقدوخت کښې دمسلم فیه کیدل ضروری نه دی خوچه څنګه ذکر اوشو چه په دې کښې خودچاهم واختلاف نشته.لکه چه کوم دلیل امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې پیش کړې دې دهغې د ظاهر نه چه د کوموحضراتو تائید ښکاری نوهغه حضرات چرته شته نه څکه چه تائیدخو په مقابله کښې کیږی اودلته خو دټولو په دې خبره اتفاق دې چه دعقد په وخت مسلم الیه سره دمسلم فیه موجودکیدل ضروری نه دی. اختلافی مسئله خودویمه ده چه دعقدد وخت نه د حلول اجل پورې بازارکښې دمسلم فیه موجودکیدل ضروری دی که نه؟

لهذا هم دغه به ونیلی شی چه دامام بخاری رحمه الله مقصد هم دا بیانول دی چه دمسلم فیه دعقد په وخت بازارکښې موجودکیدل ضروری نه دی لکه چه د جمهورو مسلك دې اوکومه خبره چه د ترجمه د ظاهرنه په ذهن کښې راځی چه هغه مراد وانخستې شی.(۲)

[حدیث ۲۱۲۸/۲۱۲۹](۳) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي الْمُجَالِدِ قَالَ بَعَثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَدَّادٍ وَأَبُو بُرْدَةَ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى -رضي الله عنهما- فَقَالاَ سَلْهُ هَلْ كَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي عَهْدِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- يُسْلِفُونَ فِي الْحِنْطَةِ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ كُنَّا نُسْلِفُ نَبِيطَ أَهْلِ الشَّامِ فِي الْحِنْطَةِ، وَالشَّعِيرِ، وَالزَّيْتِ، فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ، إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ. قُلْتُ إِلَى مَنْ كَانَ أَصْلُهُ عِنْدَهُ قَالَ مَا كُنَّا نَسْأَلُهُمْ عَنْ ذَلِكَ، ثُمَّ بَعَثَانِي إِلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ كَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- يُسْلِفُونَ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَلَمْ نَسْأَلْهُمْ أَلَهُمْ حَرْثٌ أَمْ لاَ.

**ترجمه**:- محمدبن ابی المجالد رحمه الله فرمائی چه زه عبدالله بن شداد او ابوبرده رضي الله عنهما عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه ته ددې تپوس دپاره اولیګلم چه آیا د حضورپاك ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم به دهغوی په زمانه کښې په غنموکښې عقد سلم کوله؟ عبدالله رضي الله عنه اوونیل او. مونږ به د شام د زمیندارانونه غنم جوار او زیتون کښې عقد سلم کوله په یومعین ناپ او معین مودې پورې. ماوئیل هغه خلقو سره به تاسوعقدسلم کوله چاسره چه به دغه مالونه موجود وو. هغه اووئیل

---

۱) فتح القدیر:۷۸/۷ والمغنی لابن قدامة:۹۳۹/۱.

۲) عمدة القاری:۶۵/۱۲.

۳) انظر الحدیث السابق للتخریج.

چه مونږ به دَدې هرڅه تپوس نه کولو بیا دې دواړو زه عبدالرحمن بن ابزیٰ صحابی رضی الله عنه له اولیګلو ما دَهغوی نه هم تپوس اوکړو هغوی اوونیل چه صحابه کرامو به دَحضورپاك په زمانه کښې بیع سلم کوله اومونږ به دَهغوی نه داتپوس نه کولو چه هغوی سره فصل شته که نه؟

## رجال الحدیث

**موسیٰ بن اسماعیل**:- داشیخ موسیٰ بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دې.[1]

**عبدالواحد**:-داعبدالواحد بن زیاد رحمه الله دې.[2]

**الشیبانی**:- دا ابواسحاق الشیبانی رحمه الله دې.[3]

**محمدبن ابی المجالد**:-دَمحمدبن ابی المجالد رحمه الله دَدوی تذکره تیرشوی باب کښې تیره شوه.

**عبدالله بن شداد**:- داعبدالله بن شدادبن الهادی رحمه الله دې. حواله بالا.

**ابوبردة**:- دا ابوبرده عامر بن ابی موسیٰ الاشعری رحمه الله دې.[4]

**عبدالله بن ابی اوفی**:- دا عبدالله بن ابی اوفی رحمه الله دې.[5]

**عبدالرحمن بن أبزی**:- دوی عبدالرحمن بن ابزی الخزاعی رضی الله عنه دې.[6]

**دَمذکوره حدیث دویم طرق**:-[حدیث ۲۱۲۹][7] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي مُجَالِدٍ بِهَذَا وَقَالَ فَنُسْلِفُهُمْ فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ. وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْوَلِيدِ عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ وَقَالَ وَالزَّيْتِ . حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ وَقَالَ فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالزَّبِيبِ.[ر: ۲۱۲۷]

## رجال الحدیث

**اسحاق**:- دااسحاق بن شاهین الواسطی رحمه الله دې.[8]

---

[1] کشف الباری:۴۳۳/۱، ۴۷۷/۳.

[2] کشف الباری:۳۰۱/۲.

[3] صحیح بخاری کتاب الحیض باب مباشرة الحائض.

[4] کشف الباری:۶۹۰/۱.

[5] صحیح البخاری کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء الا من المخرجین.

[6] کتاب التیمم باب التیمم هل ینتفخ فیها.

[7] مرتخریجه ایضاً.

[8] کشف الباری کتاب الحیض باب الاعتکاف للستحاضة.

**خالدبن عبدالله**:- داخالد بن عبدالله بن عبدالرحمن الطحان الواسطی رحمه الله دې (۱)

**الشيبانی**:-دا ابواسحاق سليمان الشيبانی رحمه الله دې (۲)

دادَحديث مذكوره دويم طريق دې او په دې كښې دَ زيت يعنى زيتون ذكرنشته

**دَحديث مذكوردريم طريق**:- وَقَالَ عَبْدُاللهِ بْنُ الْوَلِيدِ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِي وَقَالَ الزَّيْتِ.

## رجال الحديث

**عبدالله بن الوليد**:- داعبدالله بن الوليدابومحمد العدنی رحمه الله دې (۳)

**سفيان**:- دا سفيان بن سعيدثوری رحمه الله دې. (۴)

دادَ حديث مذكور دريم طريق دې كوم چه امام بخاری رحمه الله تعليقًا شيخ عبدالله بن الوليد رحمه الله نه نقل كړې دې اودې فائده داده چه په دې كښې دَ زبيب منقى په ځائى دَ زيت يعنى دَ زيتون ذكردې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا تعليق امام سفيان رحمه الله په خپل جامع كښې دَعلى بن حسن الهلالی عن عبدالله بن الوليد په طريق سره موصولاً نقل كړې دې. (۵)

**تشريح حديث**:- امام بخاری رحمه الله په دې باب كښې په بنيادی توګه باندې دوه روايتونه ذكر كړى دى يودَ عبدالله بن ابى اوفى او دويم دَحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما. دَ ابن ابى اوفى رضی الله عنه دَ روايت نه دامعلوميږى چه مسلم اليه سره دَ عقدپه وخت دَمسلم فيه كيدل ضرورى نه دى. په دې مسئله كښې لكه څنګه چه تيرشو دَچااختلاف نشته البته اختلاف په دې خبره كښې دې چه دَعقد په وخت دَ مسلم فيه په بازاركښې موجودكيدل ضرورى دى اوكه نه؟ دَعبدالله بن ابى اوفى رضی الله عنه روايت ددې نه خاموش دې اودَ عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په راتلونكى روايت كښې داذكردى چه ابوالبخترى الطائى رحمه الله دَ نخل معين دَ سلم باره كښې سوال اوكړو كه چرې په نخل معين كښې سلم اوكړې شى نودَ دى څه حكم دې؟ حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما اوفرمائيل چه رسول الله صلی الله علیه وسلم بيع النخل قبل بدوالصلاح نه منع كړې ده.

**دَ روايت ترجمة الباب مطابقت اودَ شارح بخاری ابن بطال رحمه الله اشكال**:- خبره دكوم ځائى نه كوم ځائى ته اورسيده په دې وجه دَ بخاری شريف بعض شارحينو اووئيل چه دا روايت په ترجمة

---

(۱) كشف البارى كتاب الوضوء باب من مضمض والستنشق من غرفة.

(۲) كشف البارى كتاب الحيض باب مباشرة الحائض.

(۳) كشف البارى كتاب الحج باب فى رمى الجمارمن بطن الوادى.

(۴) كشف البارى:۲۷۸/۲.

(۵) فتح البارى:۴۳۱/۴ تغليق التعليق:۲۷۵/۳.

الباب باندې منطبق نه دې چونکه دباب مقصد خوداخودل ووچه دعقد په وخت د مسلم فيه بازار کښې ملاویدل ضروری دی که نه؟ بیع النخل قبل بدوالصلاح سره د باب څه تعلق نشته نوعلامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه دابن عباس رضی الله عنهما ددې روایت تعلق وړاندینی باب سره وو یو کاتب چرته په غلطئ سره په دې باب کښې ذکرکړې دې (۱)

**دابن منیر مالکی رحمه الله جواب:-** علامه ابن منیر مالکی رحمه الله فرمائی امام بخاری رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنهما روایت سره ترجمة الباب ثابت کړې دې هغه داسې چه کله د ابن عباس رضی الله عنهما نه سائل تپوس اوکړو چه په نخل معین کښې بیع سلم کیدې شی که نه؟ نوهغوی په جواب کښې نهی عن بیع النخل قبل بدوالصلاح ذکرکړو لکه چه دائی اوخودل په نخل معین کښې بیع سلم کول که چرته د بیع نخل قبل بدوالصلاح په باب کښې داخل ده نو ناجائز ده ځکه چه حضورپاك ددې نه منع کړې ده. ددې به دامفهوم راوځی که چرې نخل غیرمعین وی او په هغې کښې بیع سلم اوکړې شی نود بیع النخل قبل بدوالصلاح په باب کښې داخل نه دی لهذا په نخل معین کښې به د سلم کولو اجازت وی.

خلاصه دا شوه چه امام بخاری رحمه الله د جمهور علماؤ تائیدکړې دې او دائی اوخودل چه دعقد په وخت د مسلم فيه په بازارکښې موجودکیدل ضروری نه دی. که نخل غیرمعین وی او په هغې باندې میوه لګیدلې وی او دغه وخت بازار ته نه ده راغلې او تاسو په هغې کښې بیع سلم اوکړئی نو جائزده. (۲)

**یوه عجیبه خبره:-** لیکن عجیبه خبره داده چه دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دکوم روایت نه ابن منیرمالکی رحمه الله دامام بخاری رحمه الله دامسلك ثابته وی چه دمسلم فيه دعقدد وخت نه دحلول اجل پورې موجودپاتې کیدل ضروری نه دی. که دحلول اجل په وخت کښې مسلم فيه چرته موجودوی نو داکافی دی مګر هم ددغه روایت نه د احنافونه صاحب دهدایه وغیره دمسلك اثبات کړې دې. (۳) یعنې دکوم څیزدپاره چه ابن منیر مالکی رحمه الله ددې روایت نه استدلال کړې دې فقهاء احناف ددې دعکس دپاره هم ددې روایت نه استدلال کړې دې. دهغوی داستدلال تقریر دادې چه دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما چه کله دا تپوس اوکړې شو چه په نخل معین کښې بیع سلم کیدې شی که نه؟ نوهغوی په جواب کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کړوچه حضورپاك د بدوالصلاح نه وړاندې د بیع النخل نه منع فرمائیلې ده. ددې نه معلومه شوه چه بیع قبل بدوالصلاح ممنوع ده او سوال په بیع سلم کښې وو. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په جواب کښې هم دا روایت ذکرکړو نومعلومه شوه چه هغه ددې په عموم کښې بیع سلم هم داخلوی. چونکه ابن عباس رضی الله عنهما دنخل بیع سلم په دې کښې داخله کړې ده لهذا معلومه شوه لکه څنګه چه بیع قبل بدوالصلاح ممنوع ده دغه شان دنخل معین بیع سلم هم ممنوع ده. ددې وجه داده

(۱) شرح صحیح البخاری لابن بطال: ۳۶۷/۶.
(۲) فتح الباری: ۵۴۵/٤.
(۳) فتح القدیر: ۸۷/۷، ۸۹.

لکه چه قبل بدوالصلاح میوه په بازار کښې نه ملاویږی دغه شان په دې صورت کښې هم میوه په بازار کښې نه ملاویږی نود ناجائز کیدو وجه داشوه چه مسلم فیه په بازار کښې موجودنه دې.

بهرحال اوس په دې روایت کښې دواړه احتماله پیداشو. په دې وجه امام بخاری رحمه الله ترجمه مجمل ساتلې او روایتونه ئې دوه پیش کړی یودابن ابی اوفی رضي الله عنه په کوم سره چه د مسلم فیه موجود کیدل ضروری نه معلومیږی او دویم دابن عباس رضي الله عنهما په کوم سره چه مسلم فیه موجود کیدل ضروری معلومیږی. امام بخاری رحمه الله د خپل طرف نه هیڅ فیصله نه ده کړې بلکه د مجتهد حواله کړې ئې ده چه دا دوه دلیلونه دی کوم چه اولی گنړئی هم هغې ته ترجیح ورکړئی.

**د احنافو تائید:-** داهم ممکن دی چه امام بخاری رحمه الله داحنافو تائید کوی ځکه چه دابن ابی اوفی رضي الله عنه د روایت نه خو دامعلومه شوه چه مسلم الیه سره د مسلم فیه موجود کیدل ضروری نه دی خو په دې سره دانه معلومیږی چه د مسلم فیه کیدل ضروری نه دی اودابن عباس رضي الله عنهما په روایت سره دامعلومیږی چه دمسلم فیه د سلم په وخت په بازار کښې ملاویدل ضروری دی ځکه چه که چرې مسلم فیه موجودنه شی نودا بیع به په قبل بدوالصلاح کښې داخل شی. دغه شان امام بخاری رحمه الله دمسلم فیه موجود کیدل ضروری ثابت کړل اود احنافو تائیدئی اوکړو.[1]

**یوبل احتمال:-** خوداهم ممکن دی چه امام بخاری رحمه الله د جمهورو تائید کوی اوهغه دابن ابی اوفی رضي الله عنه د روایت نه داثابت کړې وی چه دمسلم فیه د عقد په وخت موجود کیدل ضروری نه دی ځکه چه دابن ابی اوفی رضي الله عنه نه عبدالله بن شداد پښتنه اوکړه هل کان اصحاب رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم یسلفون في الحنطة آیا صحابه کرامو رضي الله عنهم په حنطة کښې بیع سلم کوله؟ هغوی جواب ورکړو اوکوله به ئې اوهغوی به داسوال نه کولو چه مسلم فیه موجود دې که نه. په دې روایت کښې ددې خبرې تصریح ده چه هغوی به دا سوال نه کولو چه مسلم فیه موجود دې که نه. لهذا معلومه شوه چه د عقدسلم په وخت د مسلم فیه موجود کیدل ضروری نه دی اوددې نه پس دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روایت چه په ظاهره ددې په خلاف باندې دلالت کولو اودهغې سره د احنافو تائید کیدلو. امام بخاری رحمه الله په دې روایت کښې د تاویل طرف ته اشاره اوکړه چه دا روایت د جمهورو خلاف نه دې ځکه چه د ابن عباس رضي الله عنهما نه سوال کړې شوې وو چه آیا په نخل معین کښې بیع سلم کولې شی که نه؟ ددې په جواب کښې هغوی د حبیب پاك ﷺ دا ارشاد اوفرمائیلو چه حضورپاك قبل بدوالصلاح د بیع کولونه منع فرمائیلې ده اودا په دې وجه منع کړې شوې ده چه په دې کښې غرر دې ددې خبرې یره ده چه میوه ضائع شي اود مشتری مال هم ضائع شی او په نخل معین کښې چه کله بیع سلم کولې شی نو په دې کښې هم دغه غرر شته په دې وجه د ابن عباس رضي الله عنهما د روایت په ذریعه منع اوکړې شوه خوچه ترکومې دغیرمعین نخل سوال دې نوکه په هغې کښې بیع سلم اوکړې شی

[1] الابواب والتراجم ص:۱۶۵ مع زیادة.

نوهلته خو غررنشته لهذا هغه جائزده. نولکه چه د ابن عباس رضی الله عنهما ددې روایت تاویل امام بخاری رحمه الله بیان کړو چه هغه دنخل معین باره کښې دې. چونکه هلته د غرراندیښنه ده که چرته په غیرمعین کښې سلم کولې شی نوهغه جائزده اومسلم فیه خو به په دې صورت کښې هم په بازارکښې موجودنه وی او بیع سلم به نی جائزوی نومعلومه شوه چه دعقد سلم دپاره د مسلم فیه په بازارکښې موجود کیدل ضروری نه دی.

**قوله:** كنا نسلف نبيط أهل الشام.....- نبیط: د نون فتحه سره اود باء کسرې سره ددې جمع انباط ده. دا نبیط دعربو یوقوم وو د کوم نسب چه مخلوط شوې وو عربو اوعجموسره او دغه شان ژبه ئی هم خالص عربی پاتې شوې نه وه اودې خلقو به په عام توګه باندې دزمیندارئی وغیره کارونه کول اوغله به ئی خرڅوله.

بعض حضراتو وئیلی دی چه دوی ته نبیط او انباط په دې وجه وئیلې شی دوی به په انباط ماء کښې معرفت او مهارت لرلو یعنی په زمکه کښې چرته اوبه زیاتې دی او په آسانئی سره راوتلې شی او چرته په داوبو په راویستلو کښې مشکلات ببنیږی. (۱)

**د مذکوره حدیث یوبل طرق:-** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الشَّيْبَانِي وَقَالَ فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالزَّبِيبِ.

دادمذکوره حدیث یوبل طریق دې په کوم کښې چه هم زبیب ذکرکړې شوې دې په ځائی د زیت.

## رجال الحدیث

**قتیبة:**-دا قتیبه بن سعید رحمه الله دې. (۲)

**جریر**-دا جریربن عبدالحمید رحمه الله دې. (۳)

[حدیث ۲۱۳۰] (۴) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَخْبَرَنَا عَمْرٌو قَالَ سَمِعْتُ أَبَا الْبَخْتَرِيِّ الطَّائِيَّ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهما - عَنِ السَّلَمِ فِي النَّخْلِ. قَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ، حَتَّى يُؤْكَلَ مِنْهُ وَحَتَّى يُوزَنَ. فَقَالَ الرَّجُلُ وَأَيُّ شَيْءٍ يُوزَنُ قَالَ رَجُلٌ إِلَى جَانِبِهِ حَتَّى يُحْرَزَ.

**ترجمه:**-ابوالبختری رحمه الله فرمائی ماد ابن عباس رضی الله عنهما نه تپوس اوکړو هغه کهجورې چه په ونه

(۱) عمدة القاری:۱۲/۶۶ والنهایة فی غریب الحدیث والامر:۲/۷۰٤.
(۲) کشف الباری:۲/۱۸۹:
(۳) کشف الباری:۳/۲۶۸.
(٤) وأیضًا أحرجه البخاری فی کتاب السلم باب السلم فی النخل رقم الحدیث۲۲٤۸، ۲۲۵۰ ومسلم فی البیوع باب النهی عن بیع لثمار قبل بدوصلا حهما بغیر شرط القطع رقم الحدیث:۳۸۷۳.

پوزې لګیدلې وی په هغې کښې سلم کول څنګه دی؟ هغوی اوونیل چه رسول الله ﷺ په ونه باندې لګیدلې کهجورې خرڅولونه منع فرمائیلې ترکومې چه هغه دَ خوراك قابل نه شی اودَ وزن لائق نه شی یوسړی اوونیل دَ وزن نه څه مرادې؟ کوم سړې چه هغه سره خواکې ناست وو هغه اوونیل یعنی دَ اندازه کولولائق شی.

## رجال الحدیث

**ادم**: - دا آدم بن ابی ایاس رحمه الله دې. [۱]

**شعبة**: - دا شعبة بن الحجاج رحمه الله دې. [۲]

**عمرو**: - داعمرو بن مرة بن عبدالله المرادی الاعمی الکوفی رحمه الله دې. دَدوی تذکره **کتاب الاذان باب تسویة الصفوف عند الاقامة وبعدها** کښې تیره شوې ده.

**ابوالبختری سعید بن فیروز کوفی الطائی**: - دَ دوی رحمه الله انتقال ۸۳ هجری کښې شوې دې. [۳]

**اساتذه**: -هغوی رحمه الله دَ حارث اعور، حبیب بن ابی ملیکه، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن عمربن خطاب، حضرت ابوبرزة اسلمی، حضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنهم نه روایات نقل کړی دی. بل دَدې حضراتو نه ئی مرسلاً روایت نقل کړی دی. حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه حذیفه بن الیمان رضی الله عنه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه علی بن ابی طالب رضی الله عنه اوعمربن خطاب رضی الله عنه. [۴]

**تلامذه**: -دَ هغوی رحمه الله نه حبیب بن ابی ثابت، ابوالحجاف، داؤد بن ابی عوف، زید بن جبیر، سلمه بن کهیل، عبدالاعلی بن عامر، عطاء بن سائب او عمرو بن مکرة وغیرهم رحمهم الله روایات نقل کړی دی. [۵]

یحیی بن معین، ابوزرعه او ابوحاتم رحمهم الله فرمائی ثقة. [۶] حضرت حبیب بن ابی ثابت رحمه الله فرمائی زه او ابوالبختری الطائی او سعید بن جبیر رحمه الله یوځائی جمع شو نو شیخ طائی رحمه الله زمونږ دټولونه دَزیات علم خاوندَ او فقیه وو. [۷] حضرت بلال بن خباب رحمه الله فرمائی **کان من أفاضل الکوفة**.

---

[۱] کشف الباری: ۱/۶۷۸.

[۲] کشف الباری: ۱/۶۷۸.

[۳] تهذیب الکمال: ۱۱/۳٤ تاریخ البخاری الکبیر: ۳/ الترجمة: ۱۶۸٤.

[٤] تهذیب الکمال: ۱۱/۳۲.

[۵] حواله سابقه.

[۶] حواله نیز الجرح والتعدیل: ٤/۱ والترجمة: ۲٤۱.

[۷] حواله مذکوره.

**دَ حدیث تشریح**:- کله چه ابن عباس رضی الله عنهما دَ سائل په جواب کښې اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ قبل الاکل او قبل الوزن یعنی دَ خوراك او وزن کولو نه لاتې کیدو په صورت کښې په ونه کښې لګیدلې کهجورو کښې دَ بیع سلم نه منع فرمائیلې ده نو یواشکال راپیداشو ترکومې پورې چې کهجورې په ونه کښې لګیدلې وی تر هغه وخت پورې دَدې دَ وزن کولو څه امکان نه وی نودلته دَ قبل الوزن قید ولې اولګولې شو؟ نویوصاحب چه دَهغوی په اړخ کښې ناست ووهغه اوونیل چه دَدې دامطلب نه دې کوم چه ته خیال کوې بلکه دَدې مطلب دادې ترکومې پورې چه دَدې اندازه کولې شی یعنی دَ وزن نه حقیقی معنی مرادنه ده بلکه اندازه لګول مراد دی بل دَدې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت او نورو ابحاث حدیث دَ وړاندې په ضمن کښې تیرشوی دی.

**قوله**: (فقال الرجل) وقوله (قال رجل إلى جانبه):- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه نه خود دَغه سوال کونکی نوم معلوم شواونه دَتفسیر کونکی.[1] علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دَ سائل نه مراد پخپله ابو البختری رحمه الله دې.[2]

وَقَالَ مُعَاذٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ أَبُو الْبَخْتَرِيِّ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- مِثْلَهُ.[۲۱۳۱، ۲۱۳۲ وانظر: ۱۴۱۵]

## رجال الحدیث

**معاذ**:-دامعاذ بن معاذ التیمی قاضی بصره رحمه الله دې. دَدوی تذکره کتاب الاذان باب إذا اقیمت الصلاة فلاصلاة إلا المکتوبة کښې تیره شوې ده.

**شعبة**:-دا شعبه بن الحجاج رحمه الله دې.[3]

**دَتعلیق تفصیل**:-علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا تعلیق علامه اسماعیلی رحمه الله یحیی بن محمد رحمه الله عن عبید الله بن معاذ عن ابیه په طریق سره موصولاً ذکرکړې دې.[4] په سابقه حدیث کښې وو شعبه أخبرنا عمرو قال سمعت أبا البختری قال سالت ابن عباس رضی الله عنهما اودلته دی شعبة عن عمرو قال أبوالبختری سمعت ابن عباس رضی الله عنهما الخ یعنې شعبه رحمه الله دا روایت عمرو بن مرة رحمه الله نه په صیغه دَاخبار او عنعنه دواړو طریقوسره نقل کوی.

---

[1] فتح الباری: ۴۵۴/۴.
[2] شرح الکرمانی: ۸۸/۱۰.
[3] کشف الباری: ۶۷۸/۱.
[4] عمدة القاری: ۶۷/۱۲ تغلیق التعلیق: ۲۷۵/۳.

# ۴-باب: السلم فی النخل

## په ونه کښې چه کومې کهجورې لګیدلې وی په هغې کښې عقدسلم کول

**د ترجمة الباب مقصد** - ددې باب نه امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه د ونې په کهجورو کښې بیع سلم جائزده. [1] دې نه پس به هم هغه سوال پیدا کیږی چه قبل بدو الصلاح به دا سلم وی یابعد بدو الصلاح دامسئله په تفصیل سره تیره شوه.

[حدیث ۲۱۳۱ / ۲۱۳۲] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ-رضی الله عنهما-عَنِ السَّلَمِ فِي النَّخْلِ فَقَالَ نُهِيَ عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى يَصْلُحَ، وَعَنْ بَيْعِ الْوَرِقِ نَسَاءً بِنَاجِزٍ.

وَسَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ السَّلَمِ فِي النَّخْلِ، فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ-صلى الله عليه وسلم-عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى يُؤْكَلَ مِنْهُ، أَوْ يَأْكُلَ مِنْهُ، وَحَتَّى يُوزَنَ. [2]

**ترجمه**:-ابوالبختری رحمه الله فرمائی چه ما دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه دهغه کهجوروباره کښې کومې چه په ونه کښې لیګیدلې وی کښې د بیع سلم متعلق تپوس اوکړو هغوی اوونیل کهجورې چه ترکومې پورې په پخیدو نه وی راغلې ترهغه وخته پورې دهغې خرڅول منع دی دغه شان سپین زر د سرو زرو په بدله کښې چه کله یوطرف ته نقدې او بل طرف ته قرض وی خرڅول جائزنه دی. اوما دحضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما نه په ونه کښې لیګدلې کهجورو کښې د سلم کولوتپوس اوکړو هغوی اوونیل رسول الله صلی الله علیه وسلم په ونه لګیدلې کهجورې خرڅولونه منع فرمائیلې ترکومې چه هغه د خوړلواودوزن کولو قابل نه شی.

## رجال الحدیث

**ابوالولید**:- دا ابوالولید هشام بن عبدالملك الطیالسی رحمه الله دې. [3]

**شعبة**:- دا شعبه بن حجاج رحمه الله دې. [4]

**عمرو**: داعمروبن مرة رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب الاذان باب تسویة الصفوف الخ کښې تیره شوې ده.

**ابوالبختری**:- دابوالبختری سعیدبن فیروز طائی احوال ماقبل باب کښې تفصیل سره تیرشو.

---

[1] عمدة القاری:۱۲/۶۷تغلیق التعلیق:۳/۲۷۵..

[2] أما روایة بن عمر رضی الله عنهما فقدمرتخریجه فی کتاب الزکوة باب من باع ثماره أونخله أو أرضه أو زرعه وقد وجب فیه العشر أو الصدقه الخ رقم الحدیث:۱۴۸۶، وأما مسند ابن عباس رضی الله عنه فقد مرتخریجه فی الحدیث السابق.

[3] کشف الباری:۲/۳۸.

[4] کشف الباری: ۱/۶۷۸.

**لغات:- النساء** بفتح النون وبالمد والقصر یعنی تاخیرسره، قرض یقال نسات الشئ نسأ أنساه إنساء، إذا أخرته[1]

**ناجز** حاضر نجزینجز(ن نه حاضریدل، حاصلیدلو په معنی کښې دی.[2]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت ښکاره دې.

**دَ حدیث تشریح:-** دَدې حدیث دَ بعض مسائلوبحث په وړاندې باب کښې تیرشو. دلته شراح بخاری رحمهم الله کوم چه دَ شوافع نه دی دَ یوې مسئلې اثبات کړې دې چه هغوی دا روایت په سلم حال باندې محمول کوی.[3]

یوسلم مؤجل دې دَ کوم چه جمهورقائل دی او یو سلمِ حال یعنی فوراً سلم فیه ته رب السلم حواله کول لکه چه دَامام شافعی رحمه الله مسلك دې. خود احنافو اوجمهورو علماؤ په نیز دَسلم مؤجل کیدل ضروری دی لکه چه صریح نصوص په دې باندې دلالت کوی چه دَ صحت سلم دَپاره اشتراط اجل ضروری دې.[4]

[حدیث ۲۱۳۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ-رضي الله عنهما-عَنِ السَّلَمِ فِي النَّخْلِ فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ حَتَّى يَصْلُحَ، وَنَهَى عَنِ الْوَرِقِ بِالذَّهَبِ نَسَاءً بِنَاجِزٍ.

وَسَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى يَأْكُلَ أَوْيُؤْكَلَ، وَحَتَّى يُوزَنَ. قُلْتُ وَمَا يُوزَنُ قَالَ رَجُلٌ عِنْدَهُ حَتَّى يُحْرَزَ. [ر ۲۱۳۰]

## رجال الحدیث

**محمدبن بشار:-** دامحمدبن بشار بن عثمان بصری رحمه الله دې.[5]

**غندر:-** داغندرمحمدبن جعفر دې.[6] اودَ نورو رواة احوال وړاندې حدیث کښې تیرشوی دی.

دا هم دَدغه حدیث مذکور دویم طریق دې او په دې کښې دی: نهى النبى صلى الله تعالى عليه وسلم خودَ ابوزر او ابوالوقت په روایت کښې دی: نهى عمر. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَ حضرت

---

[1] النهایة: ۷۳۳/۲.

[2] النهایة:۷۱٤/۲.

[3] فتح الباری:٥٤٦/٤.

[4] بدائع الصنائع:۲۱۲/٥.

[5] کشف الباری:۲٥٨/٣.

[6] کشف الباری: ۲٥٠/۲.

عمر رضی الله عنه منع کول خودهغه د رسول الله ﷺ نه د سماع د وجې نه دی اویا دهغوی دخپل اجتهاد په سبب سره دی. (۱)

# ۵-باب: الکفیل فی السلم

## په عقد سلم کښې کفیل کول

**د ترجمة الباب مقصد اود فقهاؤ د اختلاف بیان:-** کفیل ځکه کولې شی چه د دین د ضایع کیدو او هلاکیدو اندیښنه نه وی. رب السلم چونکه مسلم الیه ته نقدرقم ورکوی اومسلم الیه مسلم فیه به روستو پیش کوی نود جمهورو په نیز رب السلم ته دا اختیار دې چه دمسلم فیه دپاره یوکفیل مقررکړی اوهغه دې خبرې ضمانت ورکړی چه مثلاً یوه میاشت پس به مسلم الیه. مسلم فیه رب السلم ته حواله کوی اوکه چرې ته مسلم فیه حواله نه کړو نود رب السلم پیسې به واپس کوی. نولکه څنګه چه په نورو دیونو کښې کفیل جوړول جائزدی نودلته هم دغه شان جائزدې. (۲)

امام حسن بصری رحمه الله اوامام اوزاعی رحمه الله او په یوروایت کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله دعدم جواز قائل دی. امام بخاری رحمه الله ددې ترجمة الباب په ذریعه دجمهورو تائید کوی.

[حدیث ۲۱۳۳] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا يَعْلَى حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ-رضی الله عنها- قَالَتِ اشْتَرَى رَسُولُ اللَّهِ-صلی الله علیه وسلم- طَعَامًا مِنْ يَهُودِيٍّ بِنَسِيئَةٍ، وَرَهَنَهُ دِرْعًا لَهُ مِنْ حَدِيدٍ. [ر: ۱۹۶۲]

**ترجمه:-** حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی حضورپاک د یویهودی نه په قرض باندې غله واخسته او خپله د اوسپنې زغره ئی هغه سره ګانړه کیخوده.

## رجال الحدیث

**محمدبن سلام:-** دامحمدبن سلام بیکندی رحمه الله دې (۴)

**یعلی:-** دایعلی بن عبیدالطنافسی الحنفی الکوفی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب التیمم باب التیمم ضربة واحدة کښې تیره شوې ده.

**الاعمش:-** دا اعمش سلیمان بن مهران رحمه الله دې. (۵)

---

(۱) عمدة القاری ۱۲/۹۷ فتح الباری: ۴/۵۴۴.

(۲) بدائع الصنائع: ۵/۵/۲۱۴ المغنی: ۱/۹۴۵.

(۳) مرتخریجه فی البیوع باب الشراء النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بالنسیئة رقم الحدیث ۲۰۶۸.

(۴) کشف الباری: ۲/۹۳.

(۵) کشف الباری: ۲/۲۵۱.

**ابراهیم نخعی**:- دا ابراهیم بن یزید نخعی رحمه الله دې.[1]

**اسود**:- دا اسود بن یزید النخعی رحمه الله دې دَدوی تذکره کتاب العلم **باب من ترک بعض الاختیار مخافة ان یتصرفهم بعض الناس** کښې او حضرت عائشه رضی الله عنها تذکره خیر هم په کشف الباري[2] کښې تیره شوې ده.

**دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت**:- علامه عینی رحمه الله فرمائی چه بعض علماء فرمائی چه دَدې حدیث ترجمة الباب سره مناسبت نشته. علامه کرمانی رحمه الله په جواب کښې فرمائي که دَ کفالت نه ضمانت مراد واخستې شی نو مطابقت به پیداشی ځکه چه شیٔ مرهون دَ قرض دَحفاظت دَپاره ضامن دې ځکه چه که دَځه وجې نه دَ قرض واپسی متعذرشی نودغه شیٔ مرهون دَهغې په عوض کښې خرڅولې شی. بل داهم وئیلې شی چه امام بخاری رحمه الله کفاله په ګانړه باندې قیاس کړې ده اودَ دواړو علت جامعه دَ دواړو دَ وثیقه په توګه کیدل دی.[3]

**دَ حدیث تشریح**:- حضوراکرم ﷺ وفات سره نیزدې دَ ابوغفاری یهودی نه چه کوم دیرش صاع قرض اخستې وو او خپله دَ اوسپنې زغره ئې هغه سره ګانړه کیخودې وه. اوس ښکاره خبره ده چه هغه ګانړه کیخودل هم دَدې دَپاره وو چه دَقرض دَ اداکولودَپاره یوه وثیقه شی. دغه شان کفیل هم داسې وی چه دَ پیسو دَ ضایع کیدواندیښنه نه وی اودَ یووثیقې شکل پیداشی نو په قرض کښې چه څنګه کفیل مقررول ګانړه کیخودل جائزدی دغه شان په سلم کښې هم کفالت جائزدې.

## ۶-باب: الرهن فی السلم

### په عقد سلم کښې ګانړه کیخودل

**دَ ترجمة الباب مقصد اودَ فقهاوُ اختلاف**:- امام بخاری رحمه الله دَ کفالت مسئله بیانولونه پس اوس دَ ګانړې مسئله بیانوی چه رب السلم دَ راس المال په بدله کښې دَ مسلم الیه نه څه څیز دَ ګانړه کیخودو مطالبه اوکړی نو جائزده. ځکه چه کفالت دَ توثق دَپاره وی او ګانړه هم دَ وثیقه دَپاره وی اودَ دې مقصد هم دغه وی که چرې مسلم الیه په وخت دَ اجل کښې مسلم فیه پیش نه کړې شی نو بیا هغه ته پیسې ورکول پکاردی. اوس که چرې هغه نه پیسې ورکوی او نه مسلم فیه نورب السلم دَ شیٔ مرهون په ذریعه سره خپل قرض وصول کولې شی. دَ جمهوررو په نیز داسې ګانړه کیخودل جائزدی. سعیدبن جبیر رحمه الله حسن بصری رحمه الله امام اوزاعی رحمه الله او په یوروایت کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله رهن فی السلم ته ناجائزوئیلی دی. لکه څنګه چه دې حضراتو کفالة فی السلم ناجائزګرخولې وو او امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة االباب کښې دَ

---

[1] کشف الباری: ۲/۲۵۳.

[2] کشف الباری:۱/۲۹۱.

[3] شرح الکرمانی:۱۰/۹۰ عمدة القاری:۱۲/۶۸.

جمهورو تائید اوکړو او امام بخاری رحمه الله د دلیل په توګه د حضرت عائشه رضي الله عنها حدیث پیش کړې دې. هغه روایت څنګه چه د کفالت په ثبوت کښې مفید دې دغه شان هغه د رَهن یعنی ګانړې په ثبوت کښې هم مفید دې. او د استدلال تقریر په ماقبل کښې تیرشوې دې.

[حدیث ۲۱۳۴](۱) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ قَالَ تَذَاكَرْنَا عِنْدَ إِبْرَاهِيمَ الرَّهْنَ فِي السَّلَفِ فَقَالَ حَدَّثَنِي الأَسْوَدُ عَنْ عَائِشَةَ -رضي الله عنها- أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- اشْتَرَى مِنْ يَهُودِيٍّ طَعَامًا إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ، وَارْتَهَنَ مِنْهُ دِرْعًا مِنْ حَدِيدٍ.[ر: ۱۹۶۲]

## رجال الحدیث

**محمدبن محبوب:**- محمدبن محبوب ابوعبدالله بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الغسل باب تفریق الغسل والوضوء کښې تیره شوې ده.

**عبدالواحد:**- داعبدالواحد بن زیاد رحمه الله دې.(۲)

**اعمش:**- دا اعمش سلیمان بن مهران رحمه الله دې.(۳)

**ابراهیم نخعی:**- داابراهیم بن یزید نخعی رحمه الله دې.(۴)

**اسود**- دا اسود بن یزید النخعی رحمه الله دې(۵)

**عائشه:**- دا ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها ده د هغوی ذکرخیرهم تیرشوې دې.(۶)

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- د حدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې.

**د حدیث تشریح:**

**قوله: (تذاکرنا عندابراهیم الرهن فی السلف):**- په دې روایت کښې ذکردې چه د ابراهیم نخعی رحمه الله په مخامخ د رهن فی السلف تذکره اوشوه دا روایت په کتاب البیوع کښې هم تیرشوې دې.(۷) هلته د رهن فی السلم ذکروو بهرحال چه کله دا تذکره اوشوه نوحضرت

---

۱) مرتخریجه فی البیوع باب شراء النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بالنسئة رقم الحدیث: ۲۰۶۸.

۲) کشف الباری:۲/۲۵۱.

۳) کشف الباری:۲/۲۵۱.

۴) کشف الباری: ۲/۲۵۳.

۵) کشف الباری: ٤/۵۵۳.

۶) کشف الباری: ۱/۲۹۱.

۷) صحیح البخاری کتاب البیوع باب شراء النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بانسیئة.

ابراهیم نخعی رحمه الله دَحضرت عائشه رضي الله عنها روایت پیش کولوسره اوخودل چه په سلم کښې رهن یعنی ګانړه کیخودل جائزدی. یعنی چه دَ مسلم الیه نه کله دا مطالبه اوشی چه هغه دې د راس المال په بدله کښې خپل څه څیز رب السلم سره ګانړه کیږدی نودا صحیح ده. ددې نه پس په دې پوهه شنی چه داکوم عرض کړې شوې وو چه دکتاب البیوع په روایت کښې دَ رهن فی السلم لفظ دې او دلته رهن فی السلف لفظ دې نودَدې په سلسله کښې ټول شراح حافظ ابن حجر رحمه الله[1] علامه عینی رحمه الله[2] علامه قسطلانی رحمه الله[3] وغیرهم هلته دا ونیل چه هلته دَ سلم نه مراد سلم لغوی دې سلم عرفی مرادَ نه دې ځکه چه سلم عرفی خو بیع الدین بالعین ته وانی نوهلته دامرادنه دې صرف قرض مراددې اودا سلم لغوی دې.

**دَ بخاري دَ شراح تسامح:-** معلومیږی داسې چه دَدې حضراتو رائې په تسامح باندې ده اوامام بخاری رحمه الله هلته هم سلم عرفی مراد اخستې دې اودَدې ثبوت دادې چه دلته کتاب السلم روان دې او په دې کښې هم امام بخاری رحمه الله هم دا روایت ذکرکړې دې. اوس ښکاره خبره ده چه دلته سلم عرفی مراددې سلم لغوی مراد نه دې. امام بخاری رحمه الله چه دلته کوم لفظ ذکرکړې دې هغه دادې رهن في السلف او په کتاب البیوع کښې چه کوم لفظ ذکرکړې وو هغه دا وو رهن في السلم. دا عجیبه خبره ده چه کوم لفظ صراحةً دَ ترجمة الباب مطابق وو هغه خو امام بخاری رحمه الله په کتاب البیوع کښې ذکرکړو اوکوم لفظ چه محتمل وو یعنی لفظ سلف هغه امام بخاری په سلم کښې ذکرکړو. دا محتمل لفظ دلته په کتاب السلم کښې ذکرکولوسره امام بخاری رحمه الله ارشاره کول غواړی چه دَ سلف نه مراد سلم عرفی او اصطلاحی دې سلم لغوی مراد نه دې.

**ادله فقهاء:-** جمهور رهن فی السلم دَجواز قائل دی اودَهغوی دلیل دَالله تعالی ارشاد مبارک ﴿إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ﴾ (بقرة: ۲۸۲، ۲۹۳) نوبیع سلم هم دَدې آیت په عموم کښې داخل ده اوبعض حضرات دَدې دَعدم جوازقائل دی.

دَ فریق ثانی دلیل په سنن ابی داؤدکښې دَ ابوسعیدخدری رضي الله عنه روایت دې. **من اسلم فی شئ فلایصرفه إلی غیره** اودَدې نه دَ استدلال وجه داده چه شئ مرهون دَ رب السلم په قبضه کښې دَهغه دَتعدی دَ وجې نه هلاك شو نو رب السلم، دَ مسلم فیه نه علاوه دَخپل حق وصول کونکې جوړشو وذا لایجوز او دویم دلیل دَ دارقطنی رحمه الله دَ ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې چه **من أسلم فی شئ فلایشترط علی صاحبه غیرقضائه** اول خودا حدیث سنداً ضعیف دې لکه چه علامه عینی

---

[1] فتح الباری: ۳۸۳/٤.
[2] عمدة القاری: ۱۸۲/۱۱.
[3] إرشاد الساری: ٤/ ۱۷ – ۱۸.

ونیلې دي او بل که دا صحیح هم اوګنړلې شي نودا به په داسې شرط باندې محمول کولې شي چه د عقد د مقتضاء نه منافی وي.[1]

## ۷-باب: السلم إلى أجل معلوم

وَبِهِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَأَبُو سَعِيدٍ وَالأَسْوَدُ وَالْحَسَنُ . وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ لاَ بَأْسَ فِي الطَّعَامِ الْمَوْصُوفِ بِسِعْرٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ، مَا لَمْ يَكُ ذَلِكَ فِي زَرْعٍ لَمْ يَبْدُ صَلاَحُهُ.

په عقد سلم کښې میعاد معین کېدل پکاردی. ابن عباس رضی الله عنهما او ابوسعید خدری رضی الله عنه او اسود اوحسن بصری رحمه الله هم دغه قول دې او عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی که د غلې نرخ اود هغې صفت بیان کړې شي نو میعاد معین کولوسره په دې کښې سلم کولو کښې قباحت نشته اودا غله چرته دیوداسې پټی نه وي چه غله ئې تراوسه پخه نه وي.

**تنقیح المذاهب:-** د سلم دوه قسمونه دي یوسلم حال او بل سلم مؤجل. د سلم حال مطلب دادې چه مسلم الیه فی الفور مسلم فیه، رب السلم ته به حواله کوي او په سلم مؤجل کښې میعاد مقرروي. جمهور علماء د سلم مؤجل قائل دی هغوی فرمائی چه د سلم ضرورت خو پیښیږي هم ددې دپاره چه بعض وخت د سلم فیه په هغه وخت حاضرول ګران او مشکل وي په دې وجه په دې کښې اجل مقررولې شي ګنی که مسلم فیه هم دغه وخت موجود وي او فی الحال د هغې احضاراوتسلیم آسان وي نوبیاد سلم معامله کولوڅه ضرورت دې نیغ په نیغه بیع کیدل پکاردی د عام بیوعو په شان. امام شافعی رحمه الله د سلم مؤجل سره سره د سلم حال د جواز هم قائل دې.[2]

بهرحال کله چه سلم مؤجل وي نو په هغې کښې به څومره اجل مقررولې شي د دې باره کښې اختلاف دې. امام احمد رحمه الله فرمائی چه یوه میاشت د دې سره نیزدې موده کیدل پکاردی.[3] مالکیه فرمائی چه نیمه میاشت موده پکارده.[4] د احنافو قول په دې کښې مختلف دې یوقول د امام احمد بن حنبل رحمه الله په شان او دویم قول دادې چه کم نه کم درې ورځې مهلت کیدل پکاردی. دریم قول دادې چه د نیمې ورځې نه زیات وخت چه وي.[5]

**د ترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری رحمه الله د دې ترجمة الباب سره د جمهورعلماؤ تائید کوي چه سلم مؤجل وي نه چه حال. اودا ځکه چه امام بخاري رحمه الله د سلم حال د پاره هیڅ یوروایت نه دې ذکر کړې اونه ئې د دې طرف ته څه اشاره کړې ده.[6]

---

[1] عمدة القاری:۱۲/۹۸ فتح الباری: ۴/۵۴۵.

[2] عمدة القاری:۱۲/۶۹ ، ۷۰وفتح الباری: ۴/۵۴۸.

[3] المغنی لابن قدامة:۱/۹۳۷.

[4] بدایة المجتهد ص: ۶۰۱.

[5] فتح القدیر: ۷/۸۳.

[6] فتح الباری: ۴/۵۴۸، عمدة القاری:۱۲/۶۹.

**قوله: وبه قال ابن عباس وابوسعید والاسود والحسن الخ** یعنی دا حضرات هم جمهورو سره دی.

**دَتعلیقات تفصیل** - دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما تعلیق امام شافعی رحمه الله دَ **سفیان عن قتادة عن ابوب عن ابی حسان بن مسلم الاعرج** په طریق سره موصولاً نقل کړې دې.(۱) حاکم رحمه الله هم په دې طریق سره دا نقل کړې دې اودَدې تصحیح ئې کړې ده.(۲) او ابن ابی شیبه رحمه الله دا په یوبل طریق سره موصولاً ذکرکړې دې.(۳)

دَحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه تعلیق شیخ عبد الرزاق رحمه الله **نبیح الغزی الکوفی عن ابی سعید** په طریق سره موصولاً ذکرکړې دې. (۴) دغه شان امام بیهقی رحمه الله سنن کبیرکښې **عبدالله بن یحیٰ بن عبدالجبار** په طریق سره موصولاً نقل کړې دې.(۵)

دَ حضرت اسود رحمه الله تعلیق امام ابن ابی شیبه رحمه الله **ثوری عن ابی اسحاق عنه** په طریق سره موصولاً ذکرکړې دې.(۶) دَحضرت حسن رحمه الله تعلیق شیخ سعیدبن منصور رحمه الله **هشیم عن یونس بن عبید عنه** په طریق سره موصولاً ذکرکړې دې.(۷)

**قوله: (وقال ابن عمر لاباس فی الطعام الموصوف بسعر معلوم إلی اجل معلوم مال یک ذلک فی زرع لم یبد صلاحه)** داتعلیق هم دَ جمهورو په تائید کښې نقل کړې شوې دې اودا تعلیق امام مالک رحمه الله خپل موطا کښې **عن نافع عنه** په طریق سره موصولاً ذکرکړې دې. (۸) دغه شان ابن ابی شیبه هم **عبیدالله بن عمر عن نافع** په طریق سره دا موصولاً نقل کړې دې. (۹)

---

(۱) أخرجه الامام الشافعي رحمه الله تعالى في كتاب الام:۳/۸۰.

(۲) رواد الحاكم رحمه الله تعالى في مستدركه من هذا الوجه وصححه الفتح:۴/۴۳۵وعمدة القاري:۱/۶۹.

(۳) وقال ابن حجر رحمه الله تعالى: وروى ابن أبي شيبة من وجه آخر عن عكرمه عن ابن عباس رضى الله عنهما الخ. فتح:۴/۴۳۵.

(۴) وقال العيني رحمه الله تعالى: وتعليق أبي سعيد رضى الله عنه وصله عبدالرزاق رحمه الله من طريق نبيح الغزى الكوفي رحمه الله تعالى عن أبي سعيد رضى الله تعالى عنه : عمدة القاري:۱۲/۶۶.

(۵) ۲۲/۷ كتاب البيوع باب لايجوز السلف حتى يكون بثمن معلوم الخ.

(۶) كان في الفتح:۴/۴۳۵.

(۷) قاله ابن حجر رحمه الله الفتح: ۴/۴۳۵.

(۸) موطا مالک:۲/۶۴۴ كتاب البيوع باب السلف في الطعام.

(۹) قال العيني. عمدة القاري:۱۲/۹۹.

[حديث ٢١٣٥] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَثِيرٍ عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- الْمَدِينَةَ وَهُمْ يُسْلِفُونَ فِي الثِّمَارِ السَّنَتَيْنِ وَالثَّلَاثَ، فَقَالَ «أَسْلِفُوا فِي الثِّمَارِ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ». وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ وَقَالَ «فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ». [ر: ٢١٢٤]

## رجال الحديث

**أبونعيم:**- داابونعيم الفضل بن دكين رحمه الله دي. [1]

**سفيان:**- دا امام ابوسفيان بن عيينه رحمه الله دي. [2]

**ابن ابى نجيح:**- دا ابن ابى نجيح عبدالله بن يسار رحمه الله دي. [3]

**عبدالله بن كثير:**- داعبدالله بن كثير رحمه الله دي. [4]

**أبوالمنهال:**- داعبدالرحمن ابوالمنهال رحمه الله دي. دَدوى تذكره كتاب البيوع باب التجارة في البركښې تيره شوې ده.

**ابن عباس:**- اودَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما تذكره هم تيره شوې ده. دَ حديث ترجمه او تخريج باب السلم فى كيل معلوم كښې تيرشوې دي. [5]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت قول رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم إلى أجل معلوم دَ وجې نه واضح دي.

**قوله:** (وقال عبدالله بن الوليد الخ):- داعبدالله بن الوليد العدنى رحمه الله دي. دَدوى تذكره كتاب الحج باب رمى الجمار من بطن الوادى كښې تيره شوې ده. دا تعليق جامع سفيان كښې هم په دې طريق سره موصولاً نقل كړې شوې دي. [6]

---

[1]) كشف البارى: ۶۶۹/۲.

[2]) كشف البارى: ۲۳۸/۱.

[3]) كشف البارى: ۳۰۲/۳.

[4]) كشف البارى كتاب السلم باب السلم فى كيل معلوم.

[5]) كشف البارى: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

[6]) عمدة القارى: ۱۰۰/۱۲ تغليق التعليق: ۲۷۱/۳.

**د تعليق فائده:-** په دې تعليق كښې د تحديث بيان دې او په ماقبل طريق كښې عنعنه ذكر وو.(١)

[حديث ٢١٣٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ سُلَيْمَانَ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي مُجَالِدٍ قَالَ أَرْسَلَنِي أَبُو بُرْدَةَ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَدَّادٍ إِلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى فَسَأَلْتُهُمَا عَنِ السَّلَفِ. فَقَالاَ كُنَّا نُصِيبُ الْمَغَانِمَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَكَانَ يَأْتِينَا أَنْبَاطٌ مِنْ أَنْبَاطِ الشَّأْمِ فَنُسْلِفُهُمْ فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالزَّبِيبِ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى. قَالَ قُلْتُ أَكَانَ لَهُمْ زَرْعٌ، أَوْ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ زَرْعٌ قَالاَ مَا كُنَّا نَسْأَلُهُمْ عَنْ ذَلِكَ. [ر ٢١٢٧]

## رجال الحديث

**محمدبن مقاتل:-** دامحمد بن مقاتل مروزى رحمه الله دې.(٢)

**عبدالله:-** دا عبدالله بن مبارك رحمه الله دې.(٣)

**سفيان:-** دا سفيان ثورى رحمه الله دې.(٤)

**سليمان شيبانى:-** دا سليمان بن ابى سليمان فيروزالشيبانى ابواسحاق الكوفى رحمه الله دې د دوى تذكره كتاب الحيض باب مباشرة الحائض كښې تيره شوې ده.

**محمدبن ابى مجالد:-** د محمدبن ابى مجالد ذكرخير باب السلم فى وزن معلوم كښې تيرشوې.

**ابوبرده:-** دوى ابوبرده عامر بن ابى موسىٰ اشعرى رضي الله عنه دې. د دوى تذكره باب السلم من ليس عنده اصل كښې تيره شوې.

**عبدالله بن شداد:-** دوى صحابى رسول صلى الله عليه وسلم عبدالله بن شداد بن الهاد رضي الله عنه دې. د دوى تذكره هم په مذكوره باب كښې تيره شوې ده.

**عبدالرحمن بن ابزى:-** دوى صحابى رسول صلى الله عليه وسلم عبدالرحمن بن ابزى رضي الله عنه دى. د دوى تذكره هم په مذكوره باب كښې تيره شوې ده.

**عبدالله:-** دا عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه دې. د دوى تذكره هم په مذكوره باب كښې تيره شوې ده.

د حديث ترجمه اوتخريج ماقبل كښې **باب السلم الى من ليس عنده اصل** كښې تيره شوې ده.

**د حديث ترجمة الباب سره مطابقت:-** د حديث ترجمة الباب سره مطابقت قول رسول الله صلى الله عليه وسلم **إلى أجل مسمى** د وجې نه واضح دې.

---

(١) فتح البارى:٥٤٧/٤.

(٢) كشف البارى:٢٠٦/٣.

(٣) كشف البارى:٤٦٢/١.

(٤) كشف البارى:٢٧٨٩/٢.

# ۸-باب: السلم إلى أن تنتج الناقة

## سلم کښې دامیعاد لګول چه کله اوښه بچې راوړی

**حل اللغات -تنتج** صیغه مجهول سره ده مرادې دې إلى أن تلد الناقة ترهغې چه اوښه بچې راوړی. **یقال: نتجت الناقة إذا ولدت فهی متوجة** (۱)

**والنتاج**: اسم یجمع وضع الغنم والبهائم کلها، نتج ینتج نتجا إذا ولی نتاجها حتی وضعت. (۲) یعنی کله چه دَ اوښې دَ بچې راوړو وخت نیزدې شی ترهغه وخته پورې چه هغه بچې راوړی.

**دَترجمة الباب مقصداودَفقهاؤ اختلاف**:- جمهورفقهاء په دې خبره خومتفق دی چه په عقدسلم کښې به اجل مقرر ولې شی خو آیاداسې اجل چه محتمل وی او په هغې کښې دَ وړاندیوالی او روستوالی امکان وی مقررکولې شی یا اجل بالکل غیرمحتمل اومتعین کیدل پکاردی. په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې. دَ اکثرعلماؤ په نیز اجل متعین اوغیرمحتمل کیدل پکاردی. امام مالک رحمه الله او په یوروایت کښې دَ امام احمد رحمه الله په نیز که چرې داسې اجل مقررکړې شی چه مونږ به تاسوته مسلم فیه هغه وخت اداکوو کله چه فصل کټ کیدل شروع شی نو اوس ښکاره خبره ده چه فصل کټ کیدل کله لس ورځې وړاندې کیږی اوکله لس ورځې روستوکیږی نولکه دغه حضراتو دَ دې تقدم او تاخراجازت ورکړې دې. (۳)خو جمهوردَدې خلاف دی او امام بخاری رحمه الله هم دَ جمهورو تائیدکړې دې اودَ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما روایت ئی نقل کړې دې په کوم کښې چه دی: **کانوا یتبایعون الجزور إلى حبل الحبلة** دَ جاهلیت په زمانه کښې به خلقو اوښ په دې وعده سره اخستلو چه ترکومې پورې دَخیټې والا یعنی حاملې اوښې بچې غټ شی راوړی نوحضورپاک دا غایت ګرځول ناجائزاوګرځول اودا ممانعت ئی دَدې دپاره اوفرمائیلو چه اولاً خوداسې کیدل ضروری نه دی دویم په دې کښې تقدیم اوتاخیر کیدل عین ممکن دی اودا دَمنازعت سبب جوړیدې شی.(۴)

[حدیث ۲۱۳۷](۵) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ أَخْبَرَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ -رضی الله عنه- قَالَ كَانُوا يَتَبَايَعُونَ الْجَزُورَ إِلَى حَبَلِ الْحَبَلَةِ، فَنَهَى النَّبِيُّ -صلی الله علیه وسلم- عَنْهُ. فَسَّرَهُ نَافِعٌ أَنْ تُنْتَجَ النَّاقَةُ مَا فِي بَطْنِهَا. [ر: ۲۰۳۶]

---

(۱) عمدة القاری:۱۲/۱۰۰.

(۲) المغرب:۲/۲۸۵.

(۳) المغنی لابن قدامة مقدلسی رحمه الله ۱/۹۳۷ إرشادالساری:۴/۱۲۲.

(۴) الابواب والتراجم للشیخ الکاندهلوی رحمه الله ص:۱۶۵.

(۵) مرتخریجه فی البیوع باب بیع الغرروحبل الحبلة رقم الحدیث:۲۱۴۳.

**ترجمه** - حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي چه دَ جاهلیت په زمانه کښې به خلقو اوښ په دې وعده اخستلو چه کله دَ حامله اوښې بچې لوئی شی اوبچې راوړی نو حضورپاك دَدې نه منع فرمائیلې. حضرت نافع رحمه الله فرمائی چه حبل الحبلة مطلب دادې چه اوښه خپل بچې راوړی کوم چه دهغې په خیټه کښې دې.

## رجال الحدیث

**موسی بن اسماعیل**: - داموسی بن اسماعیل التبوذکی رحمه الله دې.[1]

**جویریة**: - دا جویریة بن اسماء ابن عبیدالضبعی البصری رحمه الله دې. دَدوی تذکره **کتاب الغسل باب الجنب یتوضاثم ینام** کښې تیره شوې ده.

**نافع**: - دا نافع مولی ابن عمر رضي الله عنهما دې.[2]

**عبدالله**: - دا حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې.[3]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: - دَحدیث ترجمةالباب سره مطابقت قوله: **إلی حبل الحبلة** سره دې. دَ کوم مطلب چه دَ حضرت نافع رحمه الله دَ تفسیرمطابق هم دغه دې چه تردې چه اوښه بچې راوړی اودویم تفسیر دَحضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دې. چه **إلی أن تلدالناقة وتلدولدها** یعنی ترهغې پورې چه اوښه بچې راوړی اوبیاهغه بچې غټ شی اوبچې راوړی.[4]

بسم الله الرحمن الرحیم

# ۴۰- کتاب الشفعة

دَدې ځائی نه امام بخاری رحمه الله کتاب الشفعه شروع کوی. زمونږ دَمدارسو په متداوله نسخوکښې دلته دَ کتاب الشفعه عنوان نشته.[5] اوبعض نسخوکښې دلته دکتاب الشفعه عنوان شته.[6] اوبسم الله الرحمن الرحیم خو امام بخاری رحمه الله خامخاذکرکوی.

**دَ شفعه لغوی او اصطلاحی تعریف**: - **لغة**: شفعة دَ ش په ضمه اوفاء سکون سره دې. اودا شفع نه ماخوذ دې. دَ کوم معنی چه ملاوول او ورضم کول راځی. **ماخوذمن قولهم: کان وتراًفشفعته**

---

[1] کشف الباری: ۱/۴۳۳، ۳/۴۷۷.

[2] کشف الباری: ۴/۶۵۱.

[3] کشف الباری: ۱/۶۳۷.

[4] عمدة القاری: ۱۲/۷۱.

[5] صحیح البخاری: ۱/۳۰۰ طبع: قدیمی.

[6] عمدة القاری: ۱۲/۱۰۱ فتح الباری: ۵/۴۹۹.

باخر، أى جعلته زوجاًله.[1]

اصطلاحاً: په اصطلاح كښې شفعه وائى تملك البقعة جبراً على المشترى بما قام عليه.[2] يعنې بقعه دَ زمكې په هغه قيمتونو كښې دَ كوم په بدله كښې چه مشترى دا اخستې دې، جبراً مالك جوړيدل. يعنى يوسړى په يولاكه روپئى باندې يومكان واخستو بل سړې په دغه مكان باندې حق شفعه دائركولوسره دمشترى دِ رضانه بغيرهغه ته يولاكه روپئى وركولوسره دَ مكان مالك جوړشو دا شفعه ده.

**دَتسميه وجه:-** شفعه ته شفعه ځكه وائى چه شفع هغه مبيع (زمكه كور وغيره)كوم چه دَحق شفعه په ذريعه هغه حاصل كړې دې خپل زمكې سره ملاوونكې او ضم كونكې وى.[3]

**په شفعه كښې دَ فقهاوُدَ مذاهبوبيان:-** ائمه اربعه اوجمهورعلماء دَدې خبرې قائل دى چه شفعه جائزده. اوعلامه ابن المنذر رحمه الله په دې خبره باندې اجماع نقل كړې ده. صرف عبدالرحمن اصم رحمه الله دَدې نه انكاركوى.[4] هغه فرمائى چه په جواز شفعه كښې دَ مالكانو نقصان دې ځكه چه كله مشترى ته داخبره معلومه شى چه هغه داڅيزاخستې او دحق شفعه دَ وجې نه به روستو په زبردستئى سره دَ ده نه اخستې شى نوهغه مشترى به ئى دَاخستونه منع شى اودغه شان شريك به هم دَ اخستو خرڅولونه منع شى. شريك فى حق المبيع، شريك فى نفس المبيع دَ شفعه دعوې دَ ويرې نه به ئى نه اخلى. بل په بيع او شراء كښې تراضى ضرورى ده اوبيع شفعه كښې دَ مشترى رضامندى شامل نه وى په دې وجه دې ته جائزنه شى وئيلې.

**دَ جمهورو دَطرف نه جواب:-** دَ شفعه په جواز باندې احاديث صريحه صحيحه موجوددى. بل دَدې په جواز باندې دَ جمهورعلماء امت اجماع ده. دَدې ډيرزيات مضبوط دلائل كيدوسره مونږ يقيناً داوئيلې شو چه شفعه دَ دغه رضامندئى دَ قانون نه مستثنىٰ ده. پاتې شو دَ اخستونكودَ شفعه دَ ويرې دَ اخستلونه دَ منع كيدو احتمال نوهغه دَ مشاهدې خلاف دې. ترننه پورې دَ امت په شركاء كښې دَاخستلو خرڅولو سلسله جارى اوسارى ده اوهيڅ كله دَاحتمال جواز شفعه دَدې نه مانع جوړنه شو.[5]

**په شفعه كښې دَ فقهاوُدَ مذاهبوبيان:-** په دې خبره خواتفاق دې چه په غيرمنقوله څيزونوكښې شفعه كيدې شى لكه زمكه باغونه وغيره. اوس پاتې شوه داخبره چه په منقوله څيزونوكښې هم شفعه دائركيدې شى اوكه نه؟ نودَ جمهور علماء ائمه اربعه دَ مشهورو رواياتو مطابق كه دَ

---

[1] المغرب: ۴۴۸/۱ طلبة الطلبة فى الاصطلاحات الفقهيه الامام نسفى رحمه الله ص:۲۵۳.

[2] الدرالختار مع رداالمحتار: ۲۱۶/۶.

[3] هداية مع فتح القدير كتاب الشفعة:۲۹۴/۸.

[4] المغنى لابن قدامة المقدسى رحمه الله ۱۱۹۴/۲ إعلاء السنن:۵/۱۷.

[5] حواله بالا مع زيادة سيرة.

زمکې تابع شی او په دې کښې شفعه اوکړې شی یعنی ضمنا او تبعا خو جائزده او بالاستقلال جائزنه ده لکه په تعمیر او ونو کښې دَ زمکې تابع کیدو سره شفعه کولې شی انفراداً تعمیر یا ونوباندې شفعه نه شی کیدې.[1]

عطاء بن ابی رباح رحمه الله فرمائی چه په هرڅیز کښې شفعه کیدې شی که عمارت وی اوکه ونې وی اوهم دغه دَامام مالک رحمه الله هم یوروایت دې. امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی په منقولاتو کښې صرف په حیوانات کښې عقدشفعه کولې شی او بل په هیڅ څیزکښې نه شی کیدلې.[2]

**په منقوله څیزنوکښې دَ شفعه باره کښې دَفقهاؤ مذاهب:-** بیا دَ شفعه مستحقین درې قسمه دی. ① شریك فی نفس المبیع ② شریك فی حق المبیع ③ جار. ائمه ثلاثه فرمائی چه دَ جار (ګاونډی) دپاره هیڅ حق شفعه نشته. امام ابوحنیفه سفیان ثوری ابن ابی لیلی وغیرهم رحمهم الله فرمائی چه شریك فی نفس المبیع مقدم دې. که چرې دې دَ شفعه دعوی پریږدی نو بیا شریك فی حق المبیع اوکه چرې دې ئې هم پریږدی نو ګاونډی اوهمسایه به حقدار وی.[3]

**دلیل فریق اول:-** کوم حضرات چه دَ جاردَ شفعه انکارکوی هغوی دَ جابربن عبدالله رضی الله عنهما حدیث مذکورفی الباب نه استدلال کوی. قضی رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم بالشفعة فی کل مالم یقسم فاذا وقعت الحدود وصرفت الطرق فلا شفعة.[4]

یعنی حضورپاك په هرهغه څیزکښې دَ شفعه حکم ورکړو دکوم تقسیم چه نه وی شوې کله چه حدبندی اوشی او لارې جدا جدا شی نوبیابه شفعه پاتې نه شی. نوددې حدیث مذکور نه داحضرت استدلال کوی چه صرف شریك فی نفس المبیع یا شریك فی حق المبیع ته دَ شفعه حق حاصل دې اوجارته دَشفعه حق حاصل نه دې.

دا حضرات فرائی چه دَ شفعه حق دَ قیاس خلاف ثابت شوې دې ځکه چه په دې کښې دَ بل په مال باندې جبراً اودَهغه دَ رضانه بغیرملکیت حاصلول لازم راځی اوښکاره خبره ده چه دا امر دَمقتضیٰ قیاس خلاف دې. نو شریعت په دې کښې صرف دهغه جائیداد په حق کښې دِ شفعه

---

[1]) إرشاد الساری:۳۱٤/۵فتح الباری:۵۵۱/٤.
[2]) حواله بالا.
[3]) المغنی لابن قدامة: ۱۱۹٤/۵عمدة القاری:۷۲/۱۲.
[4]) وأخرجه البخاری ایضًا فی البیوع باب بیع الشریک من شریکهٖرقم: ۲۲۱۳وباب بیع الارض والدور والمعروض مشاعا:۲۲۱٤ وفی الشرکة باب الشرکة فی الاضین:۲۲۹۵ وباب إذا قسم الشرکاء الدور أو غیرها: ۲٤۹٦ وفی الحیل باب الهبة والشفعة: ٦۹۷٦وأخرجه مسلم: ۱٦۰۸فی المساقاة باب الشفعة والترمذی: ۱۳۷۰فی الاحکام باب إذاحدت الحدود فلاشفعةو: ۱۳٦۹ فی الاحکام باب الشفعة للغائب: ۱۳۱۲وفی البیوع باب ماجاء فی أرض المشترک یرید بعضهم بیع نصیب بعض وأبوداؤد ۳۵۱۳، ۳۵۱٤فی البیوع باب فی الشفعة والنسائی:٤٦۵۰فی البیوع باب بیع المشاع، و:٤۷۰۵ باب الشرکة فی الرباع و:٤٦۰۷باب ذکر الشفعة وأحکامها.

حق باقی پاتې اوساتلو کوم چه غیرتقسیم شوې دې لهذا داحق به د شریعت پورې محدودوی او شفعه جوار د غیرمقسوم د جائیداد په معنی کښې نه دې ځکه چه د تقسیم مشقت او مؤونت او په مصارع بائع باندې په هغه صورت کښې لازم راځی کله چه په اصل یعنی ملکیت کښې شرکت وی د فرع د صورت به اعتبارنه وی یعنی چه ملکیت تقسیم شوې وی نو صرف د ګاونډ د وجې نه به د شفعه حق نه حاصلیږی.

د کلام خلاصه داشوه که چرې شریك فی الملك ته د شفعه حق ورنه کړې شی نود یواجنبی خریدارپه صورت کښې به په بائع باندې د تقسیم مصارف اومشقت لازم راشی چه په هغه به یوبوج ثابت شی لهذا شریك ته د شفعه حق ورکړې شو چه بائع د تقسیم د مصارف د مشقت نه بچ شی لهذا د جوار یعنی ګاونډ په وجه به د شفعه حق نه ثابتیږی. [1]

**دلیل فریق ثانی:-** دا حضرات د ابورافع رضی الله عنه د روایت نه استدلال کوی. **الجار أحق بصقبه** [2]

**قوله: بصقبه** س او ص دواړوسره نقل دې. [3] ګاونډی به د خپل نیزدیکت د وجې نه د شفعه زیات حقداردې.

**دحضرت امام شافعی، علامه بغوی اوعلامه خطابی رحمهم الله اشکال:-** داحضرات فرمائی چه دحدیث ابی رافع رضی الله عنه نه د شفعه په جواز باندې استدلال کول صحیح نه دی د دې دپاره چه اول خودې حدیث مطلب داکیدې شی چه د جارنه مراد هم شریك وی ځکه چه اکثرشریك هم په ګاونډ کښې اوسیږی اوبل دا مطلب هم کیدې شی چه هغه ګاونډی د خپل نیزدیکت دوجې نه ددې خبرې زیات حق لری چه دهغه خیال اوساتلې شی په هغه صدقه اوکړې شی او هغه سره ښه سلوك اوکړې شی. [4]

**جواب:-** خودې حضراتو داتوجیح صحیح نه ده ځکه چه د حضرت ابورافع رضی الله عنه ددې روایت بعض طریق کښې د **ألجار أحق بشفعته** الفاظ نقل دی لکه چه دامام شافعی رحمه الله کتاب اختلاف الحدیث کښې هم دغه روایت نقل دې. [5] دغه شان مسنداحمد سنن ابی داؤد اوسنن ترمذی په روایت کښې دی چه **جار الدار أحق بالدار** [6] دغه شان د خطابی رحمه الله او بغوی رحمه الله

---

[1]) الهدایة شرح بدایة المبتدی:۵/۷ – ۶.

[2]) واخرجه البخاری ایضًا رقم: ۲۹۷۷فی الحیل باب فی الهبة والشفعةو: ۶۹۸۰ باب احتیال العامل لیهدی له، وأبوداؤد: ۳۵۱۶ فی البیوع باب الشفعة والنسائی: ٤۷۰۶فی البیوع باب ذکر الشفعة وأحکامها.

[3]) تحفة الباری کتاب الشفعة: ۹٤/۳.

[4]) إرشادالساری:۲۱۶/۵ - ۲۱۷.

[5]) کتاب اختلاف الحدیث مع کتاب الم: ۵/٤ دارالمعرفة بیروت.

[6]) أخرجه احمد رحمه الله ۵/۸،۱۲،۱۳، ۱۷، ۱۸وأبوداؤد کتاب ا لبیوع باب فی الشفعة حدیث رقم: ۳۵۱۷ والترمذی فی کتاب الاحکام باب ماجاء فی الشفعة حدیث رقم: ۱۳۶۸.

داتوجیه چه د جار حق د قرب د وجهوی او تاسوهغوی سره صله رحمی کوئی اوښه سلوك کوئی صحیح پاتې نه شو

**د احنافو دَطرف نه یوبل جواب:-** دَاحنافودَ طرف نه یوبل جواب داورکولې شی چه **أحق** دَ اسم تفضیل صیغه ده اودَ اسم تفضیل دَ صیغې دَ استعمال قاعده داوی چه مفضل دَمفضل علیه سره په نفس فضیلت کښې شریك ګنړلې شی. نوچه کله چه دَ شریك شفعه زیات حقدارشو نوڅوك داسې هم پکاردې چه دَ ده برابرحقدارنه وی بلکه دَهغه حق کم وی. اوس ښکاره خبره ده چه هغه جار یعنی ګاونډی کیدې شی اوکه چرته دَجارنه ستاسودَ قول موافق شریك واخستې شی نوبیاپه دغه صورت کښې دکم حق لرونکی تعیین به ستاسو دَ پاره ګران شی په دې وجه به داسې وینا کیږی چه دې نه مراد هم جار دې.

بعینه هم دغه اعتراض دَ شوافع دَ طرفه په احنافوباندې هم کیدې شې که چرې جارمراد واخستې شی نوبیابه مطلب وی چه دَجارحق زیات دې نوبیا هغه څوك دې چه دَ ده نه ئی حق کم دې. (۱)

دَ احنافودَطرف نه دَدې دا جواب ورکړې شوې دې چه **الجار أحق بسقبه** معنی داده چه هغه جار کوم چه نیزدې دې دَخپل نیزدیوالی دَ وجې نه دَ جاربعید په مقابله کښې زیات حق لرې یعنی جاربعیدته به دَ شفعه حق نه شی ورکولې بلکه جارقریب ته به دَهغه دَ قرب دَ وجې نه دَ شفعه حق ورکولې شی. بهرحال دلته اوس مقابله دَ یوجاردَبل جارسره اوشوه تاسو خوشریك مراد اخستې وو نوچه کله یوشریك ته تاسو أحق وائې نوهغه دویم شریك څوك دې کوم چه أحق نه دې.

**دَ احنافودَ مذهب نورتائیداوتاکید:-** دَدې نه پس یوه خبره بله ده چه حضرت امام شافعی رحمه الله دَ حضرت ابورافع رضی الله عنه دَ حدیث په تاویل کښې فرمائی چه دې نه مراد شریك دې. حالانکه که دَ ابورافع رضی الله عنه حدیث په تفصیل سره اوکتلې شی نودَهغې نه پخپله معلومیږی چه داهم دجارمسئله وه نه چه دشریك اودا واقعه په تفصیل سره وړاندې راروانه ده.

**دَعلامه ابن بطال رحمه الله اشکال:-** ابن بطال رحمه الله وغیره دَ ابی رافع رضی الله عنه دَ روایت باره کښې دا وئیلی دی چه حضرت ابورافع او حضرت سعد رضی الله عنهما دواړه په یوکورکښې شریك وو. (۲)

**دَ علامه ابن المنیرمالکی رحمه الله جواب:-** ابن منیرمالکی رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث دَ ظاهرنه دامعلومیږی چه دَحضرت ابورافع او حضرت سعد رضی الله عنهما معامله دَ شرکت نه وه. داسې څه خبره نه وه لکه چه په یوکورکښې دوه رونړه شریك وی په یویوجزء کښې په دواړوکښې شرکت وی بلکه هلته خوداسې صورت حال ووچه دَحضرت سعد رضی الله عنه ځان له مکان وواودَ حضرت ابورافع رضی الله عنه دوه کمرې جدا اومستقل وې نودَهغوی حیثیت دَ جاروو هغوی شریك ګنړل صحیح نه دی.(۳)

---

۱) إرشادالساری:۵/۲۱۶.

۲) شرح صحیح البخاری لابن بطال:۶/۳۸۰.

۳)المتواری علی تراجم أبواب البخاری للشیخ ناصرالدین احمدبن محمدالمعروف به ابن المنیر السکندری ص:۲۵۲.

ددې نه هم ډېره واضحه خبره داده چه علامه عمربن شبه رحمه الله په تاريخ مدينه كښې دا نقل كړې دى چه حضرت سعد رضي الله عنه د ابورافع رضي الله عنه نه دوه كورونه اخستل غوښتل كوم چه دحضرت سعد رضي الله عنه دمكانونو بالكل مخې ته واقع ووادا مسجد نبوى على صاحبها الف الف الصلوة والسلام نبى طرف ته عمارت وو په هغې كښې دحضرت سعد رضي الله عنه مكانات هم وو اودحضرت ابورافع رضي الله عنه هم دوه مكانات وو اوهغه دحضرت سعد رضي الله عنه دمكانونومخې ته وو او په مينځ كښې لس ګزه فاصله وه. [1] په داسې صورت كښې دلته د شركت خبره څنګه صحيح كيدې شى.

بل ددې نه هم واضحه يوروايت امام نسائى او امام ابن ماجه رحمهما الله نقل كړې دې په هغې كښې دى چه يوسړى اووئيل يارسول الله ﷺ ما سره يوه زمكه ده په كومه كښې چه څوك شريك نشته او په كومه كښې چه يوسړى ته د تقسيم څه حق هم حاصل نه دې او البته داخبره ده چه هغې سره په ګاونډ كښې مكانات شته نو حضورپاك اوفرمائيل الجار أحق بسقبه. [2]

دلته رسول الله ﷺ خالص دجار په سلسله كښې دا حديث ارشاد فرمائيلې دې. بيادا وئيل چه حديث مذكور په شريك باندې محمول دې صحيح نه دى. پخپله امام بخارى رحمه الله داواقعه وړاندې نقل كوى اوددې نه هم داخبره په واضحه توګه معلوميږى چه حضرت ابورافع او حضرت سعد رضي الله عنهما د يوبل شريكوال نه وو بلكه د يوبل ګاونډيان وو.

**د فريق اول دليل قياسى جواب او الزامى دليل:-** اوددې حضراتود دويم دليل جواب دادې چه دګاونډى ملكيت دخيل يعنى دخريدارد ملكيت سره په داسې طريقه سره متصل شوې دې چه دا اتصال اوس مستحكم او دائمى دې. د كرايه دار يا عاريت باندې اخستونكى اتصال په شان دعارضې اومحدودوخت دپاره نه دې. لهذا مالى معاوضې موجود كيدو په صورت كښې به جارته د شفعه حق حاصل وى. په دې صورت باندې قياس كولوسره د شريعت حكم واردشوې دې يعنى دغيرتقسيم شده جائيداد شريك ته چه څنګه د شفعه حق حاصل دې دغه شان به جارته هم حاصل شى ځكه چه دغيرتقسيم شده جائيداد د شريك دپاره دتقسيم مشقت اود مصارف كښې د شفعه حق په خيال كښې ساتلې شوې دې. دغه شان د ګاونډى په حق كښې د خريدار اتصال سره ممكنه ضرر او نقصان خيال ساتلوسره د شفعه دحق جواز په ځائى ساتلې شوې دې.

ددې وجه داده چه د ملكيت هم دا صفت يعنې دائمى اوپه استحكام سره اتصال په دې وجه په شريعت كښې سبب ګرځولې شوې دې چه د ګاونډى د ضرر اونقصان ازاله اوكړې شى ځكه چه هم ګاونډى د ټولو ضررونو او جنګونو اصل بنيادوى لكه چه په عاموخلقوكښې دا خبره مشهوره ده او شفيع ته د شفعه حق وركولوسره دخرڅ شوى جائيداد مالك جوړولوسره د

---

[1] ) فتح البارى: ٤/٥٥٢.

[2] )اخرجه النسائى فى باب ذكر الشفعة وأحكامها حديث رقم: ٤٧٠٧ وابن ماجه فى أبواب الشفعة باب الشفعة بالجوار حديث رقم: ٢٤٩٦.

فساد بنیاد ختمول ډیره مناسب خبره ده. ددې دپاره چه اصیل یعنی شفیع دهغه د پلار نیکه په زمکه باندې پریشان کولوسره اخواکول د ضرر اونقصان ډیر واضح او قوی صورت دې. یعنی د دې ضرر او تکلیف نه د بچ کیدلو دوه صورتونه دی یودا چه ګاونډی ته اوونیلې شی چه تاته د جائیداد د نوی اخستونکی د اتصال نه ضرردې لهذا ته دخپل پلارنیکه زمکه پریږده اوبل چرته لاړشه. دویم صورت دادې چه ګاونډی ته د شفعه حق ورکړې شی چه دنوی خریداریه ځائی هغه پخپله داجائیداد واخلی اودمضرت نه بچ شی نودعقل اوهوښیارتوب تقاضا هم دغه ده چه رومبې صورت اختیارکړې شی اوګاونډی پریشان نه کړې چه دخپل پلارنیکه ځائی پریږدی ځکه چه په دې کښې دهغه ټول نقصان دې. بلکه هغه له د شفعه حق ورکولوسره دهغه دا ضرر اونقصان پوره کیدلې شی.(۱)

اوترکومې چه ددغه حضراتو د تقسیم دمشقت اومصارف شفعه دعلت ګرځولوتعلق دې هغه صحیح نه دې ځکه چه د تقسیم مشقت او ضرر خومشروع دې یعنی د شریعت د طرف نه یوثابت شوې امر دې. د شرکاؤ نه دهریو حصه تقسیم کولوسره چه هغه ته ورکړې شی نودا څیزددې خبرې علت نه شی جوړیدې چه بل سړې هم په ضرر اونقصان کښې اخته کړې شی. بلکه د شفعه اصل علت دادې چه دشفیع جائیداد کوم سره چه دهمیشه نه متصل دې که غواړی نو مالی معاوضه دې ورکولوسره حاصل کړی اوخپل متصله جائیدادسره دې یوځائی کړې دې دپاره چه د مضرت اونقصان هغه اندیښنه باقی پاتې نه شی. (۲)

**یواهم اشکال:-** بیایوسوال داپاتې کیږی چه دحضرت جابر رضی الله عنه په حدیث کښې خو صفا دی فاذا وقعت الحدود بینهم فلا شفعة یعنی کله چه حدبندی اوشی اولارې جدا جدا شی نوبیابه د شفعه حق پاتې نه شی.

**جواب:-** ددې اعتراض جواب دادې چه کله تقسیم واقع شی اولارې جداکړې شی نود شرکت د وجې نه چه کوم د شفعه حق حاصل وو هغه ختم شو. په دې سره د ګاونډی دحق نفی مقصودنه ده. ددې نه علاوه دویمه خبره داهم ده چه دا کوم زیاتې دې فاذا وقعت الحدود الخ. ددې په وقف اورفع کښې اختلاف دې. امام احمد امام بخاری او ابومحمدبن حزم ظاهری رحمهم الله دا مرفوع ګڼړی لیکن ابن ابی حاتم رحمه الله د خپل پلار ابوحاتم رحمه الله نه دا نقل کوی چه دا موقوف دې مرفوع نه دې.(۳)

په دې کښې لږشان اشکال داکیږی که چرته موقوف هم وی نوڅه اوشو احناف خو موقوف هم حجت ګڼړی. لهذا د حضرت جابر رضی الله عنه داحدیث هم حجت ګڼړل پکاردی. نوددې جواب دادې چه موقوف هغه وخت حجت ګڼړلې شی کله چه په مرفوع روایاتوسره دهغې تعارض نه وی

---

(۱) الهدایة شرح بدایة المبتدی: ۶/۷. بتفصیل.

(۲) المصدرالسابق. بتفصیل.

(۳) عمدة القاری: ۱۲/۷۲.

اودلته خو الجار أحق بسقبه يا الجار أحق بشفعته يا جارب الدار أحق بالدار چونکه مرفوع روايات موجود دی په دې وجه به دا نه شی قبلولې. دَدې تخريج هم په دې باب کښې تير شوې دې.

**دَحضرت انورشاه کشميری رحمه الله دَ طرف نه يوبل جواب:-** حضرت شاه رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې به دَ شفعه لفظ هم دَ شريك دَ پاره استعماليدلو اوجارته هم دغه حق حاصل وو کوم چه به شريك ته حاصل وو ليکن دې ته به ئې شفعه نه سقب يا حق الجاروئيلو. نو په مذکوره حديث کښې نفی دَ لفظ شفعه کيږی دَحدود واقع کيدونه پس اودَ لارو جداکيدونه پس به اوس يوشريك ته دَ شفعه حق حاصل نه وی او حق الجاربه وی کوم چه په بل حديث کښې په سقب سره تعبير کړې شوې دې.[1]

## ۱-باب: الشفعة فی مالم يقسم، فاذا وقعت الحدود فلا شفعة

### شفعه په هغه جائيداد کښې کيږی چه تقسيم شوې نه وی يا چه کله حدود واقع شی نوشفعه باقی نه پاتې کيږی

**دَترجمة الباب مقصد:-** دَامام بخاری رحمه الله مقصد دَ جمهورعلماؤ دَ مذهب موافق شريك فی نفس المبيع دَپاره دَ شفعه اثبات دې.

[حديث ۲۱۳۸] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِىِّ عَنْ أَبِى سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رضى الله عنهما قَالَ قَضَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِالشُّفْعَةِ فِى كُلِّ مَا لَمْ يُقْسَمْ، فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ وَصُرِّفَتِ الطُّرُقُ فَلاَ شُفْعَةَ. [ر: ۲۰۹۹]

**ترجمه:-** حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنهما فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم په هرهغه څيزکښې دَ شفعه حکم ورکړې دې دکوم تقسيم چه نه وی شوې کله چه حدبندی اوشی اولارې جدا جدا شی نوبيا به شفعه پاتې نه شی.

## رجال الحديث

**مسدد:-** دامسددبن مسرهدبن مسربل بن مرعبل الاسدی ابوالحسن البصری رحمه الله دې. (م ۲۲۸ هجری)[2]

**عبدالواحد:-** دا عبدالواحد بن زيات رحمه الله دې.[3]

---

[1] فيض الباری:۲۷۲/۳.
[2] مرتخريجه فی هذاالباب.
[3] کشف الباری:۲/۲ الايمان باب من الايمان ان يحب الاخيه مايحب لنفسه.
[4] کشف الباری:۲/۳۰۱ الايمان باب الجهاد من الايمان.

**معمر** - دامعمربن راشد رحمه الله دي.[1]

**الزهري** - دامحدبن مسلم بن شهاب الزهري رحمه الله دي.[2]

**أبوسلمه** - داابوسلمه بن عبدالرحمن رحمه الله دي.[3]

**جابر** - اودَ حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنهما[4] احوال تیرشوی دی.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت** - دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې. حدیث مذکوره سره متعلق دَ فقهي مسائلو بحث په تفصیل سره تیرشو.

## ۲ - باب: عرض الشفعة علی صاحبها قبل البیع

وَقَالَ الْحَكَمُ إِذَا أَذِنَ لَهُ قَبْلَ الْبَيْعِ فَلَا شُفْعَةَ لَهُ.

وَقَالَ الشَّعْبِيُّ مَنْ بِيعَتْ شُفْعَتُهُ وَهُوَ شَاهِدٌ لَا يُغَيِّرُهَا فَلَا شُفْعَةَ لَهُ.

دَ بیع نه وړاندې په شفیع باندې شفعه پیش کول او حکم رحمه الله وائي چه که شفیع دَ بیع اجازت ورکړو دَبیع نه وړاندې نوبیابه دَهغه دَ شفعه حق پاتې نه شي اوشعبي رحمه الله وائي که چرته جائیدادخرڅ کړې شو اوشفیع هلته موجود وو اوهغه څه اعتراض اونه کړو نودَ شفعه حق لاړو.

**دَترجمة الباب مقصداودَفقهاؤ دَاختلاف بیان** - امام بخاري رحمه الله دلته دا مسئله بیانوی که یو سړې خپل مکان خرڅول غواړي اوبل سړی ته په دغه مکان باندې دَ شفعه حق حاصل دې نو دغه خرڅونکی له پکاردی چه اول خپل دې ګاونډی یا شریك ته ئی مخکښې پیش کش اوکړی چه زه دا مکان خرڅول غواړم که چرته ته ئی اخستل غواړې نو واخله. اوس که چادَ شفیع په وړاندې خپله معامله پیش کړه اوهغه اخستلوته تیارنه شو بیا مالك هغه خرڅ کړو نوددې بیع نه پس که شفیع په دې کښې دَخپلې شفعه حق دائرکول غواړي نو دائرکولې شي که نه؟ په دې مسئله کښې اختلاف دې. سفیان ثوری حکم بن عتیبه ابوعبید ابوخیثمه رحمهم الله اوپه یوروایت کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي چه کله شفیع اجازت ورکړو بیادَ شفعه حق ختم شو او امام ابوحنیفه امام شافعي اوامام مالك رحمهم الله فرمائي دَ شفعه حق خودَ بیع نه روستووی او په مسئله مذکوره کښې مالکانودَ بیع نه اول اجازت واخستو نوکیدې شي چه اول دَهغه دا رائې نه وی او اوس چه بائع مکان خرڅ کړې دې دَده رائې بدله شود اودَ شفعه حق خو دَ بیع نه پس حاصلیږی نوکه اوس دغه شفیع دَ شفعه دعوی کول

---

[1] کشف الباري: ۴۶۵/۱ بدء الوحی.
[2] کشف الباري: ۳۲۶/۱ بدء الوحی.
[3] کشف لباري: ۳۲۳/۲ باب صوم ورمضان احتسابًا من الایمان.
[4] کشف الباري: ۳۵/۴ کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء إلا من المخرجین.

غواړی نوکولې شی اوداامکان اخستې شی. (۱) دامام احمد رحمه الله هم دویم روایت هم دغه دې کوم موفق الدین ابن قدامة رحمه الله په مغنی کښې نقل کړې دې او وئیلی دی چه دامام احمد رحمه الله ظاهری مذهب هم دغه دې. (۲) لکه چه ائمه اربعه په دې متفق شوی دی که اول ئی اجازت ورکړو نود بیع نه پس هم شفیع ته دشفعه حق دائرکولې شی.

امام بخاری رحمه الله په دې مسئله کښې د فریق اول هم خیال معلومیږی یعنی چه کله شفیع اجازت ورکړې وو نود شفعه حق ختم شو اوس د بیع نه پس هغه ته د شفعه حق دائر کولو اجازت نشته. ځکه چه امام بخاری رحمه الله دلته کوم آثار نقل کړی دی **وقال الحکم الخ** یعنې حکم بن عتیبه رحمه الله فرمائی چه که شفیع دبیع اجازت ورکړود بیع نه وړاندې نوبیابه د هغه د شفعه حق پاتې نه شی. **وقال الشعبی** رحمه الله الخ امام شعبی رحمه الله فرمائی چه که جائیداد خرڅ کړې شو اوشفیع هلته موجودوو اوهغه څه اعتراض اونه کړو نود شفعه حق لاړو. ددې آثارونه امام بخاری رحمه الله د فریق اول تائید طرف ته اشاره کوی. (۳)

**یوه بله اختلافی مسئله:-** دامام شعبی رحمه الله د اثر نه داهم معلومیږی چه شفیع ته فوراً د شفعه حق دائرکول پکاردی. که هغه د بیع دعلم کیدونه پس تاخیرکوی نودهغه د شفعه حق به باطل شی په دې مسئله کښې اختلاف دې. چه شفیع دې د بیع علم کیدو سره د شفعه دحق دعوی اوکړی یا هغه ته د تاخیرهم حق حاصل دې. امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه فی الفور د شفعه دعوی دائرکول پکاردی ځکه چه **الشفعة لمن واثبها** (۴) یعنی شفعه هم ددې دپاره وی چه د مواثبت طلب کوی او فوری توګه د شفعه حق غوښتلودپاره اودریږی. او**الشفعة کحل العقال.** (۵)

دغه شان که چاته معلومه شوه چه دمکان سوداشوې ده اوهغه سستی اوکړه اوفوری ئی د شفعه دعوی اونه کړه نوهغه مکان به هغه ته نه ملاویږی. بل د شفعه حق یوکمزورې حق دې چه داعراض کولوسره باطل کیږی لهذا فوری مطالبه او قیام شهادت دواړه به لازم وی دې دپاره چه معلومه شی چه دهغه په شفعه کښې رغبت دې اوهغه داعراض نه کار نه اخلی ځکه چه هغه د قاضی په عدالت کښې د شفعه د مطالبه د ثبوت ضرورت هم دې اود دغه احتیاج او

---

(۱) المغنی لابن قدامة رحمه الله ۱۲۲۳/۲.

(۲) حواله سابق.

(۳) لامع الدراری: ۱۵۳/۶.

(۴) قال الحافظ ابن حجر رحمه الله فی الدرایة فی تخریج أحادیث الهدایة:۲۰۳/۲ حدیث الشفعة لمن واثبها لم أجده وإنما ذکره عبدالرزاق من قول شریح رحمه الله وکذا قال الحافظ الزیلعی رحمه الله فی نصب الرایة: ۱۷۶/٤ وقال ابن الملقن رحمه الله غریب (یعنی لایعلم من رواه کما قال فی المقدمة) (خلاصة البدر المنیر:۱۰۲/۲.

(۵) أخرجه ابن ماجه: ۸۳۵/۲ کتاب شفعه باب طلب الشفعة الحدیث: ۲۵۰۰ والبزار کما فی نصب الرایة: ۱۸۶/٤ کتاب الشفعة باب طلب الشفعة والبیهقی رحمه الله ۱۰۸/۶ کتاب الشفعة باب فی مسائل الشفعة والخطیب فی التاریخ:۵۷/۶.

ضرورت د ختمول د ګواهئی نه بغیرممکن نه دی. (١) او هم دغه یعنی د شفعه فوری دعوی کول، دامام احمد رحمه الله منصوص قول دې اودامام شافعي رحمه الله هم يوقول داسې دې او دويم قول د امام شافعي رحمه الله او يوقول د امام احمدبن حنبل رحمه الله دادې چه فوري دعوى د شفعه دائركول ضروري نه دي بلكه تراضي سره هم د شفعه دعوى دائركيدې شي. دامام مالك رحمه الله مسلك خو هم دغه دې چه فوري دعوى كول ضروري نه دى. په دې كښې د تراضي ګنجائش شته ليكن هغه دا فرمائي چه كه دومره موده تيره شي په كوم سره چه اندازه وى چه شفيع شفعه پريخودې ده بيا دهغې نه پس د شفعه دعوى نه شى كولې. (٢)

**دتعليقاتو تفصيل:-** حكم بن عتيبه كوفي تابعي رحمه الله تعليق ابن ابي شيبه رحمه الله په خپل مصنف كښې موصولاً ذكركړې دې. (٣) اوهم دغه شان امام شعبي رحمه الله عامر بن شراحيل كوفي تابعي رحمه الله تعليق هم ابن ابي شيبه رحمه الله په خپل مصنف كښې موصولاً ذكركړې دې. (٤)

[حديث ٢١٣٩] (٥) حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ قَالَ وَقَفْتُ عَلَى سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، فَجَاءَ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى إِحْدَى مَنْكِبَيَّ إِذْ جَاءَ أَبُو رَافِعٍ مَوْلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ يَا سَعْدُ ابْتَعْ مِنِّي بَيْتَيَّ فِي دَارِكَ. فَقَالَ سَعْدٌ وَاللَّهِ مَا أَبْتَاعُهُمَا. فَقَالَ الْمِسْوَرُ وَاللَّهِ لَتَبْتَاعَنَّهُمَا. فَقَالَ سَعْدٌ وَاللَّهِ لاَ أَزِيدُكَ عَلَى أَرْبَعَةِ آلاَفٍ، مُنَجَّمَةٍ أَوْ مُقَطَّعَةٍ. قَالَ أَبُو رَافِعٍ لَقَدْ أُعْطِيتُ بِهَا خَمْسَمِائَةِ دِينَارٍ، وَلَوْلاَ أَنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «الْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ». مَا أَعْطَيْتُكَهَا بِأَرْبَعَةِ آلاَفٍ، وَأَنَا أُعْطَى بِهَا خَمْسَمِائَةِ دِينَارٍ. [٦٥٧٦، ٦٥٧٧، ٦٥٧٩، ٦٥٨٠]

حضرت عمرو بن شريد رحمه الله فرمائى زه سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه سره ولاړ ووم په دې كښې مسوربن مخرمة رضي الله عنه راغلو اوهغه خپل لاس زما په يوه اوګه باندې كيخودو په دې كښې ابورافع رضي الله عنه هم راغلو چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم آزاد كړې شوې غلام دې هغه اووئيل اې سعدته زما دواړه كمرې چه ستا په كوركښې دى واخله، سعد رضي الله عنه اووئيل په خدائى قسم زه خوئى نه اخلم. مسور رحمه الله اووئيل (چه هم خواكې ولاړوو) په خدائى قسم دې هم ته به ئى اخلې حضرت سعد رضي الله عنه اووئيل (بياخو تيك ده مګر) زه د څلورو زرو نه زياتې نه دركوم اوهغه هم په قسطونو

---

(١) هداية شرح بداية المبتدى: ٧/١٤.

(٢) بداية المجتهد ص:٦٥٢ دارالكتب العلمية بيروت، المغني لابن قدامة المقدسي: ١٢٠٠/١ بيت الفكار الدولية بيروت.

(٣) فتح الباري: ٤٣٧/٤ عمدة القاري: ٦٢/١٠.

(٤) حواله سابق.

(٥) الحديث اخرجه النسائي رحمه الله تعالى فى كتاب البيوع رقم:٤٦٢٣ وأبوداؤد فى كتاب البيوع رقم: ٣٠٥١ وابن ماجة رحمه الله تعالى فى كتاب الاحكام رقم:٢٤٨٦ والامام أحمدرحمه الله تعالى فى مسنده رقم:٢٢٧٥١، ٢٥٩٢٧ انظر كذلك فى جامع الاصول الباب السادس فى الشفعة رقم:٤١٩.

کښې يا په يوځائی (د راوی شك دې) حضرت ابورافع رضی الله عنه اووئيل ماته خود دغه کور پنځه سوه دينار ملاويږی (د کومې چه پنځه زره درهم جوړيږی) که چرې ما د حضورپاك نه دانه وو اوريدلی چه ګاونډی د خپل نيزديکت د وجې نه زيات حق دار دې نو ما به تاته دا کور په څلورزره درهم کښې هيڅ کله هم نه وودر کړې خصوصاً چه ماته د دغې پنځه سوه دينار ملاويږی آخر حضرت ابورافع رضی الله عنه هغه کمرې حضرت سعد رضی الله عنه روکړو.

## رجال الحديث

**مکی بن ابراهيم:-** دامکی بن ابراهيم بن بشيربن فرقد حنظلی رحمه الله دې. (۱)

**ابن جريج:-** دا ابن جريج عبدالملك بن عبدالعزيز رحمه الله دې. دَدوی تذکره کتاب الحيض باب غسل الحائض راس زوجها وترجيلها کښې تيره شوې ده.

**ابراهيم بن ميسرة:-** دا ابراهيم بن ميسرة الطائفی ثم المکی رحمه الله دې. دَدوی تذکره کتاب الجمة باب الدهن للجمة کښې تيره شوې ده.

**عمروبن الشريد:-** دوی عمروبن الشريد بن سويد الثقفی ابوالوليد الطائفی رحمه الله دې.

**اساتذه:-** دوی رحمه الله د حضرت سعدبن ابی وقاص، عبدالله بن عباس، حضرت مسور بن مخرمه رضی الله عنهم او ابورافع رضی الله عنه (د رسول الله صلی الله عليه وسلم آزادکړې شوې غلام) بل د خپل والدمحترم چه صحابی دې حضرت شريد بن سويد رضی الله عنه نه هم روايات نقل کوی.

**تلامذه:-** دوی رحمه الله نه ابراهيم بن ميسرة طائفی بکير بن عبدالله، صالح بن دينار، عبدالله بن عبدالرحمن بن يعلی، عبدالله بن عتبه، عمروبن شعيب، محمد بن ميمون بن مسيکه وغيرهم رحمهم الله روايات نقل کوی. (۲)

احمدبن عبدالله عجلی رحمه الله فرمائی: حجازی تابعی، ثقة. (۳)ابن حبان رحمه الله هم په خپل کتاب الثقات کښې د دی تذکره کړې ده. (۴) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ثقة. (۵)

**سعدبن بی وقاص:-** حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه تذکره تيره شوې ده. (۶)

---

۱) کشف الباری:۴۶۱/۳.

۲) تهذيب الکمال:۶۳/۲۲.

۳) الثقات ص:۴۲.

۴) ۱۸۰/۵.

۵) تقريب التهذيب ص:۴۲۳ دارالرشيد سوريا.

۶) کشف الباری:۱۷۲/۲.

**مسوربن مخرمة:-** حضرت مسور بن مخرمة رضي الله عنه ذکر کتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس کښې راغلې.

**ابورافع:-** حضرت ابورافع القبطی رضي الله عنه دَنبی کریم ﷺ آزادکړې شوې غلام دې. دَهغوی رضي الله عنه دَ نوم باره کښې مختلتف اقوال دی: بعض وائی ابراهیم اوبعض اسلم اوبعض ثابت وغیره وائی. [1] دَ واقدی رحمه الله قول دې چه دَهغوی رضي الله عنه انتقال دَحضرت عثمان غنی رضي الله عنه دَ شهادت نه څه موده پس مدینه منوره کښې شوې. [2] خو ابن حبان رحمه الله نقل کړی دی چه دَ حضرت علی رضي الله عنه دَخلافت په زمانه کښې انتقال شوې. [3]

نقل دادی چه هغوی رضي الله عنه دَ حضرت عباس رضي الله عنه غلام وو اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته هبه کړې وو بیا چه حضرت ابورافع رضي الله عنه نبی کریم ﷺ ته دَحضرت عباس رضي الله عنه دَ اسلام راوړلو خوشخبری ورکړه نو رسول الله ﷺ هغه آزاد کړو. [4] هغوی رضي الله عنه دَ نبی کریم ﷺ نه اودَ عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه حدیث نقل کول.

**تلامذه:-** دَهغوی رضي الله عنه نه دَهغوی خوئی رافع بن ابی رافع، عبیدالله بن ابی رافع، معتمر یا مغیره بن ابی رافع اوحسن بن ابی رافع او نمسې حسن بن علی بن ابی رافع صالح بن عبیدالله بن ابی رافع فضل بن عبیدالله بن ابی رافع بل دَهغوی بی بی محترمه سلمی ام رافع روایات نقل کوی. بل حصین (دَ داؤدبن حصین پلار) متین بن ابی المغیرة، سالم بن عبدالله بن عمر رضي الله عنه سعیدبن ابی سعید، سلیمان بن یسار شرجیل بن سعد، علی بن الحسین بن علی رضي الله عنه عمرو بن شرید، محمدبن المنکدر او ابوسعید مقبری وغیرهم رحمهم الله نه احادیث نقل کړی دی. [5]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:-** امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب قائم کړې وو باب عرض الشفعة علی صاحبها قبل البیع او په حدیث مذکورکښې حضرت ابورافع رضي الله عنه فرمائي اې سعد رضي الله عنه ته زما دواړه کمرې چه ستا په کور کښې دی واخله نو په دې کښې دَحق شفعه دَ وجې نه دَ یوشریك دَ بل شریك مخې ته دَ بیع دَپاره عرض کول دی. [6]

**تشریح:-** هم دَدې حدیث نه امام ابوحنیفه رحمه الله اودَهغوی ملګری دَ ګاونډی دَپاره دَ شفعه په اثبات استدلال کوی. فریق مخالف تاویل کوی چه دلته شریك فی نفس المبیع مراد دې ځکه

---

[1]) تهذیب الکمال: ۳۰۱/۳۳.
[2]) طبقات ابن سعد رحمه الله ۷۵/۴.
[3]) ثقات: ۱۷/۳.
[4]) طبقات ابن سعد رحمه الله ۷۳/۴.
[5]) تهذیب الکمال: ۳۰۱/۳۳ - ۳۰۲.
[6]) عمدة القاری: ۷۳/۱۲.

چه حضرت أبورافع رضی الله عنه حضرت سعد رضی الله عنه سره په دوو کورونو کښې شریك وو په دې وجه هغه د تونونه وړاندې حضرت سعد رضی الله عنه باندې دکورخرڅولو خبره اوکړه خود فریق مخالف دا استدلال کول هم دحدیث د ظاهرسره ردکیږي څکه چه په حدیث کښې صفا دی چه حضرت ابورافع رضی الله عنه د حضرت سعد رضی الله عنه په کور کښې د دووکمرو مالك وو داسې نه وه چه د کور په یوه حصه کښې دواړه په مشترکه توګه باندې مالکان وو.(۱)

# ۳-باب: أي الجوار أقرب

## کوم یو ګاونډي ډیرنیزدې دې (یعنی د شفعه زیات حقداردې)

[۲۱۶۰] حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ ح وحَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو عِمْرَانَ قَالَ سَمِعْتُ طَلْحَةَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ عَائِشَةَ -رضي الله عنها- قُلْتُ يَارَسُولَ اللَّهِ إِنَّ لِي جَارَيْنِ، فَإِلَى أَيِّهِمَا أُهْدِي قَالَ «إِلَى أَقْرَبِهِمَا مِنْكِ بَابًا». [۲۴۵۵، ۵۶۷۴]

**ترجمه**:- حضرت عایشه رضی الله عنها فرمائی ماعرض اوکړو یارسول الله ! زما دوه ګاونډیان دی په دوی کښې اول زه کوم یو ته حصه (هدیه) اولیګم؟ حضورپاك اوفرمائیل د کوم دروازه چه تاسره ډیره نیزدې ده.(۲)

**دترجمة الباب مقصد**:- دامام بخاری رحمه الله دا ترجمه په صفاتوګه په دې خبره باندې دلالت کوی چه د شفعه الجوار قائل دې اوامام بخاری رحمه الله نه صرف دا ترجمه قایم کړې ده بلکه وړاندې ئې دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها روایت هم نقل کړې دې: چه ماعرض اوکړو یارسول الله! زما دوه ګاونډیان دی زه په هدیه ورکولوکښې کوم یو وړاندې کړم نوحضور پاك اوفرمائیل د کوم دروازه چه ستادروازې سره ډیره نیزدې ده دهغه حق مخکښې دې.(۳)

## رجال الحدیث

**حجاج**:- دا حجاج بن المنهال السلمی الانماطی رحمه الله دې.(۴)

**شعبه**:-دا شعبه بن حجاج رحمه الله دې.(۵)

**علی**:- دا علی بن المدینی رحمه الله دې.(۶)

---

(۱) عمدة القاري:۱۲/۷۴فتح الباري:۴/۵۵۲.

(۲) أخرجه البخاري أيضاً في الادب باب حق الجوار في قرب الابواب وفي الهبة، باب بمن يبدأ بالهدية، وأخرجه أبوداؤد رحمه الله في سننه في الادب، باب حق الجوار رقم: ۵۱۵۵ وانظرجامع الاصول: ۶/۶۴۰ رقم الحديث:۴۹۲۳

(۳) إرشاد الساري:۵/۲۱۷ مع اضافع يسيرة.

(۴) كشف الباري: ۲/۷۷۴.

(۵) كشف الباري: ۱/۴۷۸.

(۶) كشف الباري: ۳/۲۵۶.

**شبابة**:- دا شبابة بن سوار رحمه الله دي. دَدوی تذکره کتاب الحیض باب الصلوة علی النفساء کښې تیره شوې ده.

**ابوعمران**:- دوی ابو عمران عبدالملك بن حبیب الازدی ویقال الکندی الجونی البصری رحمه الله دي.(1)

**اساتذه**:- دَ اسیر بن جابر، انس بن مالك، جندب بن عبدالله البجلی، ابوفراس ربیعه بن کعب الاسلمی، زهیربن عبدالله بصری، عبدالله بن رباح الانصاری، عبدالله بن صامت او ابوبکر بن ابی موسیٰ اشعری وغیره هم رضی الله عنهم نه ئې روایات نقل کړی دی.

**تلامذه**:- دَ دوی نه ابان بن زیدی العطار، جعفربن سلیمان الضبعی، ابوقدامه، حجاج بن فرافصه، حمادبن زید، حماد بن سلمه، سلیمان التیمی شعبه بن حجاج اوصالح بن بشسیر امری وغیرهم رحمهم الله روایات نقل کوی.

یحییٰ بن معین رحمه الله فرمائی: ثقة.(2) ابوحاتم رحمه الله فرمائی: صالح.(3) محمدبن واسع رحمه الله فرمائی: حسن الحدیث.(4)

**وفات**:- عمرو بن علی رحمه الله وائی چه دَهغوی انتقال ۱۲۸هجری کښې شوې.(5) بعض وائی ۱۲۹هجری کښې شوې.(6) علامه ابن حبان رحمه الله فرمائی چه ۱۲۳هجری کښې شوې.(7)

**طلحه بن عبدالله**:- داطلحه بن عبدالله بن عثمان بن عبیدالله بن معمر التیمی رحمه الله دي.(8)

**عائشه**:- اودَ ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها(9) تذکره تیره شوې ده.

**تشریح**:- یعنی بعض داسې هم ګاونډی وی چه دَهغه دکوردیوال ستادَ کوردیوال سره لګیدلې وی خودَهغه دروازه په مشرق اوستا دروازه مغرب کښې وی هغه به اقربهما باباً نه شی ګرځولې بلکه اقربهما باباً به هغه وی دَ چا دروازه چه ستا دروازې سره نیزدې وی سره دَدې که دَهغه

---

(1) دَدوی تفصیلی احوالودپاره اوګورئی طبقات ابن سعد: ۲۳۸/۷ تاریخ البخاری الکبیرة ترجمة: ۱۳۳۰. تاریخ البخاری الصغیر: ۳۱۸/۱ ثقات لابن یحبان رحمه الله ۱۱۷/۵ تهذیب الکمال: ۲۹۷/۱۸ سیر أعلام النبلاء: ۲۵۵/۵.

(2) الجرح والتعدیل: ۵ والترجمة: ۱۶۳۶.

(3) حواله سابق.

(4) المعرفة والتاریخ: ۲۶٤/۲.

(5) تهذیب الکمال: ۲۹۹/۱۸.

(6) ایضاً.

(7) الثقات: ۱۱۷/۵.

(8) کشف الباری: ٤۸/۲.

(9) کشف الباری: ۲۹۱/۱.

ديوال ستا د ديوال سره نه وى ملاؤشوي

**دعلامه ابن بطال رحمه الله اشكال**:- علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى امام بخارى رحمه الله دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها روايت په دې باب كښې نقل كړې دې حالانكه ددې د شفعه الجوارسره څه تعلق نشته دلته خو حضرت عائشه رضي الله عنها د هديه د مسئلې تپوس كوى[1]

**د بخارى د نورو شراح رحمهم الله جواب**:- دعلامه ابن بطال رحمه الله اعتراض صحيح نه دې ځكه چه امام بخارى رحمه الله دلته دا روايت ددې خودلودپاره پيش كړې دې چه هغه جارد چاديوال چه ستا ديوال سره نيزدې دې خودهغه دروازه بل طرف ته ده اوستادروازه يوبل طرف ته اوستا اوهغه په دروازكښې مثلاً تقريباً د يوفرلانګ فاصله ده نوده ته به په حق شفعه كښې ترجيح نه شى وركولې بلكه دكوم سړى دروازه چه ستادروازې سره د پنځه يا لس ګزه فاصلې باندې ده سره ددې چه دهغه ديوال اتصال ستاديوال سره نه وى نوهغه به ستا نيزدې ګاونډى ګرځولې شى. په دې وجه امام بخارى رحمه الله دا روايت دلته په ابواب شفعه كښې راوړلې دې اودا وينا كول چه ددې تعلق خو هديه سره دې نوددې طرف ته خودهرچا سوچ متبادركيږى ليكن داامام بخارى رحمه الله چه دا روايت دلته ذكركړې دې دا خوددې خبرې دخودلودپاره دې لكه څنګه چه په هديه كښې أقربهما باباً أحق ګرځولې شوې دې دغه شان دلته د شفعه په باب كښې هم دا أحق ګرځولې كيږى د چادروازه چه ډيره نيزدې وى.[2]

**دحديث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دحديث ترجمة الباب سره مطابقت أى الجوار أقرب سره واضح دې.

بسم الله الرحمن الرحيم

## ٢٤-كتاب الاجارة

ددې ځائې نه امام بخارى رحمه الله د اجارې د احكامو باره كښې بيان فرمائى. بعض نسخو كښې اجارات د جمع صيغې سره دې.

**د اجاره لغوى اواصطلاحى تعريف**:- اجارة فعالة په وزن باندې ده. لغةً د اجرة اسم دې چه داجيركرايه ته وئيلې شى.[3] صاحب د هدايه داجاره تعريف كړې دې: **عقد يرد على المنافع بعوض**.[4] يعنى اجاره هغه عقددې چه په منافع باندې په عوض واقع كيږى. بعض حضراتو

---

[1] شرح صحيح البخارى لابن بطال:٦/٣٨٢.
[2] فتح البارى:٤/٥٥٤.
[3] الهداية مع شرحه البناية: ٣/٦٢١المغرب: ١/٢٨.
[4] الهداية مع شرحه البناية: ٣/٦٢١المغرب: ١/٢٨.

تعريف كړې دې: تمليك المنافع بعوض. (۱) يعنى اجاره دمنافع په عوض مالك جوړول دى.
او بعض حضرات وائى بيع منفعة معلومة باجر معلوم يعنى اجاره معلومه منافع په اجرت معلوم باندې خرڅولو ته وائى. علامه عينى رحمه الله فرمائى وهذا أحسن. (۲)

**د اجاره ثبوت:** - اجاره دقرآن مجيدنه هم ثابته ده. ﴿إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِينُ﴾ (۳) يعنى بيشكه ښه نوكر كوم چه ته ساتل غواړې هغه دې چه زور اور وى او امانت دار وى. او دامت په دې باره كښې اجماع هم ده چه اجاره جائزده. (۴)

او د احاديث نبويه على صاحبها الصلوة والسلام نه هم د دې ثبوت دې لكه چه روايات وړاندې راځى. او قياسا اجاره ناجائزمعلوميږى ځكه چه په دې كښې معقودعليه منفعت دې كوم چه دعقدپه وخت كښې موجودنه وى او د يو راتلونكى وخت والاځيزطرف ته دتمليك اضافت كول صحيح نه دى. ځكه چه شئ معدوم دعقدمحل نه وى. (۵)

خوشريعت مطهره د خلقو د ضرورتونو د وجې نه عقداجاره جائزګرځولې ده. (۶) بعض وخت سړې خپل كارپخپله نه شى كولې د بل ضرورت پيښيږى او بل سړې په مفت كاركولوباندې نه تياريږى په دې وجه د دې اجازت پكاردې چه يوسړې بل ته اجرت وركړى اوخپل كاريرې اوكړى. داسې هم وئيلې كيدې شى چه فقراء د مال محتاج وى او غنيان د اعمالو محتاج اوس كه چرې اجاره جائزنه وه نوخلقوته به دهغوى ته به د ژوند په مصالح كښې سخت مشكلات پيښيدل.

صرف عبدالرحمن بن الاصم چاچه په ماقبل كښې شفعه ته هم ناجائزوئيلى وو هغه دې اجاره ته هم ناجائزوائى ليكن دهغه د اختلاف هيڅ اعتبارنشته. (۷)

## ۱ - باب: استئجار الرجل صالح

وَقَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِينُ﴾ /القصص: ۲۶/. وَالْخَازِنِ الْأَمِينِ. وَمَنْ لَمْ يَسْتَعْمِلْ مَنْ أَرَادَهُ.

---

۱) قال البسطامى فى الحدود والاحكام ص: ۹۶ من امش طلبة الطلبة للامام نسفى رحمه الله ص: ۲۶۱.

۲) عمدة القارى: ۷۷/۱۲.

۳) القصص: ۲۶ اوګورئى. الجامع الاحكام القرآن للقرطبى: ۲۴۱/۱۳ وفيه: دليل على أن الاجارة كانت عندهم مشروعة معلومة وكذالک كانت فى كل ملة وهى من ضرورة الخليقة، ومصلحة الخلطة بين الناس.

۴) بداية المجتهد ص: ۶۱۶.

۵) هداية شرح بداية المبتدى: ۲۶۸/۶.

۶) المصدر السابق.

۷) المغنى لابن قدامة: ۱۲۴۵/۲.

نیك سړی په اجرت ساتل، اودالله تعالی ارشاد، بیشکه ښه ملازم کوم چه تاسو ساتل غواړی هغه دی چه زور آور او امانت دار وی. اودَ امانت دارخازن بیان او دهغه سړی بیان چه خواهش مند (طلب ګار) عامل جوړنه کړی.

**دَترجمة الباب مقصد:** - علامه ابن المنیر مالکی رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې امام بخاری رحمه الله دَ وهم خاتمه کول غواړی اوهغه دا چه نیك سړی خوقابلِ تعظیم او تکریم وی او قابل تعظیم اوتکریم سړی اجیرساتل دَهغهِ دَاکرام خلاف دی. دَدې دپاره امام بخاری رحمه الله دا ترجمة الباب قایم کولوسره دابښائی چه په اجاره باندې کار اخستل اهانت نه دی اونه دَاکرام خلاف دی.[1]

داهم وئیلی شی چه امام بخاری رحمه الله په اصل کښې داخودل غواړی چه اجیر نیك او طاقتور سړی ساتل پکاردی. ځکه چه که هغه نیك نه وی نو خیانت به کوی اومال به ضائع کوی او اکثرهغه سړی پسې لګیدې هم وی اوچه طاقتور وی نو خپل کاربه په پوره طریقه سره سرته رسوی.

**قوله تعالی:** ﴿إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ﴾ **مختصرپس منظر:** - حضرت موسیٰ په غیبی القاء سره دَمصرنه مدین ته روان شو اوچه کله مدین ته نیزدې شو نو په یوکوهی باندې ئی ګنړه او مجمع اولیدله او دوه عزت دارې ښځې خپلو چیلوسره یوطرف ته ولاړې وې او دَ ښاربانانو خپلو څارووباندې اوبه څکولواوتللو په انتظارکښې ولاړې وې. دَحضرت موسیٰ په هغوی باندې رحم راغلو او اوبه ئی راؤویستې اودَهغوی چیلو باندې اوڅکولې او بیایود سوری ځائی کښې کیناستو خپل رب سره ئی مناجات کول اودغه جینکوطرف ته ئی هیڅ خیال اونه کړو. دواړو جینکو دامنظر په خپلو سترګوباندې اولیدلو ځوان اوطاقتور خوداسې دې چه کوم یوکانړې لس کسان سړی اوچتوی هغه په یواځې ځان باندې اخواکړو اودَ امانت دیانت او پاك دامنئی حال ئی دادې چه زمونږ امدادخوئې اوکړو مګرزمونږ طرف ته ئی سترګې اوچتولوسره هم اونه کتل. او بندګئی داحال دې چه دَ الله تعالی نه په دعااو زارئی کښې ورډوب دې. کور ته راغلې اوخپل بوډا پلار حضرت شعیب علیه السلام ته ئی ټوله قصه بیان کړه. حضرت شعیب علیه السلام حضرت موسیٰ علیه السلام راؤغوښتلو.حضرت موسیٰ دَ پیدائش نه تر دغه وخته پورې خپل ټول حال هغوی ته واؤرولو. حضرت شعیب علیه السلام هغه ته تسلی ورکړه چه ویریږه مه ته دَظالمانونه خلاص شوې. روستو دَحضرت موسیٰ دَلوڼړونه یوې اووئیل دکومې نوم چه صفورا وو. اې زمونږ پلاره دا خپل نوکر اوساته دې دپاره چه زمونږ چیلئی څره وِی. بیشکه ښکلې اجیر او نوکر هغه سړې دې چه مضبوط او طاقتور وی او امانت داروی. دَ طاقت اوتکره والی خوئی داحال دې کوم کانړې چه به ډیرو سړو نه شو اوچتولې دې سړی هغه یوازې ځان له ډیر په آسانئې سره اوچت کړو اخوائی کیخودو اودَ امانت ئی داحال دې چه دې سړی ماته ځان پسې شاته دَتلو اووئیل چه ماپسې شاشاته راځه او په ژبه راته لاربښایه او په چا کښې چه دا دوه خصلتونه وی یعنی طاقت اوامانت هغه به ښه خدمت کوی.[2]

---

[1] إرشادالساري: ۲۱۹/۵.
[2] [illegible] آ ۸/۳۰۸ – ۳۰۹ للشیخ العلامة محمد ادریس کاندهلوی رحمه الله

**دترجمة الباب د دويم جزء مقصد:- قوله: (الخازن الامين ومن لم يستعمل من اراده)** دا دترجمة الباب دويمه حصه ده اودي دوه اجزاء دی اوبیا امام بخاری رحمه الله ددي دواړو اجزاؤ دپاره یو یوحدیث پیش کړي

په دي کښي امام بخاری رحمه الله دا ښائی چه که یوسړي خپل ځان د اجیر جوړیدلو دپاره خپل ځان پیش کړی او بل سړي هغه د اجیرساتلونه انکاراوکړی نوددي اصل هم په سنت کښي موجود دي. خوداخبره په ذهن کښي اوساتئی چه دا څه قاعده اوکلیه نه ده اکثرداسي کیږی چه سړي خپل ځان وړاندي کوی نود دي خبري ضرورت داعی ته وی چه دي اجیراوساتی. تاسو ته د څه کاردپاره د اجیرضرورت شته. اوس تاسو ته نه ده معلومه چه کوم یوسړي د دي کارد پاره موزون او فارغ دي نوکه چري په داسي صورت کښي اجراء خپل ځان پیش کړی نوتاسو ته دهغه د اهلیت او آمادګئی هم اندازه کیدي شی. [1]

اوبیایوسف علیه السلام پخپله درخواست کولوسره دمالیات کار په خپله ذمه واخستو. ﴿ اجْعَلْنِي عَلَى خَزَائِنِ الْأَرْضِ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ ﴾ [2] حضرت مولانا شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه (حضرت یوسف علیه السلام د وزیر مالیات عهده ددي دپاره اختیارکړه) دي دپاره چه ددي په ذریعه هغه عام مخلوق ته فائده اورسولي شی. خاص کر په راتلونکی خطرناك قحط کښي ډیر په ښه طریقه دانتظام د مخلوق خیال ساتل اودحکومت مالی حالت مضبوط اوساتلي شي. ددي نه معلومیږی چه انبیاء علیهم السلام به د دنیاعقل هم ښه کامل لرلو اودا چه د مخلوق د همدردئی دپاره دمالیات په قصوکښي پریوتل ئی د شان نبوت اوبزرګئی خلاف نه ګنړلو. که یوسړي په نیك نیتئی سره داګنړی چه دفلانکی منصب زه اهل یم او نور به داکار په ښه طریقه اونه کړي شی نودمسلمانانو د خیرغوښتلو او نفع رسولو په غرض د هغي خواهش یا درخواست کولي شی اوکه دضرورت مطابق خپل بعض خصائل حسنه اوصاف حمیده تذکره کول وی نودا په ناجائزمدح کولوکښي داخل نه دی. [3]او په بعض احادیث مبارکه کښي ددي تائیدهم راغلي دي. لیکن بعض صورتونه بیشکه داسي وی چه په هغي کښي خپل ځان پیش کونکي سړي دهغه کار دپاره مناسب نه وی اودهغه دا طلب په دي خبره باندي دال وي چه هغه دعهدي حریص دي اود هغه په نیت کښي فساد او خرابي دي نوداسي سړي خو یقینا نه دی ساتل پکار.

[حدیث ۲۱۴۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي جَدِّي أَبُو بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ-رضي الله عنه- قَالَ قَالَ النَّبِيُّ-صلى الله عليه وسلم- «الْخَازِنُ الْأَمِينُ الَّذِي يُؤَدِّي مَا أُمِرَ بِهِ طَيِّبَةً نَفْسُهُ أَحَدُ الْمُتَصَدِّقِينَ». [ر: ۱۳۷۱]

---

[1] لامع الدراری: ۶/۱۵۷ – ۱۵۸.

[2] یوسف: ۵۵.

[3] تفسیر شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیراحمدعثمانی رحمه الله ص: ۳۲۱.

**ترجمه**:- حضورپاك ﷺ فرمائيلى دى امانت دار خزانچى ‹داروغه› چه دخپل مالك وركړې شوې رقم ‹پوره پوره› په خوشحالئى سره اداكړى هغه ته به هم دَ صدقه ثواب ملاويږى.[1]

## رجال الحديث

**محمدبن يوسف**:- دامحمدبن يوسف بن واقد ابوعبدالله فريابى رحمه الله دې.[2]
**سفيان**:- دا سفيان ثورى رحمه الله دې.[3]
**أبوبردة**:- دا ابوبرده بريد بن عبدالله رحمه الله دې.[4]
**ابوبردة**:- دا حضرت ابوبرده عامر رحمه الله دې.[5]
**ابوموسىٰ اشعرى**:- دا مشهور صحابى حضرت ابوموسىٰ اشعرى عبدالله بن قيس رضى الله عنه دې.[6]

**دَحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت **قوله ‹الخازن الامين›** سره ظاهردې.

**دَعلامه اسماعيلى او داؤدى رحمهماالله په حديث باب اشكال**:- دې حضراتو په امام بخارى رحمه الله باندې اعتراض كړې دې چه هغه په دې باب دَ اجاره كښې داحديث ولې راوړو. او په حديث مذكوره كښې دَ اجاره هيڅ ذكرهم نشته.[7]

**جواب**:- علامه ابن التين رحمه الله فرمائى چه دَ امام بخارى رحمه الله مراد هغه خازن دې چه په جمع شوى مال كښې دهغه خپل هيڅ څيز نه وى او ښكاره خبره ده چه هغه به هم اجيروى. داسې هم وئيلې شى چه خزانچى دوه قسمه وى يو اعزازى او بل چه په اجرت باندې اوساتلې شى اودلته ئى خازن عام ذكركړې دې نودَدې نه هم دَاجرت والاخازن مراد واخلئى.[8]

[حديث ۲۱۴۲] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ قُرَّةَ بْنِ خَالِدٍ قَالَ حَدَّثَنِي حُمَيْدُ بْنُ هِلَالٍ حَدَّثَنَا أَبُو بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضى الله عنه - قَالَ أَقْبَلْتُ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه

---

[1] أخرجه البخارى أيضًا فى كتاب الزكاة باب اجر الخادم إذا تصدق الغ الحديث: ۱۴۳۸ وفى كتاب الوكالة باب وكالة الامين فى الخزانة ونحوها الحديث ۲۳۱۹ واخرجه مسلم فى كتاب الزكاة باب اجرالخازن الاغمين الغ الحديث: ۲۳۶۰ واخرجه أبوداؤد فى كتاب الزكاة باب اجر الخازن الحديث: ۱۶۸۴ واخرجه النسائى فى كتاب الزكاة باب اجرالخازن إذا تصدق باذن مولاه الحديث ۲۵۵۹.
[2] كشف البارى:۲۵۲/۳.
[3] كشف البارى:۳۷۸/۲.
[4] كشف البارى:۶۹۰/۱.
[5] كشف البارى:۶۹۰/۱.
[6] كشف البارى:۶۹۰/۱.
[7] فتح البارى:۵۵۶/۴.
[8] عمدة القارى مع اضافة يسيرة:۷۸/۱۲.

وسلم - وَمَعِي رَجُلَانِ مِنَ الأَشْعَرِيِّينَ، فَقُلْتُ مَا عَلِمْتُ أَنَّهُمَا يَطْلُبَانِ الْعَمَلَ. فَقَالَ «لَنْ أَوْلَا نَسْتَعْمِلُ عَلَى عَمَلِنَا مَنْ أَرَادَهُ». [۶۵۲۵، ۶۷۳۰، ۶۷۳۷، ۶۷۳۸]

**ترجمه**:- حضرت ابوموسى اشعرى رضی الله عنه فرمائي چه زه د يمن نه حضورپاك له راغلم ماسره د اشعرى قبيلې دوه سړى هم وو (هغوى د حضوراكرم نه د څه خدمت (منصب) درخواست اوكړو) ماعرض اوكړو يا رسول الله ! ماته معلومه نه وه چه دوى به دا خدمت (منصب) غواړى حضورپاك اوفرمائيل څوك چه زمونږ نه خدمت اوغواړى مونږ هغه ته هيڅ كله خدمت نه وركوو (۱)

## رجال الحديث

**مسدد**:- دامسدد بن مسرهد رحمه الله دې. (۲)

**يحيى**:- دايحيى بن سعيد القطان رحمه الله دې. (۳)

**قرة بن خالد**:- دا قرة بن خالد ابومحمد سدوسى بصرى رحمه الله دې. د دوى تذكره كتاب مواقيت الصلاة باب السمر فى الفقه والخير بعد العشاء كښې تيره شوې ده.

**حميد بن هلال**:- داحميد بن هلال بن هبيرة عددى بصرى رحمه الله دې. د دوى تذكره كتاب الصلاة باب يرد المصلى من مر بين يديه كښې تيره شوې ده

**د حديث باب ترجمة الباب سره مناسبت**:- د حديث مناسبت ترجمة الباب دويم جزء ومن لم يستعمل من اراده سره ښكاره دې. (۴)

## ۲ - باب: رعى الغنم على قراريط

### په قيراط تنخواه باندې چيلئ څرول

**قوله قراريط تحقيق**:- قراريط د قيراط جمع ده او قيراط نصف دانق ته وائى. يو دينار د شپږ دانق وى نو يو قيراط د يو دينار دولسمه حصه ده. بعض حضراتو وئيلى دى چه دا د يو دينار شلمه حصه وى او بعضو وئيلى دى چه د يو دنيار څليريشتمه حصه وى (۵)

---

(۱) الحديث اخرجه مسلم فى كتاب الامارة باب النهى عن طلب الامارة والحرث عليها رقم:۴۷۱۸ النسائى فى كتاب الطهارة باب يستاك الامام بحضرة رعبته رقم:۴ وكتاب آداب القضاة رقم:۵۲۸۷ وابوداؤد فى كتاب الخراج والامارة والفئ رقم: ۲۵۴۱ وكتاب القضية رقم:۳۱۰۸ وكتاب الحدود رقم:۳۷۹۰ والامام أحمد رحمه الله فى مسنده رقم:۱۸۶۸۷، ۱۸۸۵۳ انظر كذلك فى جامع الاصول بعث أبى موسى ومعاذ إلى يمن رقم:۶۱۷۹.

(۲) كشف البارى:۲/۲.

(۳) كشف البارى:۲/۲.

(۴) الابواب والتراجم ص:۱۶۶.

(۵) النهاية فى غريب الحديث والاثر:۲/۴۳۸ مجمع بحار الانوار:۴/۲۵۱ عمدة القارى:۱۱/۷۹.

بعض حضراتوداهم وئیلي دی چه دلته متعارف قراريط مرادنه دي بلکه دا په مکه مکرمه کښې يوځائي وو. علامه عينى رحمه الله دې قول ته ترجيح ورکړې ده ليکن داخبره تسليم کول ګران دی ځکه چه په مکه يا خواؤشا علاقه کښې د دې نومې ځائي هيڅ پته نه لګي. (١)

**د ترجمة الباب مقصد:-** امام بخارى رحمه الله د دې ترجمة الباب په ذريعه د چيلو څرولو د عمل فضيلت طرف ته اشاره کوى. (٢) چه پيغمبر عليه السلام او نورو انبياء کرام عليهم السلام هم چيلئ څرولي دى. لکه څنګه چه پخپله نبى کريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه يو نبى داسې نه دې چه چيلئ نه وى څرولې. (٣) په يوحديث کښې دى چه يوځل د اوښانو څرونکو او چيلو څرونکو په خپل مينځ کښې فخرکولو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاداوفرمائيلو چه موسى عليه السلام نبى جوړکړې شو راوې ليګلو اوهغه د چيلوڅرولووالا وو او حضرت داؤد عليه السلام نبى جوړکړې شو هغه هم د چيلوڅرولووالا وو اوزه نبى جوړکړې شو نو مابه هم د خپل کوروالا چيلئ مقام اجياد کښې څرولې. (٤) حضورپاك په اجرت باندې هم د مکې والا چيلئ څرولى دى لکه چه د باب په روايت کښې دى.

**د انبياء کرامو عليهم السلام په چيلو څرولوکښې حکمت:-** شارحين کرام فرمائى د حضرات انبياء عليهم الصلوة السلام چيلئ څرول د امت شپانړتوب طريقه وه ځکه چه د اوښانواو غواګانو څرول دومره ګران نه وى څومره چه د چيلو څرول ګران وى. چيلئ يوکمزورې ځناوردې او ضدى هم دى اوس د دې د کمزورتى د وجې نه په دې سختى هم نه شې کولې او د ضدى کيدو د وجې د مسلسل خيال ساتل هم کول وى. چيلئ که په دې لحظه دلته وى نو په بله لحظه بل طرف ته په منډو ليدلې شى. د رمې څه چيلئ دې منډې وهې نو څه به بل طرف ته او شپونړکې دې چه هر طرف ته خيال ساتى چه چرته څه ليوه وغيره خودې په فکرکښې نه دې. غواړې چه تولې چيلئ په يو ځائي راجمع وى او يوه چيلئ د رمې نه چرته جدانه شى او شرمخ دا يوسى. د سحرنه ترماښامه پورې شپونړکې په دې فکرکښې هغوى پسې شاشاته پريشان اوسيږى. هم دغه حال د انبياء کرام عليهم الف الف صلوات وتسليمات د خپل امت سره وى چه د هغوى د اصلاح اوفلاح په فکرکښې شپه ورځ سرګردان وى. د امت کسان خود شرمخانوغوندې او د چيلوپه شان اخواديخوا منډې وهى ګرځى اوانبياء عليهم الصلوة والسلام په ډير شفقت او مينه سره هغوى د حق دين طرف ته راغوارې او د امت په دې بې توجوئې سره چه دې حضراتو ته کوم تکليف اومشقت وررسى په هغې باندې صبر اوتحمل کوى او سره د دې بيايوخت هم د دعوت اوتبليغ او د تعليم ورکولو سره نه ستړې کيږى او نه ويريږى.

اولکه څنګه چه چيلئ د خطرناکو ځناورو د حملونه بې خبره وى دغه شان امت د نفس او شيطان د مهلك حملونه بې خبره وى اوحضرات انبياء کرام عليهم الصلوات والتسليمات

---

(١) فتح البارى: ٥٥٧/٤ وإرشادالسارى: ٢٢٢/٥.

(٢) الابواب والتراجم ص: ١٦٦.

(٣) رواه البخارى فى هذاالباب سياتى تخريجه.

(٤) عمدة القارى: ٨٠/١٢.

هروخت په دې فکر کښې وی چه چرته نفس اوشیطان هغوی اوچت نه کړی او د خپل امت خراب حالت ته په کتلوسره دننه دننه ویلی کیږی ﴿ لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴾ (الشعراء: ۳) یعنی کیدې شی ته خپل ځان مړ کوې په دې خبره چه هغوی ایمان نه راوړی. [1]

[۲۱۴۳] (ز) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَكِّي حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى عَنْ جَدِّهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضی الله عنه - عَنِ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَا بَعَثَ اللَّهُ نَبِيًّا إِلاَّ رَعَى الْغَنَمَ». فَقَالَ أَصْحَابُهُ وَأَنْتَ فَقَالَ «نَعَمْ كُنْتُ أَرْعَاهَا عَلَى قَرَارِيطَ لأَهْلِ مَكَّةَ».

**ترجمه**:- حضوراکرم ﷺ فرمائیلی چه الله تعالی یوداسې پیغمبرنه دې پیداکړې چه هغه چیلئی نه وی څرولې. صحاب کرامو ﷺ عرض اوکړو آیا تاسو هم چیلئی څرولی دی نوحضورپاك ﷺ اوفرمائیل او ما هم په یوڅوقیراط تنخواه باندې د مکې والاچیلئی څرولې.

## رجال الحدیث

**احمدبن محمدمکی**:- داحمدبن محمدبن ولید بن عقبة ابن الازرق بن عمرو غسانی مکی رحمه الله دې د دې د چاتذکره چه کتاب الوضوء باب الاستنجاء بالحجارة کښې تیره شوې ده.

**عمروبن یحیی**:- داعمرو بن یحیی بن سعید رحمه الله دی. [2]

**عن جده**:- دا سعیدبن عمرو بن سعید بن العاص الاموی رحمه الله دې. دَوی تذکره هم کتاب الوضوء باب الاستنجاء بالحجارة تیره شوې ده. [3]

**ابوهریرة**:- داصحابی رسول ﷺ حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې. [4]

**دحدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَحدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې. وهوقوله صلی الله تعالی علیه وسلم کنت أرعاها علی قراریط لاهل مکه.

## ۳- باب: استئجار المشركين عند الضرورة، أو: إذا لم يوجد أهل الاسلام

### که چرته مسلمان مزدور ملاؤنه شی نو دضرورت په وخت مشرك مزدور لګول

**دَترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری رحمه الله فرمائی چه په عام حالاتو کښې خونیك اوصالح مزدور ساتل پکاردی. خوکه دَ ضرورت په وخت مسلمان مزدور نه ملاویږی نوغیرمسلم هم اجیرساتلې شی. [5]

---

[1] فتح الباری ۵۵۷/۵ عمدة القاری: ۸۰/۱۲ إرشاد الساری:۲۲۲/۵ تحفة الباری:۹۶/۳ سیرة المصطفی صلی الله تعالی علیه وسلم للشیخ کاندهلوی:۹۸/۱ – ۹۹.

[2] وأخرجه ابن ماجه فی سننه فی کتاب التجارات رقم:۲۱۴۰ولم یخرجه أحدمن أصحاب السنة سوی البخاری وابن ماجه أنظر جامع الاصول:۶۷۷/۴رقم الحدیث۲۷۸۳.

[3] کشف الباری:۱۱۵/۲.

[4] کشف الباری:۶۵۹/۱.

[5] عمدة القاری: ۸۰/۱۲.

**دعلماؤ د اختلاف بيان:-** د امام بخاري رحمه الله ترجمة الباب په دې خبره باندې دلالت کوي چه بغير د ضرورت نه مشرکان اجيرساتل جائزنه دی خو جمهور علماء فرمائي چه بغيرضرورت نه هم مشرکان اجيرساتلې شی. دامام بخاري رحمه الله روايت خو هم دومره خبره ښائی چه حضورپاك ﷺ د ضرورت په وخت مشرك اجير ساتلې. خودې نه دا نه ثابتيږي چه ضرورت نه وی نو په هغه صورت کښې به مشرك اجيرنه شی ساتلې. په دې کښې ددغه مشرکانو اهانت او ذلت هم دې چه هغوی د اهل اسلام خدمت کوی. (١)

**وَعَامَلَ النَّبِيُّ ﷺ يَهُودَ خَيْبَرَ.** [ر: ٢١٦٥]

يعنی رسول الله ﷺ د خيبرزمکه د خيبريهوديانوته په کرورکړې وه. چونکه هغوی ددې ماهران وو اوهلته څوك مسلمان نه وو په دې وجه دغه يهوديان ضرورة اجير اوساتلې شو. (٢)

لکه چه مصنف عبدالرزاق کښې اثرنقل دې: عن ابن شهاب قال: لم يكن للنبي صلى الله تعالى عليه وسلم عمال يعملون بها نخل خيبر وزرعها فدعا النبي صلى الله تعالى عليه وسلم يهود خيبر فدفعها إليهم. (٣)

[حديث ٢١٤٤] (٤) **حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ -رضى الله عنها- وَاسْتَأْجَرَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- وَأَبُو بَكْرٍ رَجُلاً مِنْ بَنِي الدِّيلِ ثُمَّ مِنْ بَنِي عَبْدِ بْنِ عَدِيٍّ هَادِيًا خِرِّيتًا - الْخِرِّيتُ الْمَاهِرُ بِالْهِدَايَةِ - قَدْ غَمَسَ يَمِينَ حِلْفٍ فِي آلِ الْعَاصِ بْنِ وَائِلٍ، وَهُوَ عَلَى دِينِ كُفَّارِ قُرَيْشٍ، فَأَمِنَاهُ فَدَفَعَا إِلَيْهِ رَاحِلَتَيْهِمَا، وَوَعَدَاهُ غَارَ ثَوْرٍ بَعْدَ ثَلاَثِ لَيَالٍ، فَأَتَاهُمَا بِرَاحِلَتَيْهِمَا، صَبِيحَةَ لَيَالٍ ثَلاَثٍ، فَارْتَحَلاَ، وَانْطَلَقَ مَعَهُمَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ، وَالدَّلِيلُ الدِّيلِيُّ فَأَخَذَ بِهِمْ أَسْفَلَ مَكَّةَ وَهُوَ طَرِيقُ السَّاحِلِ.** [ر: ٤٦٤]

**ترجمه:-** حضرت عائشه رضي الله عنها (دهجرت واقعه نقل کولوسره) بيان فرمائی چه حضورپاك ﷺ اوحضرت ابوبکر رضي الله عنه د ديل بستئی يوسړی ملازم اوساتلو چه دبنی عبدبن عدی دخاندان نه وو او په لارو خودلو کښې ښه هوښيار وو اوهغه خپل لاس (په څه څيز کښې) دوبولوسره دعاص بن وائل خاندان سره وعده کړې وه چه هغه د قريشود کافرانو په دين باندې دې. دارو حضراتو (حضورپاك ﷺ اوحضرت ابوبکر رضي الله عنه) په هغه باندې يقين اوکړو اوخپلې اوښې ئې هغه ته حواله کړې اودا فيصله ئې اوکړه چه درې شپې پس اوښې غارثور ته راوله. هغه د وعدې

---

(١) إرشاد الساری: ٢٢٢/٥ وشرح صحيح البخاری لابن بطال: ٣٨٧/٦ لامع الدراری: ١٦١/٦.

(٢) حواله بالا.

(٣) فتح الباري: ٥٥٨/٤.

(٤) وأخرجه البخاری أيضًا فی کتاب الادب باب هل يزور صاحبه کل يوم او بکرة وعيشا الحديث: ٦٠٧٩وفی کتاب اللباس باب التقنع الحديث: ٥٨٠٧ ولم يخرجه أحدمن أصحاب الاصول السنة سوی البخاری وانظر تحفة الاشراف: ٩٣/١٢ الحديث ١٦٦٥٣.

مطابق په دریمه شپه سحر اوښې واخستې لاړو. دواړه روان شو اوهغوی سره عامربن فهیره هم وو (دحضرت ابوبکر رضی الله عنه غلام) اوهغه لار خودونکې د بنی دیل سړې هم وو اوهغه دوی دمکې مکرمې په ښکته لاره یعنی دسمندر په غاړه غاړه بوتلل.

## رجال الحدیث

**ابراهیم بن موسی:**- داابراهیم بن موسی بن یزیدالتیمی ابواسحاق الفراء الرازی الصغیر رحمه الله دې. دَ دوی تذکره کتاب الحیض باب الغسل الحائض رأس زوجها وترجیله کښې تیره شوې ده.

**هشام:**- داهشام بن یوسف الانباری الصنعانی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره هم په مذکوره کتاب او باب کښې تیره شوې ده.

**معمر:**- دامعمر بن راشد ازدی رحمه الله دې. (۱)

**الزهری:**- دامحمدبن مسلم بن شهاب الزهري رحمه الله دې. (۲)

**عروة:**- دا عروه بن زبیر بن العوام رضی الله عنه دې. (۳)

**عائشة:**- اودام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها تذکره هم تیره شوې ده. (۴)

**قوله: رجلاً من الدیل:**- ابن اسحاق رحمه الله فرمائی دَ دغه سړی نوم عبدالله بن ارقم وو. ابن هشام رحمه الله وئیلی دی چه د ده نوم عبدالله بن اریقط وو او امام مالك رحمه الله دَ قول مطابق دَده نوم رقیط وو. (۵)

**قوله: هادیاً خریتاً:**- هادی هدی الطریق نه دې یعنی لاره خودونکې. خریت علامه ابن الاثیر رحمه الله فرمائی: الماهر، الذی یهتدی، لاخرات المفازة وهی طرقها الخفیة، ومضایقها وقیل: إنه یهتدی، لمثل خرت الابرة، من الطریق. (۶) یعنی په لارخودلوکښې ماهر اودَ سختو ګرانو لارو نه هم خبر. داهم وئیلې شوی دی لکه څنګه چه دستنې سورې باریك وی هم دغه شان خریت ته هم په باریکو لاروباندې واقفیت وی.

**قوله: قدغمس یمین حلف:**- دائی څکه اووئیل چه دَ عربودستور ووچه کله به هغوی چاسره معاهده کوله نو فریقینو به خپل لاسونه په خلوق (یوه مشهوره خوشبوده چه زعفران یا نورو خشبویانوملاوولوسره جوړیږی او په دې باندې سور یا زیړ رنګ غالب وی اودا دَ ښځو دَ خوشبونه شمیرلې شی) (۷) یا په وینه یا په اوبو کښې لاس ډوبوی مطلب ئی دا وی چه په

---

(۱) کشف الباری:۱/۴۶۵.
(۲) کشف الباری:۱/۳۲۶.
(۳) کشف الباری:۱/۳۲۵.
(۴) کشف الباری:۱/۲۹۱.
(۵) عمدة القاری:۱۲/۸۱.
(۶) النهایة فی غریب الحدیث والاثر:۱/۴۷۸.
(۷) النهایة لابن الاثیر:۱/۵۲۶.

یو رنګ کښې رنګ شي او په معاهده کښې نور کلکوالې راشي.[1]

**قوله: وهو علی دین کفار قریش** :- په دې کښې دَدې خبرې تصریح ده چه هغه سړې کافر وو خو حضور پاک ﷺ هغه معتبر اوګڼړلو هغه ئې اجیر مقرر کړو نو معلومه شوه چه کافر اجیر جوړول جائز دي.

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:-د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضح دې.

## ۴-باب: إذا استأجر أجیرًا لیعمل له بعد ثلاثة أیام، أو بعد شهر، أو بعد سنة جاز، وهما علی شرطهما الذی اشترطاه إذا جاء الأجل

**کله چه څوک دِ څلورو درې ورځې یا یوه میاشت یا شپږ میاشتې یا یو کال نه پس د مزدورئ اخستو معاهده اوکړي او مقرروخت راتلو پورې دواړه په خپله وعده باندې قایم پاتې شي نو دا جائز دي.**

**دَترجمة الباب مقصد**:- دَ امام بخاري رحمه الله مقصود داخودل دی چه په عقد اجاره او عمل کښې اتصال ضروری نه دې. تاسونن یوسړي سره عقد اجاره اوکړه او هغه ته دې اووئیل چه درې ورځې پس ته خپل کارشروع کړه نو دا جائزدي. په حدیث کښې دَ دریوورځو ذکر دې لیکن امام بخاري رحمه الله دا سلسله نوره هم زیاته کړې ده چه کله درې ورځې روستو کولې شي نو میاشت او کال دَپاره ئې هم مؤخر کولې شي.

**دفقهاؤ د اختلاف بیان**:- دامام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دغه مسلك دې کوم چه امام بخاري رحمه الله بیان کړې دې اودَدې حضراتو دلیل حدیث باب دې چه رسول الله ﷺ اوابوبکر صدیق رضي الله عنه دَ قبیله بنودیل یوسړي دَ خپلې لارخودلو دپاره مقرر کړې وو او هغه ته ئې وئیلی چه ته درې ورځې پس اوښې راوله. دامام مالك په نیز که دې وخت کښې اجرت نه وی ورکړې شوې نو مطلقًا جائزدي او که اجرت نقدورکړې شو او بیا که دعمل موده نیزدې ده نو دا کارجائزدې ګنې جائزنه دې. په دې وجه که اجرت ورکړې شو اوعمل دَاوږدې مودې دَپاره اوساتلې شو نو هیڅ پته نه ده چه هغه سړې به ژوندې وي او که نه خو که په لږه موده باندې عمل اوساتلې شي نو جائز ځکه چه په دې کښې غالب ګمان دَ سلامتیا دې.[2]

شوافع فرمائي دَ اجارې دوه قسمه دی ① اجاره عین ② اجاره ذمه. که چرې اجاره ذمه ده نو هغه وخت فصل جائزدې مثلاً دَ یوسړي په ذمه تا څه کاراولګولو چه یوه میاشت پس زما دا سامان حیدرآباد ته رسول دی نو که هغه ئې یو میاشت پس اورسوی نو څه حرج نشته. دویمه اجاره عین ده مثلاً داسې اووائی چه زمادا سامان په دې اس باندې بارکړه او دا حیدرآباد ته رسول دی. اول دَ اس قیدنه وو نواوس په دې اجاره کښې فصل کول دامام شافعي رحمه الله په نیز

---

[1] إرشاالساري:۵/۲۲۳.

[2] عمدة القاري:۱۲/۱۱۸.

جائزنه ده دا څکه چه کیدې شی هغه اس مرشی. [1]

[۲۱۴۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - زَوْجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَتْ وَاسْتَأْجَرَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَأَبُو بَكْرٍ رَجُلاً مِنْ بَنِي الدِّيلِ، هَادِيًا خِرِّيتًا وَهُوَ عَلَى دِينِ كُفَّارِ قُرَيْشٍ، فَدَفَعَا إِلَيْهِ رَاحِلَتَيْهِمَا، وَوَاعَدَاهُ غَارَ ثَوْرٍ بَعْدَ ثَلاَثِ لَيَالٍ بِرَاحِلَتَيْهِمَا صُبْحَ ثَلاَثٍ. [ر ۴۶۴] [2]

**ترجمه**:- حضرت عائشه رضي الله عنها (دهجرت واقعه نقل کولوسره) بیان فرمائی چه حضورپاک ﷺ اوحضرت ابوبکر رضي الله عنه د دیل یوسړي نوکر اوساتلو چه په لار خودلوکښې ښه هوښیار وو. دکفارقریش په دین باندې وو. نودواړو حضراتو خپلې اوښې هغه ته حواله کړې اوهغه سره ئې دافیصله اوکړه چه درې شپې پس دې هغه ددې حضراتو سورلئی واخلی سحروختی دې غارثورته راشی.

## رجال الحدیث

**یحیی بن بکیر**:- دایحیی بن بکیرعبدالله بن ابوزکریا رحمه الله دې. [3]

**لیث**:- دالیث بن سعد رحمه الله دې. [4]

**عقیل**:- داعقیل بن خالدبن عقیل رحمه الله دې. [5]

**ابن شهاب**:- دامحمدبن مسلم بن شهاب زهری رحمه الله دې. [6]

**عروة بن زبیر**:- دا عروه بن زبیر عوام رحمه الله دې. [7]

**عائشة**:- اودحضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها تذکره هم تیره شوې ده. [8]

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت په دې توګه دې چه رسول الله ﷺ اوحضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه د بنودیل یوسړی سره په دې شرط باندې داجاره عقداوکړو چه هغه دې درې ورځې د دواړو حضراتو د اوښوساتنه اوکړی او په دریمه ورځ دې غارثور ته راورسی اوبیادې ددې حضراتو په لارکښې لارخودنه اوکړی. کوم چه دې عقدسره

---

[1] لامع الدراری:۶/۱۶۲ – ۱۶۳.

[2] مرتخریجه فی الباب السابق.

[3] کشف الباری:۱/۳۲۳.

[4] کشف الباری:۱/۳۲۴.

[5] کشف الباری:۱/۳۲۵.

[6] کشف الباری:۱/۳۲۶.

[7] کشف الباری:۱/۲۹۱.

[8] کشف الباری:۱/۲۹۱.

مقصودبذات ده. سره ددې چه په حديث كښې شروع دعمل درې ورځې پس ده ليكن امام بخارى رحمه الله اجل قريب په اجل بعيدباندې قياس كولوسره اوفرمائيل كه چرې دعمل شروع كول مياشت پس يا كال پس هم وى نوبياهم عقداجاره جائزده.[1]

**دامام اسماعيلى رحمه الله اشكال اودهغې جواب:** په دې تقريرسره هغه اشكال هم حل شو كوم چه اسماعيلى رحمه الله په امام بخارى رحمه الله باندې كړې ووچه دې روايت سره ترجمة الباب ثابت نه شوځكه چه د بنوديل هغه سړى په كومه ورځ حضورپاك او صديق اكبر رضي الله عنه سره معامله كړې وه هم دهغه ورځ نه ئې كارهم شروع كړې وو اوهغه ددې حضراتو سورلئى اخستې وې او روان شوې وو. بيا فصل دې روايت سره څنګه ثابتولې شى.[2] نوددې جواب اوشو چه اصل معامله دكومې دپاره چه دې اجيرساتلې شوې ووهغه دلاړې خودلووه كومه چه درې ورځې پس شروع شوه.

## ۵-باب: الاجيرفى الغزو

### په غزوه كښې مزدورساتل

**دترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله په حالت غزوه كښې د عقداجارې حكم بيانوى. اود يوشك ازاله كوى چه غزوه كوم چه داعمال صالحه نه ده اوددې اصلى مقصدالله تعالى رضا ده نوكيدې شى چه په غزوه كښې د بل چانه كار اخستل جائزنه وى اود اجيرساتلو اجازت نه وى، نو امام بخارى رحمه الله دې ترجمة الباب سره داخبره اوخودله چه غزوه بيشكه دعبادات نه ده اود الله تعالى د رضامندئى دپاره ده ليكن كه د غزوه په دروان كښې يوسړې دخپل ذاتى خدمت دپاره اجير اوساتى نو جائزدى.[3]

[حديث ۲۱۴۶][4] حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ -رضي الله عنه- قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- جَيْشَ الْعُسْرَةِ فَكَانَ مِنْ أَوْثَقِ أَعْمَالِي فِي نَفْسِي، فَكَانَ لِي أَجِيرٌ، فَقَاتَلَ إِنْسَانًا، فَعَضَّ أَحَدُهُمَا إِصْبَعَ صَاحِبِهِ، فَانْتَزَعَ إِصْبَعَهُ، فَأَنْدَرَ ثَنِيَّتَهُ فَسَقَطَتْ، فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَأَهْدَرَ ثَنِيَّتَهُ وَقَالَ «أَفَيَدَعُ إِصْبَعَهُ فِي فِيكَ تَقْضَمُهَا -قَالَ أَحْسِبُهُ قَالَ- كَمَا يَقْضَمُ الْفَحْلُ».

---

[1] )عمدة القارى:۱۲/۸۳.

[2] ) فتح البارى:۴/۴۶۰.

[3] ) فتح البارى:۴/۵۶۰ عمدة القارى:۱۲/۸۳.

[4] ) وأخرجه البخارى أيضاً فى كتاب الجهاد باب الاجير الحديث ۲۹۷۳ وأخرجه أيضاً فى كتاب المغازى باب غزوه تبوک الحديث ۴۴۱۷ وأخرجه أيضاً فى كتاب الديات باب إذا عض رجلاً فوقعت ثناياه. الحديث ۴۵۸۴ وأخرجه النسائى فى كتاب القسامة باب ذكرالاختلاف على عطاء الحديث:۴۷۸۰، ۴۷۸۱، ۴۷۸۳، ۴۷۸۴ وأخرجه ابوداؤد فى كتاب الديات باب فى الرجل يقاتل الرجل فيدفعه عن نفسه الحديث: ۴۵۸۴.

**ترجمه**: حضرت یعلی بن امیه ﷛ فرمائی نبی کریم ﷺ سره جیش عسرة (غزوه تبوك) کښې شریك ووم اودا زما په نیز دَ تولونه زیات قابل اعتماد عمل وو. زما یومزدور هم وو هغه یوسړی سره جګړه اوکړه او په هغوی کښې یوکس دَ بل ګوته باندې چك اولګولو بل چه دَهغه نه خپله ګوته خلاصه کړه نود ړومبی دَ مخې غاښ هم ورسره رااووتلو او پریوتلو په دې باندې هغه سړی خپله مقدمه نبی کریم ﷺ ته راوړه راغلو. خو نبی کریم ﷺ دهغه دَ غاښ ماتیدو هیڅ تاوان هغه ته ورنه کړو بلکه وئی فرمائیل چه آیا هغه خپله ګوته ستا په خوله کښې دَ چقولوډپاره پریخودې وه. راوی فرمائی زماخیال دې چه حضورپاك ﷺ اوفرمائیل لکه چه اوښ چیچول کوی.

## رجال الحدیث

**یعقوب بن ابن ابراهیم**:- دایعقوب بن ابراهیم بن کثیرالدورقي ﷫ دې. (1)

**اسماعیل بن علیه**:- دا اسماعیل بن ابراهیم بن مقسم ﷫ دې. (2)

**ابن جریج**:-داعبدالملك بن عبدالعزیز بن جریج ﷫ دې. دَدوی تذکره **کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله** کښې تیره شوې ده.

**عطاء**:- داعطاء بن ابی رباح ﷫ دې. (3)

**صفوان بن یعلی**:- داصفوان بن یعلی بن امیه التمیمی ﷫ دې. دَ دوی تذکره **کتاب الحج باب غسل الخلوق، ثلث مرات** کښې تیره شوې ده.

**یعلی بن امیه**:- دا یعلی بن امیه ابوصفوان ﷛ دې. دَدوی تذکره هم په مذکوره کتاب اوباب کښې تیره شوې ده.

**وقوله جیش العسرة**:- مرادترې غزوه تبوك دې اودې ته جیش العسرة نوم ځکه ورکړې شوچه کله نبی کریم ﷺ دَدې غزوه دپاره صحابه کرام ﷢ راؤغوښتل نودَتنګئی حالت وواوسخته ګرمی وه اودکهجورو دَ پخیدوزمانه وه. په داسې حال کښې غزوې ته وتل ډیرزیات سخت وو. دا غزوه په ۹ هجری کښې پیښه شوې وه. (4)

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**:- قوله فکان لی اجیر سره دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې.

**دَ فقهاؤ اختلاف**:- ددې حدیث مبارك نه مستفاد شوه که څوك په یوسړی چك اولګوی اوهغه دَ خان بچ کولودپاره هغه نه خان خلاص کړی او په دې سره دَهغه چك لګونکی غاښ مات شی

---

(1) کشف الباری:۲/۱۱.

(2) کشف الباری:۲/۱۲.

(3) کشف الباری:۴/۳۹.

(4) عمدة القاری:۱۲/۸۴ إرشادالساری:۵/۲۲۶.

نو په هغه باندې څه قصاص نشته او په ضمان کښې اختلاف دې احناف حنابله او بعض شوافع اودَ اصح قول مطابق مالکیه ضمان هم ساقط کوی ددې حضراتو جمهورو دلیل دَ قرآن کریم آیت مبارك ﴿ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ ﴾ (بقرة ۱۹۵) یعنی اوماچونی خپل ځان په هلاکت کښې اوخپل ځان دَ حمله کونکې په حواله کول خپل ځان پخپله په هلاکت کښې دَ اچولومترادف دی کوم چه ممنوع دې. اودَ خپل ځان دفاع اوحفاظت کول واجب دی. اودې جمهورو حضراتو دلیل حدیث باب هم دې بل دا خو دفع صائل (حمله کونکی) په حکم کښې دی ځکه چه په مصول علیه باندې څنګه دَخپل ځان وژل یعنی خودکشی کول حرام دی دغه شان بل چاډپاره دځان وژلو یا یوأندام پرې کول مباح کول حرام دی او په دغه مصول علیه باندې دَخپل ځان حفاظت کول واجب دی. کله چه هغه وجوبا خپله دفاع اوکړه اودَ صائل څه نقصان اوشو نو په ده به هیڅ قسم ضمان ثابت نه وی. او بعض شوافع اوبعض مالکیه دَ سقوط ضمان قائل نه دی. [1] داحضرات فرمائی چه که صائل یعنی حمله کونکې مسلمان معصوم الدم دې نودَهغه نه دفاع کول واجب اولازم نه دی بلکه خپل ځان هغه ته حواله کول هم جائزدی لکه چه ارشاد نبوی ﷺ دې کن کابن آدم یعنی تاسو دَ آدم علیه السلام خوئی هابیل په شان شئی (چه دَقابیل نه ئی خپل ځان بچ کړې نه وو) او دغه شان حضرت عثمان غنی رضی الله عنه هم دَ خپلو دَښمنانوسره جنګ ترك کړې وو او پهره دار ئی هم منع کړې وو حالانکه هغوی ته داخبره معلومه وه چه دا دښمنان هغوی قتل کول غواړی.

قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ وَحَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ جَدِّهِ بِمِثْلِ هَذِهِ الصِّفَةِ أَنَّ رَجُلاً عَضَّ يَدَ رَجُلٍ، فَأَنْدَرَ ثَنِيَّتَهُ، فَأَهْدَرَهَا أَبُو بَكْرٍ رضی الله عنه. [۲۸۱۴، ۴۱۵۵، ۶۴۹۸]

**ترجمه**:- عبدالله بن ابی ملیکه دَخپل نیکه نه بعینه هم هغه شان واقعه نقل کوی چه یوسړی دَبل سړی لاس باندې چك اولګولو (بل چه کله لاس رابښکلونو) دَ هغه غاښ مات شو اوحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه دهغه هیڅ تاوان وانخستو.

**دَ تعلیق تفصیل**:- دَابن جریج رحمه الله دا تعلیق امام حاکم په الکنی کښې موصولاً ذکر کړې دې. [2]

## رجال الحدیث

**ابن جریج**:- دا عبدالملك بن عبدالعزیز جریج رحمه الله دې. دَدوی تذکره شاته باب کښې تیره شوې ده.

**عبدالله بن ابی ملیکة**:- داعبدالله بن عبیدالله ابن ابی ملیکه رحمه الله دې. [3]

---

[1]) عمدة القاری:۱۲/۸۴ عون المعبود: ۱۲/۲۱۴ الموسوعة الفقهیة الکویتیة.

[2]) أخرجه هذا لتعلیق الحاکم ابوأحمد فی الکنی عن ابی بکر بن أبی داؤد حدثنا عمروبن علی حدثناابوعاصم عن ابن جریج عن ابن أبی ملیکه عن أبیه عن جده عن أبی بکر رضی الله تعالی عنه. عمدة القاری:۱۲/۸۵.

[3]) کشف الباری:۲/۵٤۸.

**قوله: عن جده:-** دَابوملیکه نوم زهیر بن عبدالله بن جدعان دې او هغوی صحابی ﷺ دې. علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه د عبدالله بن ابی ملیکه نه مراد عبدالله بن عبیدالله بن زهیر ابوملیکه هم کیدې شی لکه چه علامه مزی رحمه الله بیان کړې دې او عبدالله بن عبدالله بن عبدالله ابوملیکه بن زهیر هم کیدې شی لکه چه صاحب اصابه اختیار کړې دې نود قول اول مطابق دَ جده ضمیر مرجع ابوملیکه زهیر بن عبدالله دې اود دویم قول مطابق عبدالله بن زهیر دې [1]

## ۶-باب: من استاجر أجیرًا فبین له الاجل ولم یبین العمل

لِقَوْلِهِ (إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُنكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَاتَيْنِ) إِلَى قَوْلِهِ (عَلَى مَا نَقُولُ وَكِيلٌ) /القصص: ۲۷ - ۲۸/ يَأْجُرُ فُلَانًا يُعْطِيهِ أَجْرًا، وَمِنْهُ فِي التَّعْزِيَةِ أَجَرَكَ اللَّهُ.

یوسړی مزدور اوکړو او موده ئی هم ورسره فیصله کړه خودکارڅه تعیین نی اونه کړو په دې مسئله کښې وضاحت دَالله تعالی په ارشاد سره کیږی (حضرت شعیب علیه السلام اوونیل) زه غواړم چه واده کړم یوه لور تاته دَ خپلو دوو لونړو نه په دې شرط چه ته زما نوکری اوکړې اته کاله او بیا که ته پوره کړې لس کاله نوهغه ستاد طرف نه دی اوزه نه غواړم چه په تاباندې څه تکلیف واچوم ته به ما اووینې دَ نیك بختونه که چرې الله تعالی اوغواړی. وئی ونیل داوعده زما او ستا په مینځ کښې اوشوه. څنګه چه په دې دواړوکښې کومه موده پوره کړې نو په مادې زیاتې نه وی او په الله تعالی باندې یقین دې دَ هغه څیز کوم چه مونږ وایو. (قصص:۲۷،۲۸)

**قوله: یأجر فلان:-** یعنی فلانکې ده ته مزدوری ورکوی اوهم دَدې نه دې کوم چه دَتعزیت په موقع باندې وئیلې شی آجرك الله (الله تعالی دې تاله بدله درکړی)

**دَترجمة الباب مقصد:-** په اجاره کښې دا ضروری دی چه اجاره معلومه وی او دَ معلومیدو ړومبې صورت دادې چه اجل یعنی نیټه معلومه وی که عمل معلوم وی اوکه نه لکه چه تاڅوك د هفتې دپاره اجیر اوساتلو اوس به یوه هفته هغه ستا پابندوی کوم کارچه پرې ته کوې هغه به ئی کوی اودهغه کومه مزدوری چه تالره مقرر کړې ده هغه به ته ورکوې. که هغه ډیر کاراوکړی اوکه کم یا ته دَهغه نه څه کاروانخلې. اود اجارې معلومیدو دویم صورت دادې چه عمل معلوم وی که اجل معلوم وی اوکه نه. لکه چه تاسو یوکس ته کپړه دَقمیص ګنډلودپاره ورکړو اوس هغه سړې دَ قمیص ګنډلو پابنددې دَهفتې پابندنه دې که هغه په یوه ورځ کښې تاته دَ قمیص درکوی نوهغه دَ اجرت مستحق دې دا دواړه صورتونه صحیح دی. امام بخاری رحمه الله دَ صورت اول دَاثبات دپاره دا ترجمة الباب قایم کړې دې اود دویم صورت دَ پاره نی راتلونکې ترجمه قایم کړې ده. [2]

---

[1] إرشادالساری:۵/۲۲۶.

[2] عمدة القاری:۱۲/۸۵.

**یواشکال اود علامه کرمانی رحمه الله جواب:-** که چرې څوك اووائي چه امام بخاری رحمه الله دا باب ولې قایم کړې دې اوهغه په دې باب کښې څه حدیث هم نه دې ذکرکړې.

**جواب:-** علامه کرمانی رحمه الله فرمائی لکه چه مشهوره ده دتراجم ابواب نه زیات دامام بخاری رحمه الله مقصد مسائل فقهیه بیانول وی نودلته هم هغه دَ مذکوره آیت نه استدلال کولوسره دَهغه اجارې جواز بیانوی.[1]

**دَعلامه مهلب رحمه الله اشکال:-** علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه دَ امام بخاری رحمه الله په عقد اجاره کښې جهالت عمل باندې په دې آیت سره استدلال کول صحیح نه دی ځکه چه عمل خوددې دواړو حضراتو په مینځ کښې معلوم وو یعنی چیلئی څرول زمینداری کول وغیره هم په دې وجه باندې دا دَمذکوره آیت نه هم حذف کړې شوی.

**دَعلامه ابن المنیر رحمه الله جواب:-** ابن المنیر رحمه الله فرمائی چه په ترجمة الباب کښې دَ امام بخاری رحمه الله مقصود جهالت عمل جوازخودل نه دی بلکه دَهغه مقصوددادې چه دَعقد اجاره دَ جوازدَپاره صراحةً عمل خودل ضروری نه دې اودا هم قابل اتباع مقاصد کیږی نه چه الفاظ.[2]

**تنبیه:-** دَ هغه مهر مذکور په عوض نکاح دَ حضرت موسیٰ علیه السلام خصوصیت وو. دَاکثر علماؤ دَغه مسلك دې په دې وجه دَعام سړو په حق کښې په دومره اوږده موده کښې دَ غرر اودهوکې قوی اندیښنه شته. بل دلته حضرت شعیب علیه السلام دَخپلې یوې لور تعیین هم نه ووکړې. ﴿ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَاتَيْنِ ﴾ اوداسې نکاح هم دَ جمهورو په نیزجائزنه ده.[3]

**قوله: یاجر فلاناالخ:-** دَدې نه دَ امام بخاری رحمه الله مقصوددَالله تعالی ارشاد ﴿ عَلَىٰ أَن تَأْجُرَنِي ثَمَانِيَ حِجَجٍ ﴾ تفسیردې او دلته دَ عادت مطابق امام بخاری رحمه الله مشهور لغوی دَ ابوعبیده رحمه الله کتاب مجاز القرآن نه استفاده کړې ده.[4]

## ۷- باب: إذا استأجر أجيرًا على أن يقيم حائطًا يريد أن ينقض جاز

### که یوسړې څوك ددې كارد پاره مزدور اوساتی چه پریوتونکې دیوال صحیح کړی نو جائزدی

**دَترجمة الباب مقصد:-** دَدې ترجمة الباب مقصد په تیرشوی باب کښې تیرشو دَ قوله: (یریدان ینقض جاز)ذکر امام بخاری رحمه الله صرف دَ روایت رعایت کولوسره فرمائیلې دې ګنی دَهغه مقصد دادې چه دَعمل معلوم دَپاره اجیرمقرر کول جائزدی. اوس که دیوال نیغول وی اوکه تنور یا فرش وغیره جوړول وی. داهم په ذهن کښې اوساتئی که چرې تاسو چاته اووئیل چه دیوال نیغ کړه لس روپئی به درکړم اوهغه په خپل کرامت سره لړ شان لاس لګولوسره هغه

---

[1] شرح الکرمانی:۱۰/۱۰۰.

[2] إرشادالساری:۵/۲۲۷.

[3] عمدة القاری:۱۲/۸۵.

[4] حواله بالا.

رانیغ کړو نو ته به هغه ته لس روپئی ورکوې ته ورته دانه شې ونیلې چه تاخو هیڅ هم اونه کړل.

[۲۱۴۷] (۱) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي يَعْلَى بْنُ مُسْلِمٍ وَعَمْرُو بْنُ دِينَارٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ يَزِيدُ أَحَدُهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ، وَغَيْرُهُمَا قَالَ قَدْ سَمِعْتُهُ يُحَدِّثُهُ عَنْ سَعِيدٍ قَالَ قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - حَدَّثَنِي أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «فَانْطَلَقَا فَوَجَدَا جِدَارًا يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ». قَالَ سَعِيدٌ بِيَدِهِ هَكَذَا، وَرَفَعَ يَدَيْهِ فَاسْتَقَامَ، قَالَ يَعْلَى حَسِبْتُ أَنَّ سَعِيدًا قَالَ. فَمَسَحَهُ بِيَدِهِ فَاسْتَقَامَ {قَالَ} لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا». قَالَ سَعِيدٌ أَجْرًا نَأْكُلُهُ. [ر: ۷۴]

**ترجمه**:- رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې (دحضرت موسیٰ علیه السلام په واقعه کښې) چه بیادواړه حضرات (حضرت موسیٰ علیه السلام اوحضرت خضر علیه السلام) روان شو نو یو دیوال ئې اولیدلو چه هم اوس راپریوتونکې وو. حضرت سعیدبن جبیر رضی الله عنه په خپل لاس سره داسې اشاره اوکړه او خپل دواړه لاسونه ئې اوچت کړل (د دیوال صحیح کولو د کیفیت خودلو دپاره) نوحضرت خضر علیه السلام دیوال اودرولو. یعلی بن مسلم رحمه الله وائی چه زما خیال دې سعیدبن جبیر رضی الله عنه اوفرمائیل خضر علیه السلام دیوال ته لاس اولګولواو هغه نیغ شو. په دې باندې حضرت موسیٰ علیه السلام اووئیل که چرې تا غوښتل نوددې مزدوری دې هم اخستې شوه. خوسعیدبن جبیر رضی الله عنه اووئیل چه (دحضرت موسیٰ علیه السلام مراد دا وو) څه داسې مزدوری (تاله اخستل پکاروو کومه چه مونږ خوړلې شوه (څکه چه د دغه کلی والاخلقو د دوی میلمستیانه وه کړې)

## رجال الحدیث

**ابراهیم بن موسیٰ**:- دا ابراهیم بن موسیٰ بن یزیدالغراء ابواسحاق الصغیر رحمه الله دې (۲)

**هشام بن یوسف**:- داهشام بن یوسف ابوعبدالرحمن قاضی الیمن رحمه الله دې. (۳)

**ابن جریج**:- دا عبدالملک بن عبدالعزیز بن جریج رحمه الله دې. (۴)

---

(۱) وأخرجه البخاری أیضًا فی کتاب العلم باب ماذکر فی ذهاب موسیٰ إلی الخضر، رقم:۷۴ وباب الخروج فی طلب العلم رقم:۷۸ وباب مایستحب للعالم إذا سئل الخ رقم:۱۲۲ وفی کتاب الشروط باب الشروط مع الناس بالقول رقم:۲۷۲۸ وفی کتاب بدء الخلق باب صفة ابلیس وجوده، رقم:۳۲۷۸وفی کتاب احادیث الانبیاء باب حدیث الخضرمع موسیٰ علیهما السلام رقم:۳۴۰۰، ۳۴۰۱ وفی کتاب تفسیر القرآن سوره کهف باب واذ قال موسیٰ لفته الایة رقم: ۴۷۲۵ — ۴۷۲۷ وفی کتاب الایمان والنذور باب إذا حنث ناسیا فی الایمان الخ رقم:۶۶۷۲ وفی کتاب التوحید باب فی السیئة والا رادة رقم:۷۴۷۸ومسلم فی صحیحه:۱۰۳/۷ وأخرجه أحمد فی مسنده:۱۱۸/۵ وأبوداؤد رحمه الله فی سننه:۴۷۰۷ والترمذی فی جامعه:۳۱۴۹.

(۲) کشف الباری کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله.

(۳) حواله مذکوره.

(۴) حواله بالا.

**یعلی بن مسلم بن هرمز المکی:-** دا سلیم بن مسلم بن هرمز او عبدالله بن مسلم هرمز رور دې.
**اساتذه کرام:-** هغوی رحمه الله ابوالشعثاء جابربن زید، سعید بن جبیر، طلق بن حبیب رحمهم الله، عکرمه مولی ابن عباس رضی الله عنهما اومجاهدبن جبر مکی رحمه الله نه روایات نقل کوی.
**تلامذه کرام:-** سفیان بن حسین، شعبة بن الحجاج، عبدالرحمن بن حرمله اسلمی، عبدالملک بن عبدالعزیزبن جریج او محمدبن المنکدر رحمهم الله دَدوی نه روایات نقل کوی.[1]
یحیی بن معین رحمه الله او ابوزرعة رحمه الله فرمائی ثقة.[2]
یعقوب بن سفیان رحمه الله فرمائی مستقیم الحدیث.[3]
علامه ابن حبان کتاب الثقات کښې دَهغوی ذکرکړې دې.[4]
دَ محدثینو یوې لویې ډلې دَهغوی روایات نقل کړی دی سوا دَ ابن ماجه رحمه الله.[5]
**عن ابی داؤد: یعلی بن مسلم بصری، کان بمکة وهوغیریعلی بن مسلم المکی ذاك أخوحسن بن مسلم.**[6]
ابوداؤد رحمه الله فرمائی یعلی بن مسلم بصری دې. کوم چه به مکه کښې اوسیدلو اوهغه یعلی بن مسلم دمکی نه علاوه دې کوم چه دحسن بن مسلم رور دې.
**عمرو بن دینار:-** داعمروبن دینار قرشی اثرم رحمه الله دې.[7]
**سعیدبن جبیر:-** داسعیدبن جبیر اسدی کوفی رحمه الله دې.[8]
**ابن عباس:-** دا حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې.[9]
**ابی بن کعب:-** دوی ابی بن کعب رضی الله عنه دې.[10]
**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:-** حدیث باب سره مناسبت قوله: (فوجدا جداراً یریدان ینقض فاقامه) نه ماخوذ دې.[11]

# ۸-بَاب: الاجَارةِ إلی نصف النهَار

## د نمیې ورځ د پاره مزدور ساتل

**دَترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری رحمه الله دلته درې تراجم منعقد کړی دی. باب الاجارة إلی نصف

---

[1] تهذیب الکمال:۳۲/۴۰۰.
[2] الجرح والتعدیل:۹/ الترجمة: ۱۲۹۹.
[3] المعرفة والتاریخ: ۳/۲٤۰ بحواله تهذیب الکمال:۳۲/٤۰.
[4] الثقات: ۷/۶۵۳.
[5] تهذیب الکمال:۳۲/٤۰۰.
[6] تهذیب التهذیب: ٤/٤۵۱.
[7] کشف الباری:٤/۳۰۹.
[8] کشف الباری:۱/٤۳۵.
[9] کشف الباری:۱/٤۳۵.
[10] کشف الباری:۳/۳۳۷.
[11] [illegible] ۸۷/۱۲

النهار، باب الاجارة إلى صلاة العصر او باب الاجارة من العصر إلى الليل په دې دريوارو تراجم کښې دوه احتماله دی. ① امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه اجاره باجر معلوم إلى أجل معلوم جائزده که اجل قليل وی اوکه کثير.
② اويا امام بخاری رحمه الله دا ثابتول غواړی چه دَ بعض ورځې اجاره جائز ده. يعنی دَ ورځې يا شپې دَ بعضې حصې دَپاره که چرې اجير اوساتلې شی نو دا هم جائزده اوکه دَ گهنټې يا دوو گهنټو دَپاره ولې نه وی.([1])

[حدیث ۲۱۴۸] (۲) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « مَثَلُكُمْ وَمَثَلُ أَهْلِ الْكِتَابَيْنِ كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَأْجَرَ أُجَرَاءَ فَقَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ غُدْوَةَ إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ فَعَمِلَتِ الْيَهُودُ، ثُمَّ قَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ إِلَى صَلاَةِ الْعَصْرِ عَلَى قِيرَاطٍ فَعَمِلَتِ النَّصَارَى ثُمَّ، قَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنَ الْعَصْرِ إِلَى أَنْ تَغِيبَ الشَّمْسُ عَلَى قِيرَاطَيْنِ فَأَنْتُمْ هُمْ، فَغَضِبَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى، فَقَالُوا مَا لَنَا أَكْثَرَ عَمَلاً، وَأَقَلَّ عَطَاءً قَالَ هَلْ نَقَصْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ قَالُوا لاَ. قَالَ فَذَلِكَ فَضْلِي أُوتِيهِ مَنْ أَشَاءُ ». [ر: ۵۳۲]

**ترجمه**:- نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلی ستاسو اونورو اهل کتابو مثال داسې دې چه يوسړی ډيرمزدوران په کارلگولې وی اووائی چه زما کاربه په يوقيراط باندې دَ سحرنه دَنيمې ورځې پورې څوك اوکړی؟ په دې باندې يهوديانو (دَسحر نه تر نيمې ورځې پورې) کاراوکړو بيا هغه اووائی چه دَ نيمې ورځې نه ترمازيگره پورې به په يوقيراط څوك کار اوکړی؟ نوداکار نصاری اوکړو. اوبيا هغه اووئيل چه دَمازيگرنه ترنمر ډوبيدو پورې به زما کار په دوه قيراط څوك اوکړی؟ اوتاسو (ای امت محمديه) هم هغه خلق يئی په دې باندې يهوديانو او نصاری بداوکړل چه دا څه خبره ده چه مونږ خودې کارزيات کوواومزدوری دې مونږ ته کمه ملاويږی نوبيا هغه سړی (چاچه مزدوران ساتلی وو) وئيل ښه ده دا اووايئی ما ستاسو په حق کښې څه کمې کړی؟ ټول وئيل چه نه. (بلکه مونږ ته خو خپل حق پوره ملاؤ شوی دې) دغه سړی اووئيل چه بيا زما فضل (اومهربانی) ده چه زه چاله غواړم ورکوم.

## رجال الحديث

**سليمان بن حرب**:- دا سليمان بن حرب بن بجيل ازدی واشجی ابوايوب بصری رحمه الله دی.([3])
**حماد**:- داحماد بن زيد بن درهم رحمه الله دی.([4])

---

[1]) فتح الباری: ۵۶۳/۴.
[2]) سياتی تخريجه فی باب الاجارة إلى صلاة العصر.
[3]) کشف الباری: ۱۰۵/۲ تهذيب الکمال: ۱۱/۳۸۴ رقم: ۲۵۰۲.
[4]) کشف الباری: ۲۱۹/۲.

**ایوب**:- دا ایوب بن ابی تیمه کیسان سختیانی رحمه الله دی.[1]
**نافع**:- دا نافع مولی بن عمر رضی الله عنهما دی.[2]
**ابن عمر**:- دوی مشهور صحابی رسول ﷺ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دی.[3]

**دحدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت**:- دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: من یعمل لی من غدوة إلی نصف النهار علی قیراط** (زما دپاره به د سحر نه واخله ترنیمې ورځې پورې په یوقیراط څوک کار اوکړی) نه صفا ښکاره دی.[4] په دې حدیث باندې تفصیلی کلام دپاره **کتاب مواقیت الصلاة باب من ادرك ركعة من العصر** کښې اوګورئی. اګرچه په متن کښې لږ شان تفاوت دې مګر اصل او مقصود هم یو دی.

## ۹- باب: الإجارة إلی صلاة العصر

### دمازیګر د مونځ پورې مزدور لګول

**دترجمة الباب مقصد**:- په باب سابق کښې تیر شو.

[حدیث ۲۱۴۹] [5] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنَّمَا مَثَلُكُمْ وَالْيَهُودُ وَالنَّصَارَى كَرَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالاً فَقَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِي إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ فَعَمِلَتِ الْيَهُودُ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، ثُمَّ عَمِلَتِ النَّصَارَى عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، ثُمَّ أَنْتُمُ الَّذِينَ تَعْمَلُونَ مِنْ صَلاَةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغَارِبِ الشَّمْسِ عَلَى قِيرَاطَيْنِ قِيرَاطَيْنِ، فَغَضِبَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى وَقَالُوا نَحْنُ أَكْثَرُ عَمَلاً وَأَقَلُّ عَطَاءً، قَالَ هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ شَيْئًا قَالُوا لاَ. فَقَالَ فَذَلِكَ فَضْلِي أُوتِيهِ مَنْ أَشَاءُ». [ر: ۵۳۲]

**ترجمه**:- رسول الله ﷺ فرمائیلی ستاسو یهودیانو او نصاری مثال داسې دې چه یو سړی یو څو مزدوران په کار اولګول او وئی چه په یو یو قیراط باندې به دنیمې ورځې پورې څوک کار

---

[1] کشف الباری: ۲/۲۲۶.
[2] کشف الباری: ۴/۶۵۱.
[3] کشف الباری: ۱/۶۳۷.
[4] عمدة القاری: ۱۲/۸۸.
[5] أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الجمعة باب الطیب للجمعة رقم:۲۲۷۹ وأخرجه الامام الترمذی فی سننه کتاب الامثال عن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم رقم:۲۸۷۱ وابن حبان فی صحیحه فی کتاب التاریخ رقم:۶۶۳۹ والامام أحمدفی مسنده مسندالمکثر بن من الصحابة رضی الله تعالی عنه باب مسند عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما بن الخطاب رقم:۴۲۷۹، ۵۶۳۶، ۵۷۵۶.

اوکړي؟ نو یهودیانو په یوقیراط باندې دا مزدوری اوکړه. بیا نصاری په یوقیراط باندې کاراوکړو اوبیا تاسو خلقو د مازیګرنه تر ماښام پورې په دوو دوو دینارو کاراوکړو. په دې باندې یهودیان اونصاری غصه شو چه مونږ خوکار زیات اوکړو اومزدوری کمه مِلاؤشوه. په دې باندې هغه سړی اووئیل چه ما ستاسو یوه ذره برابر حق وهلې دې نوهغوی اووئیل چه نه. بیا هغه سړی اووئیل چه دا زما فضل دې چاله چه غواړم ورکوم.

## رجال الحدیث

**اسماعیل بن ابی اویس:**- دَ دوی نوم عبدالله بن عبدالله بن اویس بن ابی عام اصجی رحمه الله دې دَامام مالک رحمه الله خورئې دې. [1]

**مالک:**- دا امام مالک بن انس رحمه الله دې. [2]

**عبدالله بن دینار:**- دا عبدالله بن دینار مولی ابن عمر رضی الله عنهما دې. [3] بل دَ عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ذکر هم په سابقه حدیث کښې تیرشوې دې.

**دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:**-دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت واضحه دې.

**یواشکال اودَهغې جواب:**- بعض حضراتو وئیلی چه په دې حدیث سره ترجمة الباب نه ثابتیږی ځکه چه په دې کښې خو صرف دا رغلی دی چه یوسړی څه کسان دَ نیمې ورځې پورې په یوقیراط باندې اجیرساتل غوښتل نو یهودیانو اووئیل چه مونږ به داکار اوکړو اوددې نه پس دَ نصاری نمبر راغلو او هغوی هم په یویوقیراط باندې اوساتلې شو. په دې کښې دا نشته چه نصاری ترکومې پورې اجیر اوساتلې شو نوبیا مصنف رحمه الله الاجارة إلی الصلاة العصر څنګه ثابت کړو.

**جواب:**- دَدې اشکال جواب دادې چه هم په دې روایت کښې دی انتم الذین تعملون من صلوة العصر إلی مغارب الشمس دلته چه دَ مازیګردَمانځه نه ترمغرب یعنی ماښام پورې وخت دَدې امت دَپاره ذکرکړې شو دَدې نه دا معلومه شوه چه نصاری کوم کارکړې وو هغه دَمازیګرد مانځه دَوخت پورې وو. [4]

## ۱۰ - باب: إثم من منع أجر الاجیر

### مزدور ته مزدوری نه ورکونکی ګناه

**دَترجمة الباب مقصد:**- دَترتیب په لحاظ دلته امام بخاری رحمه الله ته الاجارة من العصر إلی اللیل قایم کول وو خوهغه دریمه ترجمه مؤخرکړه اودَ دویمې ترجمې نه په ظاهره ئی دا یوه بې جوړ ترجمه قایم کړه. علامه ابن بطال رحمه الله هم دَدې عدم مناسبت دَ وجې نه دې ته الاجارة من العصر إلی اللیل

---

[1] کشف الباری:۲/۱۱۳.

[2] کشف الباری:۱/۱۲۹، ۲/۸۰.

[3] کشف الباری:۱/۶۵۸، ۳/۱۲۵.

[4] فتح الباری:۴/۵۶۴

نه پس ذکر کړه. (۱) علامه عینی رحمه الله دده تحسین فرمائیلي دي.

وقال العینی رحمه الله تعالی: قد أخر ابن بطال رحمه الله تعالی هذا الباب عن الباب الذی بعده وهو الاوجه فان فیه رعایة المناسبة (۲)

**دحضرت شیخ الحدیث رحمه الله توجیه:-** لیکن حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی امام بخاری رحمه الله دا ترجمه په مینځ کښې راوړلو سره د یوې نکتې طرف ته اشاره کول غواړی چه کله یواجیرَ یوکار دپاره مقرر کړې شی نوداضروری نه دی چه دوخت اوموده تراخیرې نه پس به هغه ته د اجرت غوښتلوحق حاصلیږی. بلکه دمودې دپوره کیدو نه وړاندې هم که اجیر خپله مزدوری غواړی نومطالبه کولې شی اوکله چه هغه مطالبه اوکړی نوهغه ته مزدوی ورکول پکاردی اوکه څوک ئی نه ورکوی نوهغه به ګناهګارشی. (۳)

بل د امام ابن ماجه رحمه الله د روایت نه هم ددې مضمون تائید کیږی چه **أعطوا الاجیر أجره قبل ان یجف عرقه** (۴)

[حدیث ۲۱۵۰] (۵) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «قَالَ اللَّهُ تَعَالَى ثَلاَثَةٌ أَنَا خَصْمُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ أَعْطَى بِي ثُمَّ غَدَرَ، وَرَجُلٌ بَاعَ حُرًّا فَأَكَلَ ثَمَنَهُ، وَرَجُلٌ اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا فَاسْتَوْفَى مِنْهُ وَلَمْ يُعْطِهِ أَجْرَهُ». [ر: ۲۱۱۴]

**ترجمه:-** نبی کریم ارشاد فرمائیلې چه الله تعالی ارشاد فرمائی چه ددرې قسم خلقو به زه په قیامت کښې فریق جوړیږم هغه کس چه زما په نوم ئی وعده اوکړه بیائی وعده خلافی اوکړه اوهغه سړې چه یوآزاد سړې ئی خرڅ کړې وی اودهغه قیمت ئی خوړلې وی اوهغه کس چه مزدوی ئی کړې وی اوبیائی کاردهغه نه پوره اخستې وی لیکن دهغه مزدری ئی نه وی ورکړې.

## رجال الحدیث

**یوسف بن محمد:-** یوسف بن محمدالعصفری الخراسانی نزیل البصرة ددوی کنیت ابویعقوب دې. (۶)

---

(۱) شرح صحیح البخاری لابن بطال: ۳۹۸/۶.

(۲) عمدة القاری:۸۹/۱۲.

(۳) الابواب والتراجم ص:۱۶۷.

(۴) أخرجه ابن ماجه فی کتاب الرهن باب أجرالاجراء رقم:۲٤٤۳ والطحاوی فی مشکل الاثار رقم: ۲۵۵٤ ولبیهقی فی سننه الکبری فی کتاب الاجارة باب لاتجوز الاجارة حتی تکون معلومه الخ رقم:۱۱٤۳٤.

(۵) أخرجه الامام بخاری رحمه الله وأیضا فی کتاب البیوع باب اثم من باع حراً رقم۲۲۲۷ وابن ماجه فی کتاب الاحکام:۲٤۳۳ واحمدفی مسنده:۸۳۳۸ انظرجامع الاصول الفصل الثانی فی احادیث مشترکة بین آفات النفس نوع أول رقم:۹۳٦٤ وتحفة الاشراف رقم:۱۲۹۵۲.

(۶) تهذیب الکمال:۳۲/٤۵۷.

**اساتذه کرام:-** سفیان ثوری، مروان بن معاویه الفزاری او یحییٰ بن سلیم الطائفی وغیره رحمهم الله نه دوی روایات نقل کړی دی.[1]

**تلامذه:-** امام بخاری، حرب بن اسماعیل کرمانی او سعیدبن عبدالله وغیره رحمهم الله ددوی نه روایات نقل کوی.[2]

**یحییٰ بن سلیم:-** دایحییٰ بن سلیم الطائفی ابومحمدمکی رحمه الله دي. ددوی تذکره ابواب الوتر باب ماجاء فی الوتر کتاب البیوع باب اثم من باع حراً کښې تیره شوې ده.

**اسماعیل بن امیه:-** دا اسماعیل بن امیه بن عمرو بن سعیدبن العاص الاموی دي. ددوی تذکره کتاب الزکاة باب لاتؤخذ کرائم اموال الناس فی صدقة کښې تیره شوې ده.

**سعیدبن ابی سعید:-** داسعیدبن ابی سعید المقبری رحمه الله دي.[3]

**ابوهریرة:-** اود حضرت ابوهریره رضی الله عنه[4] تذکره هم تیره شوې ده.

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** دحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت په خپل آخری جز سره ښکاره ده. بل داحدیث مبارک کتاب البیوع باب اثم من باع حراً کښې تیرشوې دي.

## ۱۱-بَاب: الإجَارَة مِن العصر إلى الليل

### د مازیګرد وخت نه د شپې پورې مزدور ساتل

**دترجمة الباب مقصد:-** باب الاجارة إلی نصف النهار لاندې تیرشو.

[حدیث ۲۱۵۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى -رضی الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم- قَالَ «مَثَلُ الْمُسْلِمِينَ وَالْيَهُودِ وَالنَّصَارَى كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَأْجَرَ قَوْمًا يَعْمَلُونَ لَهُ عَمَلًا يَوْمًا إِلَى اللَّيْلِ عَلَى أَجْرٍ مَعْلُومٍ، فَعَمِلُوا لَهُ إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ فَقَالُوا لَا حَاجَةَ لَنَا إِلَى أَجْرِكَ الَّذِي شَرَطْتَ لَنَا، وَمَا عَمِلْنَا بَاطِلٌ، فَقَالَ لَهُمْ لَا تَفْعَلُوا أَكْمِلُوا بَقِيَّةَ عَمَلِكُمْ، وَخُذُوا أَجْرَكُمْ كَامِلًا، فَأَبَوْا وَتَرَكُوا، وَاسْتَأْجَرَ أَجِيرَيْنِ بَعْدَهُمْ فَقَالَ لَهُمَا أَكْمِلَا بَقِيَّةَ يَوْمِكُمَا هَذَا، وَلَكُمَا الَّذِي شَرَطْتُ لَهُمْ مِنَ الْأَجْرِ. فَعَمِلُوا حَتَّى إِذَا كَانَ حِينُ صَلَاةِ الْعَصْرِ قَالَا لَكَ مَا عَمِلْنَا بَاطِلٌ، وَلَكَ الْأَجْرُ الَّذِي جَعَلْتَ لَنَا فِيهِ. فَقَالَ لَهُمَا أَكْمِلَا بَقِيَّةَ عَمَلِكُمَا، فَإِنَّ مَا بَقِيَ مِنَ النَّهَارِ شَيْءٌ يَسِيرٌ. فَأَبَيَا، وَاسْتَأْجَرَ قَوْمًا أَنْ يَعْمَلُوا لَهُ بَقِيَّةَ يَوْمِهِمْ، فَعَمِلُوا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمْ حَتَّى غَابَتِ الشَّمْسُ، وَاسْتَكْمَلُوا أَجْرَ الْفَرِيقَيْنِ كِلَيْهِمَا، فَذَلِكَ

---

[1] المصدر السابق.

[2] المصدر السابق.

[3] کشف الباری: ۲۳۶/۲.

[4] کشف الباری: ۶۵۹/۱.

مَثَلُهُمْ وَمَثَلُ مَا قَبِلُوا مِنْ هَذَا النُّورِ». [ر: ۵۳۲][1]

**ترجمه:**- نبی کریم ﷺ فرمائی دَمسلمانانو اویهودیانو مثال داسې دې لکه چه يوسړی يوڅو کسان سړی په مزدورئی کړې وی چه ټول به دَ هغه کار دَسحرنه واخله ترشپې پورې په متعين اجرت باندې کوئی. نوڅه خلقو داکار نیمې ورځ پورې اوکړو بیائی اووئیل چه مونږ ته ستاد مزدورئی ضرورت نشته کومه چه تامونږ سره مقرر کړې ده بلکه چه کوم کارمونږ کړې دې هغه هم غلط وو په دې باندې دې سړی اووئیل چه داسې مه کوئی خپل باقی کار پوره کړئی اوخپله پوره مزدوری واخلئی خوهغوی انکاراوکړو پرېښودو لاړل. دې نه پس ئی دوه مزدوران نورو اونيول چه دا ورځ پوره کړئی نوزه به تاسو ته هم هغه مزدوری درکړم کومه چه مې هغوی ته ورکوله. هغوی کارشروع کړو چه دَمازیګرد مونځ وخت شو نوهغوی هم دغه اووئیل چه مونږ تراوسه پورې ستاکوم کاراوکړو هغه بالکل بیکاره وو اومزدوری دې هم ځان سره اوساته کومه چه تامونږ سره کړې وه. دې سړی هغوی ته اووئیل چه خپل ټول کارپوره کړئی ورځ هم اوس لږه باقی پاتې ده. خو هغوی اونه منل. نوهغه سړی یوبل قوم مزدور اوساتلو چه دا دَورځې کومه حصه باقی پاتې ده په دې کښې داکاراوکړئی. هغه خلقو دَ نمر ډوبیدوپورې هغه باقی کاراوکړو اودَ دوارو ډلو پوره مزدری ئی حاصله کړه. نوبس هم دغه دَدې اهل کتابواودَدې (مسلمانانو) مثال دې چاچه دادَ هدايت نور قبول کړو.

## رجال الحدیث

**محمدبن العلاء:**- دامحمدبن ععلاء بن كريب همدانی کوفی رحمه الله دې.[2]

**ابواسامة:**-دا ابواسامه حمادبن اسامه رحمه الله دې.[3]

**برید:**- دا برید بن عبدالله بن ابی بردة رحمه الله دې.[4]

**ابوبردة:**- دوی ابوبردة عامريا حارث بن ابی موسیٰ اشعری رضی الله عنه دې.[5]

**ابوموسیٰ اشعری:**- دامعروف صحابی رسول ﷺ حضرت عبدالله بن قیس ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه دې.[6]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:**- دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: استاجرقومًا أن يعملوا.....حتى غابت الشمس** سره واضح دې.

---

[1]) مرتخرجيه فی باب الاجارة إلى صلاة العصر.

[2]) کشف الباری:۳/۴۱۳.

[3]) کشف الباری:۳/۴۱٤.

[4]) کشف الباری:۳/۶۹۰،۳/۴۱۷.

[5]) کشف الباری:۱/۶۹۰.

[6]) کشف الباری:۱/۶۹۰.

**تشریح حدیث:-** داحدیث مبارك هم په دې سندسره اودَ څه متن تفاوت سره کتاب مواقیت الصلوة باب من ادرك رکعة من العصرقبل الغروب کښې تیرشوې دې. دَ حضرت عمر ﷺ والاروایت کښې دې. **قوله (نحن کنا اکثرعملا)** قاضی ابوزید ﷫ کتاب الاسرارکښې دَدې نه استدلال کړې دې چه دَمازیګر وخت دَ مثلین نه پس شروع کیږی. ځکه چه یهودیانو اونصاری داوئیل چه مونږ خوکارزیات اوکړو او مزدوری مونږ ته کمه ملاؤشوه نودَهغوی عمل به هغه وخت زیات وی چه کله دَهغوی موده زیاته وی اودَهغوی موده به هله زیاته وی چه کله دَ نصف النهارنه واخله مثلین پورې دَماسپښین وخت اوګرځولې شی اوبیا دَمثلین نه دَ مازیګرپورې وخت اوګرځولې شی. خو دا استدلال دَ یوڅو وجوهاتو سره ضعیف دې:

① داحدیث رسول الله ﷺ دَ بیان مواقیت دَپاره نه دې ارشاد فرمائیلې لهذا دَمواقیت په سلسله کښې دَدې نه استدلال بې موقع دې.

② دَتحقیق نه داخبره ثابته ده که دَمازیګروخت دَمثل اول نه هم وی نوبیا هم هغه وخت چه دَ زوال دَنمرنه دَ مثل اول پورې دې زیات دې. دَهغه وخت نه چه دَدې نه پس دَ نمر دَ ډوبیدو پورې وخت دې. ③ داهم کیدې شی چه نحن کنا اکثرعملاً دَ یهودیانومقوله وی دَ نصاری نه وی. ④ داهم کیدې شی چه دَدواړو مقوله وی اودَدواړو وخت یوځائی کولوسره بیا دَ مازیګر نه ترنمر ډوبیدو پورې دَوخت نه زیات خودلې شی. بهرحال دا روایت دَمثلین نه پس دَ مازیګر وخت شروع کیدو باندې دلالت نه کوی. (۱)

**یواشکال اودَهغې جواب:-** په کتاب مواقیت الصلوة کښې هم دغه روایت دَ عبدالله بن عمر ﷠ نه مروی دې اودَ هغې په شروع کښې دی: انما بقاؤکم فیما سلف قبلکم من الامم نو په دې کښې دَ ظاهرحدیث نه دا په پوهه کښې راځی چه دَدې امت بقاء په امم سابقه په زمانه کښې شوې ده ځکه چه دَ فی ظرفیت دَپاره استعمالیږی. دَدې په جواب کښې علامه عینی ﷫ اوعلامه کرمانی ﷫ فرمائی: **ظاهره لیس بمراد............وانما معناه: أن نسبتکم إلیهم کنسبة وقت العصر إلی تمام النهار.** دَجواب حاصل داشو چه دَدې ظاهری معنی قطعًا مرادنه ده بلکه فی معنی إلی ده اومضاف یعنی نسبة محذوف دې نواوس به عبارت داسې شي: إنما بقاؤکم بالنسبة إلی ماسلف الخ یعنی اې امت محمدیه! ستاسو دَ مدت بقاء نسبت دَ امم ماضیه په اعتبارسره هم هغه دې کوم نسبت چه دَمازیګرنه ترمانبام دَ وخت پورې پوره ورځ سره دې. (۲)

**یوه بله شبه اودَهغې ازاله:-** دَدې احادیث مبارکه نه په ظاهره دَمسلمانانودَ بقاء دَ یهودیانو اونصاری نه کمه معلومیږی حالانکه حقیقت دادی چه دَ یهودیانو موده دَ زیات نه زیات دوه زره کاله ده په دې باندې خوبیا هم اشکال نشته ولې دَ انصارو موده خو دَزیات نه زیات شپږ

---

[۱] عمدة القاری:۷۶/۵ فتح الباری:۵۰/۳.

[۲] عمدة القاری ۷۵/۵ فتح الباری:۴۹/۳.

سوه کاله ده اودا امت محمدیه علی صاحبها الصلوة والسلام تر اوسه پورې څوارلس صدئې تیرې شوی دی اونه ده معلومه چه دقیامته پورې اوس څومره زمانه باقې پاتې ده. او بیا د یهودو اونصارئ د طرف نه دا اعتراض هم اوکړې شو نحن کنا اکثر عملاً واقل عطاءًا مونږ زیات کاراوکړو او ورکړه هم مونږ ته کمه اوشوه. نوامت مسلمه علی صاحبها الصلوة والسلام موده کمیدل اود یهودو اونصارئ زیاتوالې دعمل ګیله د اشکال سبب دې.

ددې په جواب کښې شارحین حضرات فرمائی چه دلته د امتومقابله نه ده بلکه د آحادامت تقابل دنورو امتونو کسانوسره دې. څکه چه ددې امت اوسط عمر ۶۰ نه ۷۰ کالو په مینځ کښې دې. لکه چه په حدیث شریف کښې دي: عن أبی هریرة رضی الله تعالی عنه قال: قال رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم عمر أمتی من ستین سنة إلی سبعین. [1] حضورپاك ارشاد فرمائیلې دې چه زمادامت اوسط عمر د شپیتونه تر اویاؤ کالو پورې دې. اود تیرو شوو امتونو د کسانو عمرونه ډیرزیات اوږده وو.

دې نه علاوه په یوبل حدیث کښې د امت دکسانو تقابل د امت د کسانو سره خودلې شوې دې: ما أعمارکم فی أعمار من مضی إلا کما بقی من النهار فیما مضی منه. [2] یعنی حضورپاك ﷺ اوفرمائیل چه نه دی ستاسو عمرونه د تیروشووامتونود عمرونو په مقابله کښې مګر لکه د تیرې شوې ورځ په مقابله کښې د ورځې باقی حصه.

## ۱۲- باب: من استأجر أجیرًا فترك أجره، فعمل فیه المستأجر فزاد أو من عمل فی مال غیره فاستفضل

چایومزدور اوکړو اوهغه مزدور خپله مزدوری پریخوده لاړو. بیا(د مزدور په پریخودې شوې مزدورئ کښې) مزدوری اخستونکې تصرف اوکړو او په هغې کښې اضافه اوشوه. اوهغه سړې چه دبل په مال کښې تصرف اوکړو په هغې کښې هغه ته نفع اوشوه.

**دترجمة الباب مقصد:**- امام بخاری رحمه الله د دې ترجمة الباب په ذریعه یوه اختلافی مسئله بیان کول غواړی که یوسړې د بل سړی په مال کښې تصرف اوکړی اوپه دې سره نفع حاصله شی نوآیا هغه نفع به د رب المال وی که د عامل. دا مسئله اجارې سره خاص نه ده او امام بخاری رحمه الله د استئجار لفظ څکه اوفرمائیلو چه په روایت کښې د دې تصریح ده. [3]

**د فقهاء کرامو اختلاف:**- په مذکوره مسئله کښې فقهاء کرامو کلام کړې دې. امام مالك رحمه الله امام ابویوسف رحمه الله سفیان ثوری لیث اوزاعی ربیعه اوعطاء رحمهم الله مسلك دادې چه نفع به دعامل وی اوراس المال به مالك ته حواله کوی خودې عامل دپاره مستحب دی چه هغه نفع صدقه کړی. دامام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام زفر رحمه الله مسلك دادې چه نفع

---

[1] جامع الترمذی:۲/۵۹.

[2] أخرجه أحمد رحمه الله فی مسنده:۲/۱۱۶.

[3] الابواب والتراجم ص:۱۶۷.

دعامل دپاره حلال نه ده لهذا هغه دې راس المال مالك ته حواله کړی او نفع دې وجوبا صدقه کړی. دامام احمد رحمه الله او اسحاق رحمه الله رائې داده چه نفع به د رب المال وی اوعامل چه د بل په مال کښې تصرف کړې دې هغه به ددې ضامن جوړیږی. امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دتصرف دوه صورتونه دی یوخوداچه هم دغه مال معین نه کوم مال چه د بل دې هغه سامان اخلی په دې صورت کښې به مال اونفع دواړه د رب المال وی اود تصرف دویم شکل دادې چه هسې مطلقًا یوه معامله اوشوه اودې نه پس چه کله د قیمت ورکولووخت راغلو نو اوچت ئې کړو اود بل پیسې ئې ورکړې. په دې صورت کښې به نفع دعامل وی اود رب المال په مال کښې دتصرف کولود وجې نه به عامل ضامن وی.(۱)

امام بخاری رحمه الله د ظاهری روایت باب نه دامام احمد رحمه الله دمسلك تائیدکوی. په دې باندې لږشان اشکال داکیږی چه امام احمد رحمه الله عامل ضامن هم ګرځولې وو او په روایت کښې دهغه څه تذکره نشته اویا خوبه داوئیلی شی چه حضرت امام بخاری رحمه الله د امام شافعی رحمه الله د مسلك د دړومبی صورت تائیدکوی.

[حدیث ۲۱۵۲] (۲) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ -رضی الله عنهما- قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « انْطَلَقَ ثَلاَثَةُ رَهْطٍ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حَتَّى أَوَوُا الْمَبِيتَ إِلَى غَارٍ فَدَخَلُوهُ، فَانْحَدَرَتْ صَخْرَةٌ مِنَ الْجَبَلِ فَسَدَّتْ عَلَيْهِمُ الْغَارَ فَقَالُوا إِنَّهُ لاَ يُنْجِيكُمْ مِنْ هَذِهِ الصَّخْرَةِ إِلاَّ أَنْ تَدْعُوا اللَّهَ بِصَالِحِ أَعْمَالِكُمْ. فَقَالَ رَجُلٌ مِنْهُمُ اللَّهُمَّ كَانَ لِي أَبَوَانِ شَيْخَانِ كَبِيرَانِ، وَكُنْتُ لاَ أَغْبِقُ قَبْلَهُمَا أَهْلاً وَلاَ مَالاً، فَنَأَى بِي فِي طَلَبِ شَيْءٍ يَوْمًا، فَلَمْ أُرِحْ عَلَيْهِمَا حَتَّى نَامَا، فَحَلَبْتُ لَهُمَا غَبُوقَهُمَا فَوَجَدْتُهُمَا نَائِمَيْنِ، وَكَرِهْتُ أَنْ أَغْبِقَ قَبْلَهُمَا أَهْلاً أَوْ مَالاً، فَلَبِثْتُ وَالْقَدَحُ عَلَى يَدَيَّ أَنْتَظِرُ اسْتِيقَاظَهُمَا حَتَّى بَرَقَ الْفَجْرُ، فَاسْتَيْقَظَا فَشَرِبَا غَبُوقَهُمَا، اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتُ فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَفَرِّجْ عَنَّا مَا نَحْنُ فِيهِ مِنْ هَذِهِ الصَّخْرَةِ، فَانْفَرَجَتْ شَيْئًا لاَ يَسْتَطِيعُونَ الْخُرُوجَ ». قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « وَقَالَ الآخَرُ اللَّهُمَّ كَانَتْ لِي بِنْتُ عَمٍّ كَانَتْ أَحَبَّ النَّاسِ إِلَيَّ، فَأَرَدْتُهَا عَنْ نَفْسِهَا، فَامْتَنَعَتْ مِنِّي حَتَّى أَلَمَّتْ بِهَا سَنَةٌ مِنَ السِّنِينَ، فَجَاءَتْنِي فَأَعْطَيْتُهَا عِشْرِينَ وَمِائَةَ دِينَارٍ عَلَى أَنْ تُخَلِّيَ بَيْنِي وَبَيْنَ نَفْسِهَا، فَفَعَلَتْ حَتَّى إِذَا قَدَرْتُ عَلَيْهَا قَالَتْ لاَ أُحِلُّ لَكَ أَنْ تَفُضَّ الْخَاتَمَ إِلاَّ بِحَقِّهِ. فَتَحَرَّجْتُ مِنَ الْوُقُوعِ عَلَيْهَا،

---

(۱) شرح صحیح البخاری لابن بطال رحمه الله ۶/۲۹۶ عمدة القاری: ۱۲/۱۳۰.

(۲) وأخرجه البخاری أیضًا فی کتاب البوع باب إذا اشتری شیئًا لغیره بغیر إذنه فرضی رقم: ۲۲۱۵ وأخرجه أیضًا فی کتاب الزارعة والحرث باب إذا ذرع بمال قوم بغیرإذنهم رقم: ۲۳۳۳ وإخرجه مسلم فی کتاب التوبة باب قصة اصحاب الغار الثلاثة الخ رقم: ۶۸۸۴، ۶۸۸۵، ۶۸۸۶ وأبوداؤد فی البیوع باب فی الرجل یتجرفی مال الرجل بغیرإذنه رقم: ۳۳۸۷ وانظر جامع الوصول: ۱۰/۳۱۵ رقم: ۸۷۲۲.

فَانْصَرَفْتُ عَنْهَا وَهِيَ أَحَبُّ النَّاسِ إِلَيَّ وَتَرَكْتُ الذَّهَبَ الَّذِي أَعْطَيْتُهَا، اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتُ فَعَلْتُ ذٰلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ عَنَّا مَا نَحْنُ فِيهِ. فَانْفَرَجَتِ الصَّخْرَةُ، غَيْرَ أَنَّهُمْ لَا يَسْتَطِيعُونَ الْخُرُوجَ مِنْهَا. قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَقَالَ الثَّالِثُ اللَّهُمَّ إِنِّي اسْتَأْجَرْتُ أُجَرَاءَ فَأَعْطَيْتُهُمْ أَجْرَهُمْ، غَيْرَ رَجُلٍ وَاحِدٍ تَرَكَ الَّذِي لَهُ وَذَهَبَ فَثَمَّرْتُ أَجْرَهُ حَتَّى كَثُرَتْ مِنْهُ الْأَمْوَالُ، فَجَاءَنِي بَعْدَ حِينٍ فَقَالَ يَا عَبْدَ اللهِ أَدِّ إِلَيَّ أَجْرِي. فَقُلْتُ لَهُ كُلُّ مَا تَرَى مِنْ أَجْرِكَ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ وَالرَّقِيقِ. فَقَالَ يَا عَبْدَ اللهِ لَا تَسْتَهْزِئْ بِي. فَقُلْتُ إِنِّي لَا أَسْتَهْزِئُ بِكَ. فَأَخَذَهُ كُلَّهُ فَاسْتَاقَهُ فَلَمْ يَتْرُكْ مِنْهُ شَيْئًا، اللَّهُمَّ فَإِنْ كُنْتُ فَعَلْتُ ذٰلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ عَنَّا مَا نَحْنُ فِيهِ. فَانْفَرَجَتِ الصَّخْرَةُ فَخَرَجُوا يَمْشُونَ». [ر: ٢١٠٢]

**ترجمه**:- حضرت عبدالله بن عمر ﷠ فرمائي چه ما دَ رسول الله ﷺ نه واؤريده حضورپاك اوفرمائيل دَ پخواني امت درې كسان چرته روان وو. دَ شپې تيرولودَپاره هغوى په يوغاركښې پناه واخستله او په هغې كښې ورداخل شو. په دې كښې دَغرنه يوكانړې راګر ګرې شو اودَ غار خله ئې بنده كړه. ټولو اووئيل چه اوس دَدې كانړي نه ځان خلاصول ممكن نه دى مګرچه دا ټول دَ خپل ښه اونيك عمل په واسطه سره دَالله تعالى نه دعااوكړي. په دوى كښې يوسړى خپله دعاشروع كړه. اې الله تعالى زمامورپلارډيربوډاګان وو اوما به دَهغوى نه مخكښې په چاباندې پئى نه څكل. نه په خپل بال بچ او نه په مملوك (غلام وغيره). يوه ورځ مادَ څه څيز په لټون كښې ناوخته كړو اوچه كله زه كورته راؤرسيدم نو هغوى دواړه اوده شوى وو. ماته داخبره هيڅ كله ښه نه لګيده چه اول په خپل بال بچ اويا په مملوك وغيره باندې پئى اوڅكوم په دې وجه زه هلته ولاړ ووم دَ پئيوپيالئى زما په لاس كښې وه اومادَ هغوى دَ راپاسيدو انتظاركولو تردې چه سحرشو. زما مورپلار راپاسيده او بياهغوى خپل دَماښام پئى اوڅكل. اې الله كه ما داكار ستادَ رضا حاصلولودَپاره كړې وى نودا دكانړي مصيبت زمونږ نه اخواكړه (دَدې دعاپه نتيجه كښې) هغه كانړې دَ خپل ځائى نه لږ شان اوخوزيدو خو دومره لاړ په كښې جوړه نه شوه چې وتل پرې ممكن شوې وې.

نبى كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه بيا دويم دعا شروع كړه. اې الله زمادَتره يوه لور وه زمادَيره زياته خوښه وه. ما دَخپل نفس دپاره هغه تياروَل غوښتل خوهغې ماته انكاركولو. هم په هغه زمانه كښې بيادَهغې څه سخت ضرورت پيښ شو اوهغه ماله راغله. ما هغې ته يوسل اوشل دينار په دې شرط باندې وركړل چه هغه په خلوت كښې ماسره ملاؤ شى. نوهغې هم داسې اوكړه. اوس چه كله ما په هغې باندې قابوبياموندِه هغې وئيل چه ستا دَ پاره داحلال نه دى چه ته دا مهر بغيردَ حق نه مات كړې (دَې اوريدو سره) زه دَ خپلې خرابې ارادې نه منع شوم اودَهغه ځائى نه لاړم. حالانكه هغه زمادَ ټولونه زيات خوښه وه او ماخپل وركړې سره زر هم واپس وانخستل. اې الله كه دا كارما صرف ستا دَ رضادَ حاصلولودَپاره كړې وى نو ته زمونږ دا مصيبت لرې كړه. كانړې لږ شان نور هم اوخوزيدو ليكن هغوى اوس هم دَدې نه بهر نه شوراوتلې. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل بيا دريم خپله دعا شروع كړه. اې الله ما يوڅو مزدوران

کړې وو بیامې ټولوته دهغوی مزدوری ورکړه. یومزدور داسې وو چه خپله مزدوری ئې پریخوده بیا څه موده پس هم هغه مزدور ماله راغلو وئې وئیل اې دالله تعالی بنده ماته خپله مزدوری راکړه ماورته اووئیل چه دا ته څه وینې دا اوښان غواګانې چیلئې او غلامان دا ټول هم هغه ستا مزدری ده. هغه وئیل اې دالله تعالی بنده ماپورې ټوقې مه کوه ما اووئیل چه زه ټوقې نه کوم. نوبیا دغه سړی هرڅه واخستل اوخپل خان سره ئې بوتلل. په هغې کښې ئې یوڅیز هم باقی پرینخوده. اې الله که چرې ما دا هرڅه ستاد رضا حاصلولودپاره کړې وی نوزمونږ دامصیبت لرې کړه. هغه کانړې لرې شو اوهغه ټول بهر راووتل.

## رجال الحدیث

**ابوالیمان:** - داابوالیمان حکم بن نافع رحمه الله دې.[1]

**شعیب:** -دا شعیب بن ابی حمزه رحمه الله دې.[2]

**زهری:** - دا محمدبن مسلم بن شهاب الزهری رحمه الله دې.[3]

**سالم بن عبدالله:** -داحضرت سالم بن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې.[4]

**عبدالله بن عمر** -اودحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما تذکره هم تیره شوې ده.[5]

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:** - دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت د دریم سړی دعائیه الفاظو په ذریعه واضح دې. **قوله: أنی استاجرت فاعطیتهم أجرهم الخ.**[6]

**تشریح:** - داحدیث کتاب البیوع باب إذا اشتری شیئا لغیره بغیر إذنه فرضی کښې تیرشوې دې او وړاندې کتاب احادیث الانبیاء باب حدیث الغار کښې به هم ان شاء الله راځي.

**دامام مهلب رحمه الله په امام بخاری رحمه الله باندې اشکال:** - امام مهلب رحمه الله فرمائی امام بخاری رحمه الله چه دکوم مقصدد پاره باب قایم کړې دې مذکوره حدیث د دې دپاره مستدل نه شی جوړیدې. خکه چه په دې کښې دی چه یوسړی د خپل مزدور په مزدورئی سره تجارت اوکړو او په هغې کښې نفع حاصل کړه اوبیاچه کله هغه راغلو نو هغه ته ئی ټوله نفع د احسان او تبرع په توګه ورکړه خو په هغه باندې خو صرف د ده مزدوری ورکول لازم وو.[7]

**فوائدحدیث:** - علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دمذکوره حدیث نه ډیرې فائدې حاصلې شوې.

① په دې کښې د وړاندینو امتونو د اعمالو تذکره ده درسول الله ﷺ امت ته به هم د دې نه

---

[1]) کشف الباری: ۴۸۹/۱.

[2]) کشف الباری: ۴۸۰/۱.

[3]) کشف الباری: ۳۲۶/۱.

[4]) کشف الباری: ۱۲۸/۲.

[5]) کشف الباری: ۶۳۷/۱.

[6]) عمدة القاری: ۱۲۹/۱۲.

[7]) إرشاد الساری: ۳۶/۵.

ترغیب اوشی ② دَفضولی بیعِ دَ جواز اثبات دی ③ اودَ کرامات اولیاء اثبات دی ④ اودَ والدینو فضیلت اوهغوی سره دَ تعظیم اوشفقت کولو بیان دی ⑤ په هرحال کښې دَالله تعالی نه دَ دعاکولوداستحباب بیان دی ⑥ داهم چه دَ نیکواعمالو په ذریعه دَ الله تعالی په دربارکښې توسل کولې شی ⑦ په دې کښې په محرمات باندې دَ قدرت حاصلیدلوباوجود دَهغې نه بچ کیدو او پاك پاتې کیدو دَ فضیلت بیان دی ⑧ دَ امانت دَ ادائیګئی فضیلت دی ⑨ دَ توبې دَ قبولیت ذکردی ⑩ اودَ هغه سړی دَ الله تعالی په نیز دَ مقبول کیدو ذکردی چه دَ بدئی اراده کولوسره هغه دَ الله تعالی دَ رضامندئی دپاره ترك کړی ⑩ اودَالله تعالی نه دَ وعدې پوره کولودَ سوال بیان دی. څکه چه الله تعالی ارشاد فرمائیلی دی ﴿ وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ﴾ (الطلاق: ۲) اونور فرمائی چه ﴿ وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا ﴾ (الطلاق: ۴)[1]

---

[1] ) عمدة القاري: ۱۲/۳۶ - ۳۷. (اضافه ازمرتب)

دَحدیث باب مذکوره په ضمن کښې بعض حضراتو په دوو نورو اهمو مسئلوبحث فرمائیلې دی.

① دَ میراث مسئله ② دَ پراویډنټ فنډ مسئله.

① **دَميراث مسئله:-** یوسړی مړشو جائیداو دوکان وغیره ئی په ترکه کښې پریخودل. په دوی کښې روستو یووارث تصرف کولو اونفع ئی ګټله. اوس ددغه نفع څه حکم دی؟ صرف دَ دغه تصرف کونکی وارث ده یابه ټول وارثان شریك وی. عام فقهاء کوم کښې چه احناف هم شامل دی خودا فرمائی چه دې وارث په متروکه جائیدادکښې دَ نورو وارثان دَ اجازت نه بغیرکړی دی لهذا داکسب خبیث دی او واجب التصدق دی. دَ بعض فقهاؤ قول دی چه کومه هم نفع شوې هغه داصل مالك ده. لهذا وارث عامل چه څومره هم نفع کړی ده په هغې کښې به ټول وارثان شریك وی. دَامام بخاری رحمه الله رجحان هم دې طرف ته معلومیږی اوهغه داسې چه کله مزدور خپله مزدوری پریخوده لاړو اوبیا په هغې کښې تصرف کولوسره نفع اوګټله نودهغې دَ زیاتولونه پس ئی څان سره هیڅ هم پرینخوده بلکه هرڅه ئی هغه اجیر ته کوم چه ددې اصل مالك وو ورکړل.

دَ جمهورو قول دادې چه هغه څه هم اوکړل دَ احسان او تبرع په توګه ئی اوکړه. په دې وجه هغه دَ اخلاص نه ډك نیك کارکښې شمیرکړې شو که چرې من حیث الفریضه هغه هرڅه دَغه اجیرته واپس کول نودنیکئی دعمل والا شان به دَ هغه نه وو لیکن چه هغه داهرڅه دَخپل ژوند دَټولونه نیك عمل اوګڼرلو او دَ هغې په ذریعه دَ الله تعالی نه توسل اختیاره وی نومعلومه شوه چه هغه هرڅه هم ورکړل دَ احسان اوتبرع په توګه ئی ورکړل نه چه من حیث الوجوب ئی ورکړل

**دمتاخرین احنافو قول:-** علامه رافعی حنفی رحمه الله فرمائی چونکه خبث دَ صاحب مال دَ حق دَ وجې نه راغلې دې لهذا که هغه دَ صدقه کولوپه ځائې صاحب مال ته ورکړی نوبیابه هم صحیح شی. چنانچه دَ وراثت والا په مسئله کښې که چرته یووارث په مال متروکه کښې تصرف اوکړو اوحق دَټولو وارثانوو نو په دې کښې اصل حکم خوهم دغه دې چه کومه نفع شوې هغه دې صدقه کړی خوکه صدقه اونه کړی بلکه وارثانوته ئی ورکړی نوبیابه هم دده ذمه ساقط شی بلکه دا زیاته مناسب ده دې دَ پاره چه دې نه ټول وارثان فائده اوچته کړی. (انعام الباری: ۶/۴۴۸)

② **دَ پراویډنټ فنډ مسئله:-** ددې حدیث مبارك نه استنباط کولوسره بعض حضراتو دَ پراویډنټ فنډ مسئله هم ذکر کړې ده. پراویډنټ فنډداوی چه په سرکاری ادارو اوبعض پرائیویټ ادارو کښې هم دا رواج دې چه دملازمینود تنخواه نه څه حصه هره میاشت کټ کولې شی اوهغه رقم په یوفنډ کښې جمع کولې شی کوم ته چه پراویډنټ فنډ وئیلې شی. بیا په دغه جمع شوې ... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه

.....بقيه حاشيه دتيرمخ] پيسوكښې بيا اداره هم خپلې څه پيسې لګولوسره اضافه کوي بيا دا رقم په يوګټه وركونكي كاركښې لګوي. او په عام توګه ئې دسودپه كاركښې لګوي. بيا دغه نفع هم په دې فنډكښې جمع كوي او كله چه د ملازم ملازمت ختم شي نو په دې فنډكښې چه څومره رقم جمع شوي وي هغه دا پنشن شوي ملازم ته يا دهغه وارثانوته وركوي. اوس تركومې پورې چه د اصل رقم تعلق دې نوهغه خود ملازم حق دې اودهغې په اخستلو كښې په اتفاق سره څه خرابي نشته. خو په دې رقم باندې چه حكومت كومه اضافه كړې ده په هغې باندې اشكال كيږي چه محكمې كوم رقم كټ كړو هغه په هغې باندې دين دې اوس كه محكمه دخپل طرف نه څه زياتې وركوي نوهغه په دين باندې زياتې دې او په دين باندې زياتې سود دې. بل داچه كله په يوسودي كاركښې لګوي او په دې باندې زياتې كيږي هغه هم سود دې. نود بعض فقهاؤ رائې هم دا ده چه څومره پيسې د تنخواه نه كټ شوي دي هم دومره اخستل جائزدي اود هغې نه زياتې اخستل جائزنه دي.

د اكثرو فقهاؤ كرامو رائې دا ده چه ملازم خپل اصل رقم هم اخستې شي اومحكمې چه د خپل طرف نه څه زياتې كړې دي هغه هم اخستې شي څكه چه محكمه كومه اضافه اوتبرع كوي هغه سره ددې چه په دغه اصل رقم باندې كوي كوم چه دوي دملازم د تنخوه نه وضع كړې وو خودا زياتوالي او اضافه د يوطرف نه هم مشروط فی العقد كړې شوې نه وو او سود خو په هغه صورت كښې جوړيږي چه كله په عقددين كښې د جانبين د طرف نه زياتوالې مشروط كړې شي او په مذكوره مسئله كښې په دين كښې زياتې مشروط نه دې بلكه دمحكمې د طرف نه يوطرفه تبرع ده اوداخو هم داسې ده لكه چه څوك خپل دائن ته ددين نه څه زيات وركړي لكه چه د حضورپاك نه حسن قضاء ثابت ده. بيا چه دغه رقم سره د سود كومه معامله اوكړې شوه په دې سلسله كښې دغه فقهاء حضرات فرمائي چه هغه محكمې د خپل طرف نه كړې دې نوهغه دهغوي اود الله تعالى په مينځ كښې معامله ده. د ملازم د مياشتې د تنخواه نه چه كومه كټوتي كيږي هغه هم دهغه په ملكيت كښې نه وي راغلې څكه چه په اجرت باندې ملكيت روستو د قبضې نه متحقق كيږي او په مذكوره صورت كښې د قبضه كيدلو نه وړاندې څه تنخواه وضع كړې شوه نودا كټ شوې تنخواه د محكمې ملكيت كښې ده. محكمه چه په دې كښې څه تصرف هم كوي سره ددې چه په سودي لين دين كښې ئې لګوي هغه د محكمې د طرف نه دې كوم چه جانبين د طرف نه مشروط هم نه وو نومحكمه چه كله هم دا رقم ملازم ته وركوي نو لكه چه دخپلې خزانې نه ئې وركوي. دملازم په حق كښې تو له تبرع او تبرع ده.

**دحضرت مفتي كفايت الله صاحب رحمه الله رائې:-** پراويډنټ فنډكښې نيم رقم عطيه وي اونصف دملازم د تنخواه نه وضع كړې شوې وي اوهغه هم د ملازم په قبضه كښې د راتلونه وړاندې وضع كولې شي په دې وجه ددې سود اود د نيم رقم عطيه سود دواړو ملاويدلوسره هم دعطيه حكم اخلی اود نصف رقم. وضع شوي نه زياتې چه كوم رقم ملاويږي هغه ټول هم عطيه ګرځي. دبينك سود ددې نه مختلف دې په دواړو كښې د فرق وجه داده چه په بينك كښې د خپلې قبضې نه په راوړستو جمع كولې شي په دې وجه ددې سود حقيقتا هم سود وي.

د يوبلې استثناء جواب كښې فرمائي: پراويډنټ فنډ او په دې سوداخستل او په خپل تصرف كښې راوستل جائز دی. څكه چه هغه حقيقتا د سود په حكم كښې نه دې. (كفايت المفتي: ۸/۹۵ – ۹۶.)

**د حضرت مفتي اعظم پاكستان مفتي محمد شفيع صاحب رحمه الله رائې:-** دحضرت مفتي صاحب رحمه الله فتوى هم د پراويډنټ فنډ په جواز باندې ده لكه څنګه چه هغوی په خپله رساله پراويډنډټ فنډ پر زكوة اورسودكا مسئله كښې په تفصيل سره تحرير فرمائيلې دی. (امدادالفتاوى ۳/۱۴۸ – ۱۴۹)

**د حضرت مفتي محمودحسن ګنګوهي صاحب رحمه الله رائې:-** د تنخواه داحصه ملازم پخپله نه ده جمع كړې بلكه دا سلسله حكومت دخپل قانون په رڼاكښې روانه كړې ده په كوم سره چه د ملازم خيرخواهي مقصود ده. تركومې چه په دې باندې دملازم قبضه نه وي دا دملازم ملكيت نه دې. لهذا چه په دې باندې كومه اضافه هم ملاويږي دا به هم سود نه وي بلكه دا هم داسې دی لكه..... ابقيه حاشيه په راروانه صفحه

# ۱۳- باب: من آجر نفسه لیحمل علی ظهره. ثم تصدق به. وأجرة الحمال

## چا چه په خپله شا باندې بوج اوچتولو سره مزدوري اوکړه اوبيا ئې صدقه کړه اود بوج اوچتولو اجرت

**دَترجمة الباب مقصد:**-امام بخاری رحمه الله فرمائی که يوسړې صدقه کول غواړی اوهغه سره پيسې نشته. اوهغه ځی مزدوری کوی او بوج په خپله شاباندې اوچتوی پيسې ګټی او صدقه کوی نودَ ده دَپاره داسې کول صحيح دی او غالبًا په دې باندې تنبيه کولوضرورت څکه پيښ شو چه په دې کښې په اصل کښې په ظاهر دَمسلمان دَ نفس دَ اذلال صورت ښکاری اودَ سړی خپل ځان ذليل کول جائزنه دی. نولکه چه امام بخاری رحمه الله دَدې اشکال جواب ورکړو. (۱)

داهم وئيلې شی چه په حديث کښې دی خير الصدقة ماکان عن ظهرغنی(۲)يعنی دَ سړی هغه صدقه ډيره بهتره ده کومه چه غناء نفس سره وی يعنی دَ صدقه کولونه پس هغه پريشان نه وی نوچه په مذکوره صورت کښې يوسړې بازارته لاړشي مزدوری کوی بيا صدقه کوی آيا دا صدقه به ظهر غنی نه وی نولکه چه امام بخاری رحمه الله دَدې په جواب کښې فرمائی چه په حديث کښې داهم راغلی دی چه دَ رسول الله ﷺ نه پښتنه اوکړې شوه أي صدقة أفضل؟ نو حضورپاك اوفرمائيل جهد المقل. يعنی که فقيرسړې چرته مشقت کوی اودَ صدقه فضيلت حاصلوی نودا ډيره لوړه خبره ده. (۳) پاتې شوه داخبره چه خير الصدقة ماکان عن ظهر غنی دَدې مطلب دادې چه دسړی زړه غنی کيدل پکاردی که يوغريب سړې صدقه کوی اوهغه سره پيسې هم زياتې نشته ليکن دَهغه زړه مطمئن دې نو په دې کښې هيڅ خرابی نشته. او په ترجمة الباب

---

...بقيه حاشيه دتيرمخ[چه بعض محکموکښې ملازمت ختميدو باندې دَحسن کارکردګئی په صله کښې پنشن ملاويږی دې ته هم سود نه شی وئيلې.

اوبوه استثناء کومه چه هم دَ پراويډنټ فنډ متعلق وه په جواب کښې فرمائی چه دا په سود کښې داخل نه دې.(فتاوی محموديه ۱۶/۳۹۳ - ۳۹۴).

ليکن دَ صاحب تکمله فتح ا لملهم مفتی محمد تقی عثمانی زيدمجدهم رائې اوس جدا ده حضرت فرمائی چه حضرت مفتی محمدشفيع صاحب کوم وخت دا فتوی ورکړی وه په هغه وخت او دَنن په حالاتو کښې لږ شان فرق پيدا شوی دې. په دې وجه په دې فتوی نظرثانی کول دی. په هغه وخت کښې چه محکمې څه کول پخپله به ئې کول په هغې کښې دَملازم هيڅ دخل نه وو او اوس طريقه داده چه دَ پراويډنټ فنډ چلولوډپاره پخپله محکمه يو کميټی جوړه وی چه دا فنډ چلوئی نوچه کومه کميټی ده هغه دَ ملازمينو نمائنده او وکيل شو دَ هغې قبضه هم دَ مؤکل قبضه ده اود قبضه کيدو نه پس هغه په ملکيت کښې راغلو اوس که چرې دا دوی په څه سودی معامله کښې چلوی نودا پخپله ملازم چلوی لهذا دَدې اخستل نه دی جائزکيدل پکار. ( انعام الباری:۶/۴۵۱)

(۱) لامع الدراری:۶/۱۷۲.

(۲) أخرجه البيهقی رحمه الله فی سننه الکبری: ۴/۳۰۲حديث رقم :۷۷۶۹.

(۳) المصدرالسابق حديث رقم: ۷۷۷۲.

کښې امام بخاری رحمه الله أجرة الحمال لفظ زیات کړې دې په دې کښې غالبًا دې طرف ته اشاره ده چه دحمال پیشه جائز ده په دې کښې اجرت اخستل هم جائزدی

[حدیث ۲۱۵۳] (۱) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ -رضی الله عنه- قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- إِذَا أَمَرَ بِالصَّدَقَةِ انْطَلَقَ أَحَدُنَا إِلَى السُّوقِ فَيُحَامِلُ فَيُصِيبُ الْمُدَّ، وَإِنَّ لِبَعْضِهِمْ لَمِائَةَ أَلْفٍ، قَالَ مَا نُرَاهُ إِلَّا نَفْسَهُ. [ر: ۱۳۵۰]

**ترجمه**:- حضرت ابومسعودانصاری رضی الله عنه فرمائي رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله مونږ ته د صدقه کولوحکم کولونوبعض خلق به بازارته لاړل اود بوج کاربه ئی کولو چه یومد مزدوری به ملاویدله (دهغې نه به ئی صدقه کوله) اوبیشکه نن هم هغوی سره یویولاکهه (درهم اودینار)دی. ابووائل رحمه الله اووئیل زمونږ خیال دې چه دهغوی مراد هم خپل ځان وو.

## رجال الحدیث

**سعیدبن یحیی**:- دا سعیدبن یحیی بن سعیدبن ابان بن سعید بن ابی العاص اموی رحمه الله دې. (۲)

**یحیی بن سعید**:-دا یحیی بن سعید اموی رحمه الله دې. (۳)

**أعمش**:- دا سلیمان بن مهران اعمش رحمه الله دې. (۴)

**شقیق**:- دا ابووائل شقیق بن سلمه رحمه الله دې. (۵)

**ابومسعود انصاری**:اوحضرت ابومسعود عقبة بن عمرو انصاری رضی الله عنه (۶) تذکره هم تیره شوې ده.

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:-د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت د دې دمعنی نه ښکاره دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به کله د صدقه کولوحکم کولو نو فقیرانو صحابه کرامو رضی الله عنهم واؤریدو اود صدقه عظیم الشان اجرکتلوسره به د هغوی هم خواهش ووچه د الله تعالی په لار کښې خرچ اوکړی نوهغوی به بازارته لاړل اود خلقو سامانونه اوبوجونه به ئې یوړل او اجرت به ئی اوګټو او هغه به ئی صدقه کړو اوهم دغه د ترجمة الباب مطلب هم دې. (۷)

---

(۱) أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الزکاة باب اتقواالنار ولو بشق تمرة والقلیل من الصدقة۱۴۱۵ وأخرجه مسلم فی کتاب الزکاة باب الحمل أجرة یتصدق بها الخ: ۲۳۵۲ والنسائی فی کتاب الزکاة باب جهدالمقل رقم: ۲۵۲۸ وانظر فی جامع الاصول سورة براءة رقم: ۶۵۷.

(۲) کشف الباری: ۶۷۹/۱.

(۳) کشف الباری: ۶۷۹/۱.

(۴) کشف الباری: ۲۵۱/۲.

(۵) کشف الباری: ۵۵۹/۲.

(۶) کشف الباری: ۷۴۸/۲ .

(۷) عمدة القاری:۱۳۱/۱۲.

# ۱۴ - باب: أجر السمسرة

وَلَمْ يَرَ ابْنُ سِيرِينَ وَعَطَاءٌ وَإِبْرَاهِيمُ وَالْحَسَنُ بِأَجْرِ السِّمْسَارِ بَأْسًا.
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لاَ بَأْسَ أَنْ يَقُولَ: بِعْ هٰذَا الثَّوْبَ، فَمَا زَادَ عَلَى كَذَا وَكَذَا فَهُوَلَكَ
وَقَالَ ابْنُ سِيرِينَ: إِذَا قَالَ: بِعْهُ بِكَذَا، فَمَا كَانَ مِنْ رِبْحٍ فَهُوَلَكَ، أَوْ بَيْنِي وَبَيْنَكَ فَلاَ بَأْسَ بِهِ.
وَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم: (اَلْمُسْلِمُوْنَ عِنْدَ شُرُوْطِهِمْ)

**د دلالئی اجرت:** ابن سیرین عطاء ابراهیم اوحسن رحمهم الله به په دلالئی باندې اجرت اخستلوکښې څه حرج نه ګنړلو. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائیل که چاته دې اووئیل چه داکپړه په دومره قیمت باندې خرڅه کړه څومره چه زیاتي شی هغه به ستا وی نویه دې کښې هیڅ حرج نشته. ابن سیرین رحمه الله اوفرمائیل که چااووئیل چه په دومره کښې داخرڅه کړه څومره ګټه چه وی هغه ستا ده یا (دائې اووئیل) چه زما اوستا په مینځ کښې به تقسیمیږی نو په دې کښې هیڅ حرج نشته. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه مسلمان دې په خپلوشرطونو قایم وی.

**لغات:- السمسرة:-** بیع اوشراء ته وائی سمسار هغه سړی ته وائی چه د بیع د نفاذ د پاره په بائع او مشتری دواړوکښې واسطه جوړشی. یعنی دلال د سمسار جمع سماسرة راځی.(۱)

**د ترجمة الباب مقصد اود فقهاؤ اختلاف:-** امام بخاری رحمه الله ښائی چه په دلالئی باندې اجرت جائز دې اود حدیث باب په ذریعه امام بخاری رحمه الله اشاره اوکړه چه دهغوی په نیز د سمسره د جواز د پاره یوخاص شرط دې چه د جاضربادی د پاره دې په اجرت اخستلوسره بیع نه کوی باقی ټولو صورتونوکښې که چرې هغه په دلالئی باندې اجرت اخلی نوجائزدې.(۲)

د سمسره متداول صورت دادې چه ته چاته اووائې که تا زما ځیزله ګاهك راوستلو نوزه به مثلاً تاته ۳۰۰ روپئی درکوم اوس که هغه بله ورځ مشتری راولی راشی نو هغه ته به ۳۰۰ روپئی ملاویږی اوکه رانه وستو او میاشتې تیرې شوې نوهغه به د یوې روپئی هم حقدارنه وی په دې کښې په عام توګه موده معلومه نه وی.

شوافع مالکیه حنابله د دې د جواز قائل دی په دې شرط چه اجرت ئی معلوم وی اود امام ابوحنیفه رحمه الله نه د عدم جواز قول نقل دې.(۳)

ابن التین رحمه الله فرمائی چه د سمسره دوه قسمونه دی: ① اجاره ② جعالة.

د اجاره صورت دادې چه په دې کښې موده مقرره وی مثلاً زماد مکان د پاره څوك مشتری اولټوه د یوې میاشت پورې به ته زمااجیرئی اوزه به تاته د دې اجرت مثلاً درې زره روپئی

---

(۱) النهایة فی غریب الحدیث والاثر:۸۰۵/۱.
(۲) عمدة القاری:۱۳۲/۱۲ - ۱۳۳.والابواب والتراجم ص: ۱۶۷ فتح الباری:۵۷۰/۴.
(۳) إعلاء السنن:۲۰۱/۲۶ عمدة القاری:۲/۱۲

دركوم اوس كه هغه په پنځلس ورځوكښې مشترى راوستو نوهغه به هم په دغه حساب سره داجرت حقداروى يعنى هغه ته به اوس پنځلس سوه روپئى اجرت ملاويږى يادساتئى چه د سمسره دا صورت هم اجاره ده اودا د احنافو په نيزهم جائزده. لكه چه ددې صورت په جواز باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دې. ترکومې چه دجعالة تعلق دې نو په دې كښې موده مقررنه وى بلكه تكميل عمل سره بحث وى اوزمونږ په علاقوكښې هم دغه صورت د سمسره متعارف دې لكه چه تيرشو [1] اود احنافوپه نيزددې صورت د عدم جواز وجه په ظاهره هم دغه ده چه دا اجاره نه شى ګرځولې په اجاره كښې خو معقودعليه ياخو عمل وى يامز ده. تكميل عمل سره بحث نه كيږى مثلاً په مذكوره مسئله كښې د جعالة په صورت كښې كه چرې ته د بائع دپاره ګاهك راولې نودرې زره روپئى به ملاويږى اوچه ته په مياشتو لټون كوې ستړې شې نوتاته به هيڅ هم نه ملاويږى اوپه تكميل عمل باندې به تاته اجرت ملاويږى. متاخرين فقهاء احناف داهم جائزګرځولې دى. [2]

---

[1] إعلاء السنن:۲۰۱/۲٦ عمدة القارى:۱۳۲/۱۲.

[2] إعلاء السنن:٤۰/۱۳ المغنى لابن قدامة:۳۵۰/٦. **(اضافه ازمرتب)**

**د بعض فقهاء عصرانی:** حضرت مفتى تقى عثمانى صاحب مدظله فرمائى چه ماته د جعالة (يعنى د سمسره رائج صورت) په عدم جواز باندې د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله يوصريح قول نه دې ملاؤشوې نوچه د جعالة په جوازباندې د امام صاحب رحمه الله څه روايت موجودنه دې په دې وجه په عام توګه فقهاؤ دا اوګنړل چه دا د امام صاحب په نيزجائزنه ده. ګنى د دلائلو په رڼړا د قرآن كريم په دې آيت مبارك ﴿وَلِمَن جَآءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ﴾ سره د جعالة جواز واضح دې. هم ددې دپاره متاخرين حنفيه دسمسره اجرت جائزګرځولې دې سره ددې چه علامه عينى رحمه الله داليكلى دى چه سمسره جائزنه ده ليكن علامه شامى رحمه الله وغيره تصريح كړې ده چه سمسره جائزده. (انعام البارى:٤۵۵/٦).

**د كميشن ايجنټ مسئله:** نن صباپه عام توګه د فيصدپه اعتبارسره اجرت فيصله كيږى مثلاً بائع ياهغه ايجنټ پخپله وائى چه فلانكې څيز خرڅولوباندې دهغې د ثمن نه پنځه فيصد به زه اخلم. د نن صبااصطلاح كښې دې ته كميشن ايجنټ (Commission Agent) وائى. بعض حضرات چه سمسرة جائزګڼړى دې ته ناجائز وائى په دې وجه سمسرة په حقيقت كښې ديوعمل اجرت دې اود سمسار عمل ثمن په كمى بيشى نه كم وبيش نه كيږى نو د مشترى په لټون كښې دې اوس كه چرې ثمن ۵۰۰۰۰ دې يا ۱۰۰۰ هغه ته هم دومره عمل كول وى. لهذا په دې كښې ده ته د ثمن مقدار سره مربوط كولوسره ددې فيصد مقررول جائزنه دى ليكن دمفتى به قول مطابق دغه شان په فيصدباندې عقد اجاره كول جائزدى

دغه شان صاحب تكملة فتح الملهم زيدمجدهم رائې هم داده چه مفتى به قول مطابق داسې كول جائزده او علامه شامى رحمه الله د بعض متاخرينو نه نقل كړى دى. ددې وجه داده چه هميشه د اجرت عمل دمقدارمطابق كيدل ضرورى نه دى بلكه د عمل قدراوقيمت اودعمل دحيثيت په لحاظ سره هم په احرت كښې فرق كيږى. ددې مثال علامه شامى رحمه الله وركړې دې چه يوسرې په څرمن كښې سورې كوى او يوسرې په غمى كښې سورې كوى اوس په څرمن كښې سورې كونكې او په غمى كښې سورې كونكې په عمل كښې د محنت په اعتبارسره څه زيات فرق نشته خود غمى دننه سورې كونكى عمل قدراوقيمت زيات دې په نسبت په څرمن كښې د سورى كونكى. نود عمل د قدر اوقيمت هم لحاظ كيږى (حاشه ابن عابدين: ٦۳/٦ وفتاوى السعدى:۵۲۵/۲) ..... ابقيه حاشيه په راروانه صفحه

**دتعلیقاتوتفصیل**:- دابن سیرین رحمه الله اثر امام ابن ابی شیبه رحمه الله حفص عن اشعث عن محمد بن سیرین په طریق باندې موصولاً نقل کړې دې (۱)

دعطاء رحمه الله اثر امام ابن ابی شیبه رحمه الله وکیع ثنالیث ابوعبدالعزیز په طریق باندې موصولاً ذکرکړې دې (۲)

دَ ابراهیم رحمه الله اثر هم امام ابن ابی شیبه رحمه الله عن الحکم وحمادعن ابراهیم په طریق سره موصولاً نقل کړې دې (۳)

دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما تعلیق امام ابن ابی شیبه رحمه الله هشیم عن عمروبن دینار عن عطاء په طریق سره موصولاً نقل کړې دې (۴)

دَ ابن سیرین رحمه الله دویم قول هم امام ابن ابی شیبه رحمه الله هشیم عن یونس عن محمد بن سیرین رحمهم الله په طریق سره موصولاً نقل کړې دې. (۵)

اودا ټول ذکرشوی تعلیقات هم امام بخاری رحمه الله دَ دلالئی دَ اجرت په جواز کښې پیش کړی دی.

**قوله: المسلمون عند شروطهم**:- داحدیث مبارك امام بخاری رحمه الله تعلیقاً ذکرکړې دې اما ابوداؤد د ولیدبن رباح په طریق سره دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه موصولاً نقل کړې دې.(۶) اوامام ترمذی رحمه الله په خپل جامع کښې(۷) اوامام اسحاق رحمه الله هم په خپل مسندکښې کثیربن عبدالله بن عمرو بن عوف عن ابیه عن جده په طریق سره موصولاً ذکرکړې دې: **المسلمون علی شروطهم الاشرطاً حرم حلالاً اواحل حراماً.** (۸)دَدې حدیث مذکور په سندکښې یوراوی کثیربن عبدالله دې. په چاچه محدثینو کلام کړې دې.

---

...بقیه حاشیه دتیرمخ) دغه شان چه کوم خلق دَ ګاډو اخستل خرڅول کوی دَهغوی دلال بروکروی فرض کړه مهران ګاډې ئی خرڅ کړو چه مثلاً دَ دوه نیمولاکهودې. په دې باندې ایجنټ یوفیصد کمیشن واخستو چه دوه نیم زره روپئې دی. دغه شان که دې ایجنټ شیورلیټ ګاډې خرڅ کړو مثلاً پنځوس لاکهه قیمت ئی دې نودې یوفیصد کمیشن به هم یقیناً زیات وی نودې عمل قدراوقیمت زیات دې په دې وجه په زیات اخستوکښې هیڅ خرابې نشته. یعنی د فیصد په حساب سره هم سمسره اجرت اخستل جائزدی.(انعام الباری:۶/۴۵۷)

**دَ حضرت مفتی رشیداحمد رحمه الله رائې**:- حضرت مفتی صاحب دَ یواستفتاء په جواب کښې فرمائی: البته که چرې د دلالئی رقم متعین وی یادَ میخې قیمت نه دَ فیصدپه حساب دلالی متعین وی مثلاً میخه چه په څوخرڅه شوه په هغې کښې به پنځه فیصد دلال اخلی نودا جائزده.(احسن الفتاوی:۷/۲۷۴).

(۱) تغلیق التعلیق:۳/۲۸۰وعمدة القاری:۱۰/۸۵.

(۲) تغلیق التعلیق:۳/۲۸۰وعمدة القاری:۱۰/۸۵.

(۳) تغلیق التعلیق:۳/۲۸۰وعمدة القاری:۱۰/۸۵.

(۴) وعمدة القاری:۱۰/۸۵ فتح الباری: ۴/۴۵۱.

(۵) تغلیق التعلیق:۳/۲۸۱وعمدة القاری:۱۰/۸۶.

(۶) سنن ابی داؤد باب فی الصلح رقم الحدیث: ۳۵۹۴.

(۷) الجامع الترمذی:۱۳۵۲.

(۸) عمدة القاری: ۱۲/۱۳۳.

**کثیر بن عبدالله بن عمرو بن عوف مزنی رحمه الله تعارف:-** دوی رحمه الله بکر بن عبدالرحمن المزنی البصری ربیع بن عبدالرحمن بن ابی سعید خدری رضی الله عنه، نافع مولی ابن عمر او خپل پلار عبدالله بن عمرو بن عوف مزنی رحمهم الله نه روایات بیانوی. اوډهغوی نه ابراهیم بن علی رافعی، ابواسحاق فزاری، اسحاق بن ابراهیم حُنیعی، اسحاق بن جعفرعلوی، خالدبن مخلد قطوانی، عبدالله بن نافع الصائغ، عبدالله بن وهب مصری، ابوالجعد عبدالرحمن بن عبدالله سلمی، عبدالعزیز بن محمد دراوَردی، محمدبن عمرالواقدی، محمدبن فلیح، ابوغزیه محمدبن موسیٰ انصاری قاضی المدینة، معن بن عیسیٰ قزاز او یحییٰ بن سعید انصاری وغیرهم رحمهم الله روایت نقل کوی.[1]

په هغوی باندې محدثینو سخت تنقیدی کلام کړې دې. ډ امام احمد بن حنبل رحمه الله نه ډهغوی باره کښې تپوس اوشو نووئی فرمائیل **منکر الحدیث لیس بشئ**.[2] ابوخیثمه رحمه الله وائی چه ماته امام احمدبن حنبل رحمه الله اووئیل **لاتحدث عنه شیئاً**.[3] یحییٰ بن معین رحمه الله فرمائی **کثیر ضعیف الحدیث**.[4] یوبل خائی کښې فرمائیلی **لیس بشئ**.[5]

ډ امام ابوداؤد رحمه الله نه تپوس اوشو نووئی فرمائیل **کان احد الکذابین** او امام شافعی رحمه الله فرمائی **ذاك احد الکذابین**. ابوزرعه رحمه الله فرمائی **واهی الحدیث**.[6] لیکن امام بخاری رحمه الله امام ترمذی رحمه الله او ابن خزیمه رحمه الله ډدوی روایت ډیر زیات پریوتلې نه ګڼړی اونه هغه ډدې حضراتو په نظر کښې کذاب دې. لکه چه په تهذیب الکمال کښې دی امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه ما ډامام محمد رحمه الله نه کثیربن عبدالله عن ابیه عن جده ډ دې روایت باره کښې پښتنه اوکړه چه ډ جمعه ډ ورځې ډ مقبول وخت باره کښې دې نوامام محمد رحمه الله اوفرمائیل: **حدیث حسن الا احمدبن حنبل رحمه الله تعالی کان یحمل علی کثیر یضعفه، وقد روی یحیی بن سعید الانصاری رحمه الله تعالی یعنی علی امامته عن کثیر بن عبدالله.**[7] یعنی ډدوی حدیث ډ حسن درجې دې مګر امام احمدبن حنبل رحمه الله هغه ډیر ضعیف ګرځوی اوحال دادې چه یحییٰ بن سعید انصاری رحمه الله ډ خپل جلالت قدر نه باوجود کثیر بن عبدالله نه روایت نقل کړې دې. البته ډ ده په روایتونوکښې غلطیانې وی اوهغوی کثرت خطا سره موصوف دې نودا حضرات ډدوی روایات په استشهادکښې پیش کوی.

**ډتعلیق مذکور مقصد:-** **المسلمون عند شروطهم** نه داخودل مقصود دې که په مسلمانانوکښې داقسم طریق رائج دې اوهغوی په داسې شرائطوسره دلالی کوی کوم چه شرعاً جائزدی او ډ اجرت مقرر

---

[1] تهذیب الکمال: ۱۳۶/۲۴.
[2] الجرح والتعدیل:۷/، الترجمة:۸۵۸.
[3] الکامل لابن عدی:۹/۳.
[4] تاریخ لعباد الدوری رحمه الله ۴۹۴/۲ بحواله تهذیب الکمال.
[5] تاریخ لعباد الدوری رحمه الله ۴۹۴/۲ بحواله تهذیب الکمال.
[6] تهذیب الکمال: ۱۳۸/۲۴.
[7] تهذیب الکمال: ۱۳۹/۲۴.

كولوسره په دې اجرت اخلى نو دا جائزده او په دې كښې هيڅ خرابى نشته [1]

[حديث ٢١٥٤] [2] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يُتَلَقَّى الرُّكْبَانُ، وَلاَ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ . قُلْتُ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ مَا قَوْلُهُ لاَ يَبِيعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ قَالَ لاَ يَكُونُ لَهُ سِمْسَارًا. [ر ٢٠٥٠]

**ترجمه**:- رسول الله ﷺ په وړاندې كيدوسره دَ قافلې والا سره ملاويدلونه منع فرمائيلې ده. او دا چه ښاريان دې دَ كلى والو مال نه خرڅوى ما تپوس اوكړو اې ابن عباس! ښاروالا دې دكلى والا مال نه خرڅوى ددې څه مطلب دې. هغه اوفرمائيل دې نه مراد دادې چه دَهغوى دَپاره دې دلال نه جوړيږى.

**تراحم رجال: مسدد**:- دامسدد بن مسرهد رحمه الله دې. [3]

**عبدالواحد**:- داعبدالواحد بن زياد بصرى رحمه الله دې. [4]

**معمر**:- دامعمر بن راشد ازدى بصرى رحمه الله دې. [5]

**ابن طاؤس**:- داعبدالله بن طاؤس رحمه الله دې. دَ دوى تذكره **كتاب الحيض باب المرأة تحيض بعد الافاضة** كښې تيره شوې ده.

**قوله: عن أبيه**:- اودَ دوى پلار طاؤس بن كيسان يمانى رحمه الله تذكره **كتاب الوضوٴ باب من لم يرالوضوٴ الامن المخرجين الخ** كښې تيره شوې ده.

**عبدالله بن عباس**:- او دَ حضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما [6] تذكره هم تيره شوې ده.

**دَ حديث باب ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت **قوله: لايكون له سمسارًا** سره واضح دې. [7]

**اشكال**:- په دې باندې اشكال كيدې شى چه امام بخارى رحمه الله خودَسمسار اجرت په جواز باندې ترجمة الباب قايم كړې دې اوحديث كښې خو ابن عباس رضى الله عنهما دَ سمسار اجرت باندې عدم جواز ښائى نو حديث اوترجمة الباب كښې مطابقت اونه شو.

---

[1] ارشادالسارى: ٢٣٧/٥.

[2] واخرجه مسلم فى كتاب البيوع: ٢٧٩٨ والترمذى رحمه الله فى كتاب البيوع ٤٤٢٤ وابوداؤد فى كتاب البيوع: ٢٩٨٢ وابن ماجه فى كتاب التجارات: ٢١٦٨ وانظر فى جامع الاصول الفصل الخامس فى النهى عن بيع الحاضر للبادى، وتلقى الركبان رقم: ٣٥٣.

[3] كشف البارى: ٢/٢. ٥٨٨/٤.

[4] كشف البارى: ٣٠١/٢.

[5] كشف البارى: ٤٦٥/١. ٣٢١/٥.

[6] كشف البارى: ٤٣٥/١.

[7] إرشاد السارى: ٢٣٧/٥.

**جواب** - علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه دَابن عباس رضی الله عنهما انکار یوخاص صورت کښې دې. کله چه یوښاري دَ کلی وال دلال جوړشی اودَ دې مخالف مفهوم دادې چه څوك ښارې دَ ښاری یا کلی وال دَ کلی وال دلال جوړشی نوجائز دی. لکه چه دَعدم جواز صورت مخصوص دې او باقی ټول صورتونه جائزدی [1]

## ١٥ - باب: هل يؤاجر الرجل نفسه من مشرك في أرض الحرب

### آیا یو مسلمان په دارالحرب کښې دَ یومشرك مزدوری کولې شی؟

**دَ ترجمة الباب مقصد** :- امام بخاری رحمه الله دابنائی که یومسلمان مشرك سره نوکری اوکړی او په اجاره باندې خپل ځان پیش کړی نوآیا داجائزدی. امام بخاری رحمه الله استفهام سره ترجمه قایم کړې ده او چه کوم روایت ئی نقل کړې دې دَهغې نه معلومیږی چه جائزدی. په دې وجه حضرت خباب بن ارت رضی الله عنه دَ عاص بن وائل توره جوړه کړې وه اودَ کتاب التفسیر په روایت کښې تصریح ده چه حضرت خباب رضی الله عنه مسلمان شوې وو. خو امام بخاری رحمه الله دلته دَاستفهام لفظ ولې نقل کړو؟ دَدې متعلق خویوه خبره دا کیدې شی چه ممکن دی حضرت خباب رضی الله عنه دَ مجبورئی او ضرورت دَ وجې داکارکړې وو اوهغه وخت خومکه مکرمه دارالاسلام هم نه وو بلکه دارالحرب وو. ځکه هغه مشرك سره په کارکولوباندې مجبوروو. اوس که چرې داسې مجبوری نه وی نوبیابه هم داقسم اجاره کول جائزوی که نه؟ په دې کښې امام بخاری رحمه الله ته تردد دې داهم وئیلې شی چه امام بخاری رحمه الله "هل" لفظ راوړلوسره په دې مسئله کښې دَ فقهاؤدَاختلاف طرف ته اشاره کړې ده چه بعض فقهاء یومشرك سره په اجاره باندې دَ کارکولواجازت نه ورکوی اوداځکه چه په دې کښې اذلال نفس راځی. بهرحال دَجمهورفقهاؤ مسلك هم دغه دې چه مشرك سره مزدوری کولې شی. [2]

**دَ فقهاؤ اختلاف**:- علامه مهلب رحمه الله فرمائی دَ یومسلمان دَپاره خپل ځان په اجاره باندې مشرك ته پیش کول مکروه دی مګرپه سخت ضرورت کښې په دوو شرطونوباندې جائزدې:

① چه هغه عمل په شریعت مطهره کښې جائزوی.

② بل دا چه په هغې کښې دَمسلمان دَپاره ضرر نه وی.

علامه ابن المنیر رحمه الله فرمائی چه دَمشرکانو په دوکانونو وغیره کښې کارکول خودَ ټولو فقهاؤ په نیز جائزدی. دَهغوی په کورونوکښې دَهغوی خدمت کول فقهاؤ دَ اذلال نفس مسلم دَ وجې نه مکروه وئیلی دی. [3]

....

---

[1] المصدرالسابق.

[2] فتح الباری: ٥٧١/٤وعمدة القاری: ١٣٤/١٢ وإرشاد الساری: ٢٣٨/٥.

[3] شرح البخاری لابن بطال: ٤٠٣/٦ وعمدة القاری: ١٣٤/١٢.

[حدیث باب ۲۱۵۵] (۱) حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوقٍ حَدَّثَنَا خَبَّابٌ قَالَ كُنْتُ رَجُلًا قَيْنًا فَعَمِلْتُ لِلْعَاصِ بْنِ وَائِلٍ فَاجْتَمَعَ لِي عِنْدَهُ فَأَتَيْتُهُ أَتَقَاضَاهُ فَقَالَ لَا وَاللَّهِ لَا أَقْضِيكَ حَتَّى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ. فَقُلْتُ أَمَا وَاللَّهِ حَتَّى تَمُوتَ ثُمَّ تُبْعَثَ فَلَا. قَالَ وَإِنِّي لَمَيِّتٌ ثُمَّ مَبْعُوثٌ قُلْتُ نَعَمْ. قَالَ فَإِنَّهُ سَيَكُونُ لِي ثَمَّ مَالٌ وَوَلَدٌ فَأَقْضِيكَ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى (أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا) [ر: ۱۹۸۵]

ترجمه:- حضرت خباب رضی الله عنه فرمائي زه لوهارووم ماد عاص بن وائل کار اوکړو. کله چه زما ډيره مزدوری هغه سره شوه نوماد هغه نه غوښتنه اوکړه هغه وئيل په خدائی قسم چه ستا مزدوری به تر هغه وخته پورې درنه کړم ترکومې چه ته د محمد صلی الله علیه وسلم انکار اونه کړې. ما اووئيل په خدائی قسم دې چه دا به هغه وخت هم اونه شی چه ته مړشې او بيا راژوندې شې. هغه وئيل چه زه به د مرګ نه پس بيا راژوندې کيږم؟ ما وئيل او. هغه وئيل بيا به هلته ماسره مال اولاد وی نوزه به هم هلته تاله مزدوری هم درکړم. په دې باندې د قرآن کريم دا آيت نازل شو. آيا تا هغه سړې اوليد و چه زمونږ د نشانو انکارئی اوکړو اووئی وئيل چه ماله به مال او اولاد راکړې شی.

## رجال الحدیث

**عمر بن حفص:-** داعمربن حفص بن غياث رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة کښې تيره شوې ده.

**أعمش:-** داسليمان بن مهران اعمش رحمه الله دې. [2]

**مسلم:-** دا مسلم بن صبيح همدانی ابوالضحیٰ عطار کوفی رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الصلوة باب الصلوة فی الجبة الشامية کښې تيره شوې ده.

**مسروق:-** دامسروق بن اجدع رحمه الله دې. [3]

**خباب:-** د حضرت خباب بن ارت رضی الله عنه تذکره کتاب الاذان باب رفع البصر إلی الامام فی الصلاة کښې تيره شوې ده.

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:-** د حديث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: فعملت للعاص بن وائل نه واضح دې. [4] حديث مذکور کتاب البيع باب ذکر القين والحداد کښې تيرشوې دې او ان شاء الله په تفسير سورت مريم کښې به هم راځی.

---

[1]) أخرجه مسلم فی صحيحه کتاب القيامة والجنة والنار حديث رقم: ۵۰۰۳ والترمذی فی سننه کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله تعالی عليه وسلم حديث رقم: ۳۰۸۶ وأحمد فی مسند أول مسند البصريين حديث رقم: ۲۰۱۵۶ ۲۰۱۶۳ وانظر فی جامع الأصول سورة مريم رقم: ۷۱۹.

[2]) کشف الباری: ۲۵۱/۲.

[3]) کشف الباری: ۲۸۱/۲.

[4]) إرشاد الساری: ۲۳۸/۵.

# ۱۶ - باب: ما یعطی فی الرقیة علی أحیاء العرب بفاتحة الکتاب

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلی الله علیه وسلم - «أَحَقُّ مَا أَخَذْتُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا كِتَابُ اللَّهِ». [ر: ۵۴۰۵]

وَقَالَ الشَّعْبِيُّ لاَ يَشْتَرِطُ الْمُعَلِّمُ إِلاَّ أَنْ يُعْطَى شَيْئًا فَلْيَقْبَلْهُ وَقَالَ الْحَكَمُ لَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا كَرِهَ أَجْرَ الْمُعَلِّمِ. وَأَعْطَى الْحَسَنُ دَرَاهِمَ عَشَرَةً. وَلَمْ يَرَ ابْنُ سِيرِينَ بِأَجْرِ الْقَسَّامِ بَأْسًا. وَقَالَ كَانَ يُقَالُ السُّحْتُ الرِّشْوَةُ فِي الْحُكْمِ. وَكَانُوا يُعْطَوْنَ عَلَى الْخَرْصِ.

**ترجمه**:- دَ عربو یه قبائلو کښې چه دَ سورت فاتحه په دم وغیره باندې څه ورکولې شو حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په حواله سره بیان کړو چه کتاب الله دَ ټولونه زیات ددې مستحق دی چه په دې باندې اجرت واخستې شی. امام شعبی رحمه الله اوفرمائیل چه معلم ته د اول نه فیصله نه دی کول پکار (چه په خودلو باندې به ماته دومره تنخواه ملاویږی) البته څه چه هغه ته ورکړې شی اخستل پکاردی. حکم رحمه الله فرمائیلی چه ماڈ یوسړی نه نه دی اوریدلی چه دَ معلم اجرت هغه ناخوښه کړې وی. حسن رحمه الله به (خپل معلم ته) لس درهم ورکول. ابن سیرین رحمه الله قسام (دَ بیت المال ملازم کوم چه په تقسیم باندې معموروی) په اجرت کښې هیڅ حرج نه ګڼړلو او فرمائیل به ئی (دَ قرآن په آیت کښې) سحت فیصله کښې دَ رشوت اخستلو په معامله کښې دی او خلقو به (اندازه لګونکوته) په اندازه لګولو باندې اجرت ورکولو.

**حل لغات**:- **الرقیة**: دَ باب ضرب نه مصدردې. **رقاه الراقی رقیة ورقیا أی عوذه ونفث** یعنی دم وغیره کول تعویذ کول، دَ آسیب شوی اثر ختمول. ([1])

**احیاء**: دَ حی جمع ده یعنی ژوندې، باقی، فعال، جماعت، صله، طائفه اودلته هم دغه آخری معنی مراد ده. ([2])

**دَ ترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه په رقیة باندې اجرت اخستل جائزدی که نه؟ دا مسئله لکه چه متفق علیها ده اودَائمه اربعه رحمهم الله په اتفاق سره په رقیه باندې اجرت اخستل جائزدې او احنافو په نیزپه دې باندې هیڅ اشکال نشته ځکه چه دا دَمن باب المداواة والعلاج دې. ([3])

## "الاجارة في القرب" یعنی طاعات باندې اجرت اخستلوکښې دَ فقهاؤ دَ اختلاف بیان

دَامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله اودَهغه دَ اصحابو په نیز طاعت باندې اجرت اخستل جائزنه دی.

---

[1]) المغرب: ۱/۳۴۳.

[2]) فتح الباری: ۴/۵۷۲.

[3]) فیض الباری: ۳/۲۷۶.

يعنى هرهغه عبادت چه مسلمان سره خاص دي په هغې باندې زمونږ په نيز اجاره جائزنه ده. او هم دغه مذهب د ظاهر روايت مطابق دامام احمد. عطاء ضحاك بن قيس زهرى اسحاق رحمهم الله هم دي او امام مالك امام شافعى ابوقلابه ابن منذر رحمهم الله ددې د جواز قائل دى. (۱)

د طائفه ثانيه يعنى دحضرات مجوزين دليل د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما مذكوره روايت دې كوم چه امام بخارى رحمه الله د تعليق په توګه ذكركړې دې. أحق ما أخذتم عليه أجرا كتاب الله (۲) دې. يعنى د ټولونه زيات چه تاسو په كوم څيز باندې د اجرت اخستلو حقدار ئى هغه كتاب الله دې.

اود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا تعليق امام بخارى رحمه الله په كتاب الطب كښې موصولاً ذكركړې دې. اود دې حضراتو يو بل دليل دحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه روايت باب دې. (۳)

ددې جواب احنافو او نورو حضراتو دطرف نه دادې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشادات د رقيه باره كښې دى او په دې كښې اجرت اخستل خوزمونږ په نيز هم جائزدى ځكه چه داد تعليم اوعبادت د قبيل نه نه دى بلكه د قبيل مداوات او علاج نه دى او په دې باندې اجرت اخستل د ټولو په نيزجائزدى. (۴)

**د احنافو اونورو حضراتو نوردلائل:-** ① دحضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه روايت دې هغه فرمائى چه ما داهل صفه نه بعضوته قرآن مجيد اوكتابت اوخودلو. ماته په هغوى كښې چا يوكمان پيش كړو. ماسوچ اوكړو چه دايومعمولى څيزدې اوبيابه زه په جهاد كښې ددې نه كاراخلم په دې خيال باندې ماواخستو. د حضورپاك صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې مې عرض اوكړو، حضورپاك صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو: أن كنت تحب أن تطوق طوقا من نار فاقبلها يعنى كه ته چرته دا غوارې چه د دوزخ يو طوق تاته واچولې شى نو دا واخله. (۵) ددې نه هم معلومه شوه چه اجرت على الطاعات جائزنه دى.

② حضرت عثمان بن ابى العاص رضي الله عنه روايت دې چه هغه آخرى خبره د كومې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم وعده اخستې وه دا وه چه زه د اذان دپاره چرې هم داسې يومؤذن مقررنه كړم چه په اذان باندې اجرت اخلى. (۶)

---

(۱) المغنى: ۱/۱۲۹۵معارف السنن: ۲/۲٤۰.

(۲) فتح البارى: ٤/۵۷۲.

(۳)سياتى تخريجه.

(۴)المغنى: ۱/۱۲۹۵.

(۵) أخرجه ابوداؤد فى سننه فى كتاب الاجارة، باب فى كسب المعلم رقم الحديث: ۳٤۱۶ وابن ماجه فى سننه فى كتاب التجارات باب الاجر على تعليم القرآن رقم الحديث: ۲۱۵۷.

(۶) أخرجه ابوداؤد فى كتاب الصلوة باب أخذ الاجر على التاذين: ۵۳۱ والترمذى فى كتاب الصلاة باب ماجاء فى كراهية أن ياخذ المؤذن على الاذان أجراً: ۲۰۹.

④ د حضرت عبدالرحمن بن شبل انصارى رضي الله عنه په روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دې اِقرؤا القرآن او په دې كښې په آخره كښې دى ولاتاكلوابه. (۱)

د كلام خلاصه داشوه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه روايات باب الرقية والدواء العلاج سره متعلق دى اودا مذكوره روايات دتعليم اوعبادت سره متعلق دى او په دې كښې حضورپاك د اجرت اخستونه منع فرمائيلې ده.

**دمتاخرين احناف فتوى:**- خوبيا د زمانې د انقلاباتو او احوالو د تغيراتو د وجې د مجبورئى حضرات احناف استحسانًا د جواز فتوىٰ وركړه. په دې وجه په دې زمانه كښې په دينى اموروكښې د سستئى د وجې اولاپرواهى اوغفلت هرطرف ته خور اور دې. كه چرې په اذان امامت اوتعليم قرآن وغيره باندې عقداجاره ممنوع اوګرځولې شى نود حفظ قرآن او دينى تعليم سلسلې ختميدو انديښنه ده او اوس هم په دې جواز د قول باندې د مشائخ فتوىٰ ده. (۲)

---

۱) أخرجه أحمدبن حنبل رحمه الله فى مسنده: ۳۹/۳۳ رقم الحديث: ۱۵۹۲۸ و ۴۵/۳۳ رقم الحديث: ۱۵۹۳۴ وأخرجه الطبرانى فى الاوسط: ۳۹۲۳ فى من اسمه المقدام رقم الحديث: ۹۰۶۸ والبيهقى فى شعب الايمان: ۱۳۹/۶ رقم الحديث: ۲۵۱۶ والامام الطحاوى رحمه الله فى شرح معانى الاثار كتاب النكاح باب التزوج على سورة من القرآن رقم الحديث ۳۹۷۶.

۲) ( **اضافت ازمرتب**) داجرة على الطاعات د جواز په سلسله كښې دمتاخرين احنافو اقوال

**د صاحب البحرالرائق قول:**- وهورأى عدم أخذالاجرعلى الاذان قول المتقدمين. أما على المختار للفتوىٰ فى زماننا فيجوز أخذ الاجرة للامام والمؤذن والمعلم والمفتي كما صرحوابه فى كتاب الاجارات الخ. (اوګورئى البحرالرائق: ۲۵۴/۱) يعنى اودا چې په اذان باندې داجرت دعدم جواز قول دمتقدمينو دې بهرحال زمونږ په زمانه كښې مفتى به قول د جوازدې لهذا د امام مؤذن اومفتى اجرت اخستل جائزدى لكه چه كتاب الاجارات كښې د فقهاء (متاخرين) تصريح فرمائيلې ده.

**د صاحب هدايه قول:**- وبعض مشايخنا استحسنوا الاستئجار على اتعليم القرآن اليوم. لانه ظهر التوانى فى الامور الدينية. ففى الامتناع تضييع حفظ القرآن وعليه الفتوىٰ. (اوګورئى الهداية شرح بداية المبتدى: ۲۹۷/۶) يعنى زمونږ بعض مشائخويه دې زمانه كښې په تعليم القرآن باندې اجاره مستحسن ساتلې ده ځكه چه په دينى امورو كښې سستى ښكاره شوې ده نو(اوس د دې جوازقول سره) منع پاتې كيدل د حفظ قرآن د ضائع كيدو انديښنه ده اوهم په دې قول فتوى ده.

**دصاحب كفاية رائې:**- فان المتقدمين من أصحابنا بنوا هذا الجواب على ما شاهدوا فى عصرهم من رغبة الناس فى التعليم بطريق الحسنة ومروءة المتعلمين فى مجازاة الاحسان من غير شرط. وأما فى زماننا. فقد انعدم المعنيان جميعًا الخ. (اوګورئى الكفاية: ۴۱/۸) يعنې يقينًا زمونږ متقدمين فقهاؤ دا (عدم جواز) قول د دې دپاره اختيار كړې وو چه دې حضراتو صرف د الله تعالى د خوشحالئى دپاره تعليم وركولو كښې دخلقو د رغبت مشاهده كړې وه دغه شان بغيرد څه شرط نه د بهترين بدله وركولو په اعتبارسره دمتعلمينو مروت اوغيرت هم كتلې وو اوبهر حال زمونږ په زمانه كښې دا دواړه معانى معدوم شوى دى الخ.

**ملحوظه:**- د كلام خلاصه داشوه چه د اصل مذهب مطابق په مطلقًا عبادت باندې اجرت اخستل جائزنه دى كه هغه هر يوعبادت وى ليكن حضرات متاخرين د ضرورت د وجې د دې قاعدې كليه نه يوڅو څيزونه مستثنى كړى دى او بيانى دا وضاحت فرمائيلې دې ..... ابقيه حاشيه په راروانه صفحه

دَ تعلیقاتو تفصیل:- قوله: وقال ابن عباس رضی الله عنهما عن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم.... الخ داحدیث کتاب الطب کښې امام بخاری رحمه الله موصولاً ذکر کړې دې.(۱)

**قوله: وقال الشعبی لایشرط أمعلم إلا أن یعطی شیئاً فلیقبله:**- مصنف ابن ابی شیبه کښې دا تعلیق موصولاً ذکر کړې شوې دې. حدثنا مروان بن معاویة عن عثمان ابن الحارث عن الشعبی قال الخ.(۲)

**قوله: وقال الحکم لم اسمع احداً کره أجر المعلم:**- دا حکم بن عتیبه دې اودَدوی تعلیق علامه بغوی رحمه الله جعدیات کښې موصولاً نقل کړې دې.حدثنا علی بن جعد قال حدثنا شعبه قال......وسالت الحکم الخ.(۳)

---

......بقیه حاشیه دتیرمخ) چه استثناء هم په دې ځیزونوکښې ده. باقی عبادات اوطاعات په خپل اصلی حکم باندې دی چه په هغې باندې اجرت اخستل جائزنه دی. ددې نه معلومه شوه چه په رمضان شریف کښې په تراویح کښې قرآن اوریدلو باندې پیسې اخستل هم جائزنه دی ځکه چه فقهاؤ کښې چاهم ختم قرآن اوتراویح مستثنیات کښې نه دی شامل کړی. په دې سلسله کښې دَاهل فتاوی رائې.

**دَحضرت مفتی کفایت الله دهلوی رحمه الله فتوی:**- متاخرین فقهاء حنفیه دَامامت اجرت ورکول او اخستلو دَ جواز فتوی ورکړې ده. نوکه مذکوره امام سره دَمانځه دَ امامت معامله شوې وه نوصحیح وه لیکن دَ قرآن مجیدپه تراویح کښې اورولوباندې اجرت ورکول او اخستل جائزنه دی. که معامله دَ قرآن مجیددپاره شوی وو نو جائزنه وه.

**حضرت مفتی صاحب دَ یوبل استفتاء په جواب کښې فرمائیلی دی:** که بغیردَ تعین نه ورکړې شی او په نه ورکولو کښې څه ګیله مانه نه وی نودا صورت دَ اجرت نه خارج اود جواز په حدکښې دَاخلیدې شی. دَ شبینه چه کوم دواړه صورتونه په وجه ددې عوارضو پیش کیږی اوتقریباً لازم دی مکروه دی الخ. راوګورئی کفایت المفتی:۳۹۵، ۳/۴۱۰)

**دَ صاحب فتاوی محمودیه حضرت مفتی محمودحسن ګنګوهی رحمه الله رائې:**- سوال:- په رمضان کښې دَ ختم په سلسله کښې چه کوم خلق دَ حافظ دپاره چنده ورکوی دَ شیرینئ او چراغان کولودپاره آیا داغه خلق دَ ثواب مستحق دی که نه؟ یا په خپلو ګناهونوکښې چنده ورکولوسره ګناهونوکښې زیاتوالی کوی. لکه څنګه چه حافظ ته اجرت ورکول حرام دی زیاتې رڼاګانې کول بدعت دې؟ جواب:- دَ بدعت او ناجائزکاردپاره چنده ورکول جائزنه دی. لقوله تعالی ﴿ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ﴾ (مائدة:۳) (فتاوی محمودیه: ۳۴۲/۷)

**دَ حضرت مفتی عبدالستار صاحب نورالله مرقده رائې:**- په رمضان کښې حافظ قرآن ته په تراویح کښې دَ پیسو ورکولومتعلق حضرت فرمائی: دا پیسې اوکپړې د اجرت په شان دی لهذا حضرات فقهاء ددې نه منع فرمائیلې ده که چرته په بله موقع باندې خدمت اوکړې شی نوګنجائش شته دَ مسافرحافظ دَ خوراک څښاک دپاره انتظام کول پکاردی. (خیر الفتاوی: ۵۳۶/۲)

(۱) أخرجه البخاری فی کتاب الطب، باب الشروط فی الرقیة بفاتحة الکتاب حدیث رقم:۵۷۳۷.

(۲)عمدة القاری:۸۹/۱۰.

(۳) فتح الباری:۴۵۴/۴.

ليكن دَحكم رحمه الله دا وينا چه ماد چانه نه دى اوريدلى چه هغه دَمعلم اجرت مكروه گنړى دا دَهغه دَعلم په اعتبارسره ده گنى دَ عبدالله بن شقيق رحمه الله نه نقل دى يكره أرش المعلم، فإن اصحاب رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم كانوا يكرهونه ويرونه شديدا. [1] يعنى عبدالله بن شقيق رحمه الله به دا مكروه گنړل خكه چه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه كرامو رضي الله عنهم به هم دا مكروه گنړل او په دې كښې به ئې سختى كوله اومتقدمين احناف زهرى اسحاق وغيرهم رحمهم الله خودې ته ناجائزوائى. [2]

**قوله:** (وأعطى الحسن دراهم عشرة):- ابن سعد رحمه الله په طبقات كښې دَحضرت حسن رحمه الله دا اثر موصولاً ذكر كړې دې. اخبرنا عفان حدثنا حماد بن سلمة حدثنا يحيى بن سعيد بن ابى الحسن البصرى الخ. [3] دَهغه وراره ته يومعلم قرآن مجيد خودلو. يوځل دَهغه وراره په چغوشو چه مونږ به خپل مَعلم ته څه هديه ورکوو نوحضرت حسن رحمه الله اوفرمائيل هغه ته پنځه درهم ورکړه په دې باندې وراره نور اصرا اوکړو نوحضرت حسن رحمه الله لس درهم پوره کړل.

**قوله:** ولم ير ابن سيرين بأجر القسام بأسا الخ:- دَامام محمدبن سيرين رحمه الله مذكوره اثر ابن ابى شيبه رحمه الله موصولا نقل كړې دې. [4]

**حل لغات:** **قسام:**- ۱چه دَ مقسوم لهم په اجازت سره يومشترکه څيز په هغوى كښې تقسيم كړى. او په هغې باندې دَ هغوى نه اجرت واخلى. [5]

**السحت:**- السحت نه مشتق دې يعنى إهلاك واستئصال او سحت وائى حرام ته، الذى لايحل كسبه، لانه يسحت البركة أي: يذهبها يعنى دكوم څيز چه حرام وى اودې ته سحت خکه وائى چه داحرام مال برکت اوړى. [6]

**الرشوة:**- بضم الراء وكسرها ويقال بالفتح ايضا من الرشاء دا دَ راء په زير او پيش دواړوسره صحيح دې. او يوقول دَ زبر هم دې اودا په اصل كښې ماخوذ دې رشاء نه په معنى دَهغه رسئى دَ كوم په ذريعه چه اوبوته اورسى چونكه دَ رشوت په ذريعه انسان (عموماً) ناحق حاصلوى په دې وجه دې ته رشوت وئيلې شى. [7]

---

[1] عمدة القارى: ۱۳۸/۱۲.
[2] حواله مذكوره.
[3] فتح البارى: ٤/ ٤٥٤.
[4] فتح البارى ٤/ ۵۷۳وعمدة القارى:۱۳۹/۱۲.
[5] النهاية: ۷۵۸/۱.
[6] النهاية: ۶۵۶/۱ طلبة الطلبة ص:خ ۳۰۷.
[7] فتح البارى: ٤/ ۵۷۲ وأرشادالسارى: ۲۳۹/۵.

## د ابن سیرین رحمه الله نه د قسام د اجرت په سلسله کښې نقل شوې مختلف روایات او په هغې کښې تطبیق

یعنی ابن سیرین رحمه الله به د قسام د اجرت په سلسله کښې هیڅ بدیت نه ګڼړلو. اوعبدبن حمید رحمه الله په خپل تفسیرکښې دهغوی نه عدم جواز نقل کړې دې. دغه شان ابن ابی شیبه رحمه الله هم په خپل مصنف کښې دهغه نه کراهیت نقل کړې دې. دابن سعد رحمه الله د یو روایت سره په دې مذکوره روایاتوکښې تطبیق کیږی. هغه داسې چه په دې روایت کښې دی کان یکره ان یشارط القسام یعنی امام محمدابن سیرین رحمه الله د قسام اجرت هغه وخت مکروه ګڼړلو کله چه هغه په اشراط سره واخستلې شی اوکه بغیرد اشراط نه هغه قبول کړی نو په هغې کښې هیڅ حرج نشته.[۱]

**د قسام د اجرت په مسئله کښې اختلاف:-** دامسئله مختلف فیها ده. د امام مالك رحمه الله په نیزمکروه ده ځکه چه قسام ته به اجرت د بیت المال نه ملاویدلو نوهغوی دده دپاره نور اجرت اخستل مکره اوګرځول. علامه سحنون رحمه الله د بیت المال په امورکښې د فساد پیداکیدو د وجې نه داجائزګرځولی دی او د نورو ائمه حضراتو په نیز جائزدی.[۲]

[حدیث ۲۱۵۶][۳] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رضي الله عنه- قَالَ انْطَلَقَ نَفَرٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي سَفْرَةٍ سَافَرُوهَا حَتَّى نَزَلُوا عَلَى حَيٍّ مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ فَاسْتَضَافُوهُمْ، فَأَبَوْا أَنْ يُضَيِّفُوهُمْ، فَلُدِغَ سَيِّدُ ذَلِكَ الْحَيِّ، فَسَعَوْا لَهُ بِكُلِّ شَيْءٍ لاَ يَنْفَعُهُ شَيْءٌ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَوْ أَتَيْتُمْ هَؤُلاَءِ الرَّهْطَ الَّذِينَ نَزَلُوا لَعَلَّهُ أَنْ يَكُونَ عِنْدَ بَعْضِهِمْ شَيْءٌ، فَأَتَوْهُمْ، فَقَالُوا يَا أَيُّهَا الرَّهْطُ، إِنَّ سَيِّدَنَا لُدِغَ، وَسَعَيْنَا لَهُ بِكُلِّ شَيْءٍ لاَ يَنْفَعُهُ، فَهَلْ عِنْدَ أَحَدٍ مِنْكُمْ مِنْ شَيْءٍ فَقَالَ بَعْضُهُمْ نَعَمْ وَاللَّهِ إِنِّي لأَرْقِي، وَلَكِنْ وَاللَّهِ لَقَدِ اسْتَضَفْنَاكُمْ فَلَمْ تُضَيِّفُونَا، فَمَا أَنَا بِرَاقٍ لَكُمْ حَتَّى تَجْعَلُوا لَنَا جُعْلاً. فَصَالَحُوهُمْ عَلَى قَطِيعٍ مِنَ الْغَنَمِ، فَانْطَلَقَ يَتْفِلُ عَلَيْهِ وَيَقْرَأُ (الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) فَكَأَنَّمَا نُشِطَ مِنْ عِقَالٍ، فَانْطَلَقَ يَمْشِي وَمَا بِهِ قَلَبَةٌ، قَالَ فَأَوْفَوْهُمْ جُعْلَهُمُ الَّذِي صَالَحُوهُمْ عَلَيْهِ، فَقَالَ بَعْضُهُمُ اقْسِمُوا. فَقَالَ الَّذِي رَقَى لاَ تَفْعَلُوا، حَتَّى نَأْتِيَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَنَذْكُرَ لَهُ

---

[۱] فتح الباری: ۵۷۳/۴ وتغلیق التعلیق: ۲۷۵/۳.

[۲] فتح الباری ۵۷۳/۴ وتغلیق التعلیق: ۲۷۵/۳.

[۳] وأخرجه مسلم فی کتاب السلامباب جواز الاجرة علی الرقیة بالقرآن والاذکار رقم: ۴۰۸۰، ۴۰۸۱ ورالترمذی فی کتاب الطب عن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم رقم: ۱۹۸۹ وأبوداؤد فی کتاب البیوع رقم: ۲۹۶۵ وفی کتاب الطب رقم: ۳۴۰۱ وانظر فی جامع الاصول الفصل الثانی فی رقی مسنونة عن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم وأصحابه رقم: ۵۷۲.

الَّذِي كَانَ، فَنَنْظُرَ مَا يَأْمُرُنَا. فَقَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَذَكَرُوا لَهُ، فَقَالَ «وَمَا يُدْرِيكَ أَنَّهَا رُقْيَةٌ - ثُمَّ قَالَ - قَدْ أَصَبْتُمُ اقْسِمُوا وَاضْرِبُوا لِي مَعَكُمْ سَهْمًا». فَضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - . وَقَالَ شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو بِشْرٍ سَمِعْتُ أَبَا الْمُتَوَكِّلِ بِهَذَا.[۴۷۲۱، ۵۴۰۴، ۵۴۱۷]

**ترجمه**:- حضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه فرمائى د حضوراكرم صلى الله عليه وسلم يوڅوصحابه كرام رضي الله عنهم سفركښې وو. د سفردوران كښې د عربوپه يوه قبيله كښې دهغوى قيام اوشو. صحابه كرامو رضي الله عنهم غوښتل چه د قبيلې والا دهغوى ميلمستيا اوكړى خوهغوى انكاراوكړو. اتفاقى دَدغه قبيلې سردار مار اوچيچلو. قبيلې والا خپل ښه كوشش اوكړو خو سردار ته هيڅ فائده اونه شوه. دهغوى يوسړى اووئيل چه دې خلقو نه هم تپوس پكاردې چه دا مونږ سره نيزدې ئى ډيره اچولې ده. ممكن دى (چه د سردار د علاج) دپاره هغوى سره څه وى. د قبيلې والاهغوى له راغله اووئى وئيل چه رونړو زمونږ سردار مار خوړلې دې مونږ هرقسم كوشش اوكړو خوڅه فائده اونه شوه. تاسو سره څه څيزشته. يوصحابى اووئيل په خدائى چه زه ئى دم كړم خومونږ تاسو ته دَميلمستياوئيلى وو اوتاسو انكاركړې وو په دې وجه زه ئى هم اوس بغيرداجرت نه نه دم كوم. آخر د چيلو په يوه رمه باندې دهغوى معامله فيصله شوه. صحابى تشريف يوړو او الحمدلله رب العالمين اولوستله او په هغې باندې ئى دم كړو(داسې محسوس شوه) لكه چه چاترې رسئى راويستې وى او پاسيدو روان شو دتكليف نوم اونښه هم پاتې نه شوه. بيا هغوى مقررشوې اجرت صحابه كرامو له وركړو. چا په كښې وئيل چه دا تقسيم كړئى خوچه چادم كړې وو هغه وئيل د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې د حاضريدونه وړاندې په دې كښې هيڅ تصرف مه كوئى اول به مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې د دې ذكركوو دهغې نه پس به كتلې شى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم څه حكم وركوى (د دې دپاره چه دهغې مطابق عمل اوكړو) نو ټول حضرات د حضورپاك په خدمت كښې حاضرشو او هغوى ته ئى ددې ذكراوكړو. حضورپاك اوفرمائيل چه تاسو ته څنګه معلومه شوه چه دا سورت فاتحه تعويذ دې بيائى اوفرمائيل تاسو ټيك اوكړل. تاسو ئى تقسيم كړئى او ځان سره زما حصه هم مقرركړئى او نبى كريم صلى الله عليه وسلم مسكې شو.

## رجال الحديث

**ابوالنعمال**:- دا ابوالنعمال محمدبن فضل السدوسى رحمه الله دې.[1]

**ابوعوانه**:- دا ابوعوانه الوضاح بن عبدالله يشكرى رحمه الله دې.[2]

**ابوبشر**:- دا ابوبشرجعفربن إياس يشكرى رحمه الله دې.[3]

---

[1]) كشف البارى:۷٦۸/۲.

[2]) كشف البارى:٤٣٤/١.

[3]) كشف البارى:۷۱/۳.

**ابوسعید**:- دا ابوسعید، سعید بنمالك خدری رضی الله عنه دی.[1]
**ابوالمتوکل**:- دا علی بن داؤد ابن داؤد دی. دَدوی کنیت ابوالمتوکل الناجی القرشی البصری دی. بنی ناجیة بن سامة بن نوی بن غالب سره دَتعلق په وجه په ناجی سره یادیږی.
**اساتذه**:- دَحضرت جابر بن عبدالله، عبدالله بن عباس، ابوسعیدخدری، ابوهریره رضی الله عنه او ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها او ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه هم هغوی روایات نقل کړی دی.[2]
**تلامذه**:- دَدوی نه اسماعیل بن مسلم عبدی، بکربن عبدالله مزنی، ثابت بنانی، ابوبشر جعفر بن ابی وحشیه، خالد الحذاء، سلیمان بن علی ربعی، عاصم احول، علی بن زیدبن جدعان، قتاده، مثنی بن سعید صبعی ولیدبن مسلم غنبری وغیرهم رحمهم الله دَهغوی نه روایات نقل کوی.[3]
دَ احمدبن حنبل رحمه الله نه نقل دی چه زه په ابوالمتوکل کښې دَخیرنه علاوه بل څه نه پیژنم.[4]
حضرت ابوزرعه، علی بن مدینی، نسائی، یحیی بن معین رحمهم الله فرمائی ثقة.[5] ابن حبان هم په ثقات کښې دَهغوی ذکرکړې دې.[6] علامه ذهبی رحمه الله فرمائی أبوالمتوكل الناجي البصري، محدث، إمام.[7] علامه عجلی رحمه الله فرمائی تابعي، ثقة.[8]
بعض حضراتو ابوالمتوکل په صحابه کرامو کښې شمیرکړې دې. لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله دَهغوی سخت تردید کړې دې چه هغوی رحمه الله دَ تابعینو نه دې نه چه دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم نه.[9] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَهغوی انتقال ۱۰۸هجری کښې شوې دې.[10] اودَهغوی رحمه الله دَ وفات باره کښې دویم قول ۱۰۲هجری هم نقل کړې شوې دې.[11]
**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَ حدیث مبارك ترجمة الباب سره مناسبت **قوله: فانطلق يتفل عليه ويقرأ الحمدلله رب العالمين** نه واضح دې.[12]

---

[1]) کشف الباری:۸۲/۲.
[2])تهذیب الکمال: ۴۲۵/۲۰.
[3]) تهذیب الکمال: ۴۲۵/۲۰.
[4]) تهذیب الکمال: ۴۲۵/۲۰.
[5]) الجرح والتعدیل:۶/. رقم الترجمة: ۱۰۱۴.
[6]) المصدر السابق.
[7]) کتاب الثقات: ۱۶۱/۵ نقلاً عن تهذیب الکمال.
[8]) سیرأعلام النبلاء: ۸/۵.
[9]) الاصابة: ۴۸/۳.
[10]) تقریب التهذیب: ۶۹۴/۱.
[11]) من له روایة فی الکتب السنة: ۳۹/۲ تهذیب الکمال: ۳۲۹/۲.
[12]) عمدة القاری:۱۳۹/۱۲.

**قوله: قال شعبة:-** دا تعلیق امام بخاری رحمه الله کتاب الطب کښې موصولاً ذکرکړې دې.[1] علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام شعبه رحمه الله دا طریق دَتحدیث دَ صیغې سره امام ترمذی رحمه الله هم موصولاً ذکرکړې دې او امام بخاری رحمه الله هم په کتاب الطب کښې دا طریق نقل کړې دې لیکن عنعنة سره. بهرحال په دې سره اشاره اوشوه چه حدیث مذکور عنعنة وتحدیث دواړو طرق سره راغلې دې.[2]

## ۱۷- باب: ضریبة العبد، وتعاهد ضرائب الاماء

### دَ غلام په محصول او وینځو په محصولاتوباندې دَ خیال ساتلو بیان

**لغات:- ضریبة:** علامه ابن اثیر رحمه الله فرمائی: **مایؤدی العبد إلی سیده من الخراج المقرر علیه، وهی فعیلة بمعنی مفعولة وتجمع علی ضرائب.**[3] یعنی ضریبه هغه خراج اومحصول دې کوم چه آقا په خپل غلام باندې مقررکړی اوبیاغلام هغه اداکړی.

**دَ ترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری په عبدباندې دَ ضریبه لګولودَ جواز بیان ذکرکوی یعنی که چرې ستاسو غلام وی اوهغه ته تاسو دا اووئیل مثلاً ته دَ درزی په کارپوهیږې ته کپړې ګنډه او چه تاته څومره ګټه کیږی په هغې کښې دَ ورځې یا دَ هفتې یا دَ میاشتې دومره رقم مونږ ته راکوه. دَ هغې نه پس چه څه باقی پاتې شی په هغې کښې ستا اختیاردې. دَ ترجمة الباب دویم جزء دې **تعاهد ضرائب الاماء** یعنی په وینځوباندې چه کوم خراج اومحصولات مقرر کړې شی نودې خبرې خیال ساتل ډیر ضروری دی چه هغه وینځې دغه محصول په حرامه ذریعه سره ادانه کړی ځکه چه وینځې کمزورې اوضعیفې وی نوکیدی شی چه هغوی په جائزطریقه سره هغه رقم ورنه کړې شی کوم چه دَهغوی په ذمه لازم کړې شوې دې. او هغوی بیا په حرام کارکښې اخته شی اګرچه دا ګمان په عبیدکښې هم دې لیکن په اِماء کښې اغلب دې په دې وجه **تعاهد** لفظ امام بخاری رحمه الله **ضرائب الاماء** سره زیات کړو.[4]

**دَعلامه ابن منیر مالکی رحمه الله رائې:-** دَعلامه ابن منیرمالکی رحمه الله رائې ده چه تعاهد ضرائب اماء مسئله امام بخاری رحمه الله هم دې ضریبة العبد مسئلې سره دَ کوم چه په حدیث باب کښې ذکردې استنباط کړې ده. ځکه چه کله دَ غلامانو دَمحصول په سلسله کښې حضورپاک دَ تخفیف حکم ورکړې دې نودَ وینځو په سلسله کښې خودا نزاکت زیات وی اوهغه کمزورې اوضعیف هم وی. په دې وجه که په دغه وینځوباندې ضریبه زیاته مقررکړې شوه نودَهغوی په فسق اوفجورکښې دَ راګیریدو اندیښنه ډیره زیاته کیدې شی. نودغه شان امام بخاری رحمه الله په

[1] المصدرالسابق.
[2] فتح الباری: ۵/۵۷۷.
[3] النهایة: ۲/۷۵.
[4] ارشادالساری:۵/۲۴۳.

طریقه اولی تعاهد ضرائب اماء ثابته کړه. (۱)

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:-** حافظ صاحب فرمائي په اصل کښې امام بخاري رحمه الله دَ یو اثر طرف ته اشاره کړې ده کومه چه پخپله امام بخاري رحمه الله په خپل تاریخ کښې ابوداؤد احری رحمه الله په طریق سره نقل کړې ده هغه فرمائي چه حضرت حذیفه رضي الله عنه کله مدائن ته تشریف راوړو نوهغوی یوه خطبه ورکړه او په هغې کښې هغوی داهم اوفرمائیل تعاهد وضرائب إمائکم نوهم دَدې په رڼا کښې امام بخاري رحمه الله دا ترجمة الباب تعاهد ضرائب الاماء قایم کړو. (۲)

**دَ حضرت گنگوهي رحمه الله رائې:-** حضرت گنگوهي رحمه الله فرمائي په اصل کښې چه کوم دا ابواب دی دا دَ باب فی الباب دَ قبیل نه دی. وړاندې به یو باب راځي باب ماجاء في کسب البغي والاماء. هغه اصل باب دې او امام بخاري رحمه الله دا مسئله هلته په صراحت سره ثابته کړې ده په دې وجه دلته دَدې دَ ثبوت کوشش کول به دَ تکلف نه خالي نه وي او باب مذکور خو دَ باب فی الباب دَ قبیل نه دې او اصل باب وړاندې راځي اوهم دَهغې سره به دا ترجمه ثابتیږي او داسې به ثابتیږي چه کسب بغي رسول الله صلی الله علیه وسلم حرام ګرځولې دې ځکه چه بغي زانیه یعني زناکارې ته وئیلې شي او ښکاره خبره ده چه زنا اودَهغې اجرت حرام دې. نوکه په وینځو باندې ضرائب مقرر کړې شي نودَهغوی دَپاره به چرته جائزشي چه په حرامه طریقه دې ضریبه اوخراج حاصل کړي نوددې تعاهد اوخیال ساتل دَ موالي دَپاره ډیر زیات ضروري دی چه هغوی دې دَ دغه وینځو په ضرائب کښې تخفیف اوکړي او دومره اندازه کښې دې نه مقررکوي چه ناقابل تحمل شي او هغوی په حرام کار کښې اخته شي. (۳)

[حدیث ۲۱۵۷] (۴) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضي الله عنه - قَالَ حَجَمَ أَبُو طَيْبَةَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - ، فَأَمَرَ لَهُ بِصَاعٍ أَوْ صَاعَيْنِ مِنْ طَعَامٍ، وَكَلَّمَ مَوَالِيَهُ فَخَفَّفَ عَنْ غَلَّتِهِ أَوْ ضَرِيبَتِهِ. [ر: ۱۹۹۶]

**ترجمه:-** حضرت انس بن مالك رضي الله عنه فرمائي چه ابوطیبه رضي الله عنه دَ نبي کریم ښکر اولګولو نو حضور پاك هغه ته یو صاع یا دوه صاع غله دَ ورکولو حکم ورکړو اودَ هغه مالکانو سره ئې خبره اوکړه دَ کوم په نتیجه کښې چه ئې دَهغه خراج کم کړو.

---

[۱]) فتح الباري: ۵۷/٤.

[۲]) المصدر السابق.

[۳]) لامع الدراري: ۱۸۱/۵.

[٤]) وأخرجه البخاري أيضًا في كتاب البيوع باب ذكر الحجام رقم: ۲۱۰۲ وباب من أجرى أمر الامصار على مايتعارفون بينهم في البيوع الخ. رقم: ۲۲۱۵ وفي كتاب الاجارة. باب خراج الحجام رقم: ۲۲۷۸، ۲۲۷۹ ۲۲۸۰ وباب من كلم موالي العبدان يخففوا عنه من خراجه رقم: ۲۲۸۱ وفي كتاب الطب باب الحجامة من الداء رقم: ۵۶۹۶ واخرجه مسلم في كتاب المساقاة باب حل أجرة الحجام رقم: ۱۵۷۷ والامام مالك في موطئه. كتابا لاستئذان باب ماجاء في الحجامة واجرة الحجام وأبوداؤد في كتاب البيوع باب في كسب الحجام رقم: ۳۲۲٤ والترمذي في كتاب البيوع باب ماجاء في الرخصة في كسب الحجام رقم: ۱۲۷۸.

## رجال الحدیث

**محمدبن یوسف:**- دا محمدبن یوسف بیکندی رحمه الله دې.[1]
**سفیان:**- دا سفیان بن عیینه رحمه الله دې.[2]
**حمیدالطویل:**- داحمید الطویل ابوعبیده بصری رحمه الله دې.[3]
**انس بن مالک:**- حضرت انس بن مالک رضي الله عنه[4] تذکره تیره شوې ده.
**دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې.

# ۱۸- باب: خراج الحجام

### دَ حجام دَ اجرت بیان

**حل لغات:-حجم:** (من نصر) ښکر لګول، یعنی دَ ښکر په ذریعه خرابه وینه راښکل حجامه وحجام دَ ښکرلګولوپیشه حجام نئي. محجم: دَ لښکرلګولوځائی ج: محاجم، محجم دَ لښکر لګولو آله هغه څیز په کوم کښې چه بې کاره وینه جمع کیږي. ج: محاجم.[5]
**دَ ترجمة الباب مقصد:**- امام بخاری رحمه الله خو ترجمة الباب مطلق ذکرکړې دې لیکن دَ روایت باب نه معلومیږي چه امام صاحب هم جمهورو سره دې یعنی دَ حجام دپاره په حجامت مزدوری اخستل جائزدی.
**دَ علماؤ دَاختلاف بیان:**- جمهور علماء احناف مالکیه شافعیه، حضرت ابن عباس، عکرمه، قاسم، ابوجعفر محمد بن علی ربیعه اویحیی انصاری رحمهم الله وغیره مسلك هم دغه دې چه په حجامت باندې اجرت اخستل او دا استعمالول بغیردَ کراهت نه جائزدی. علامه ابن قدامه رحمه الله یوقول دَامام احمدبن حنبل رحمه الله نه دَ کراهت باره کښې هم نقل کړې دې چه عقداوشرط سره دَ حجامت اجرت مکروه دې. اوکه چرې بغیردَ عقداو شرط حجام ته څه ورکړې نوهغه به دې دَخپلو څاروو دَ کیا دَغلامانوپه خوراك اودغه شان نورو کارونوکښې استعمالولې شي. اوپخپله خوراك دَ هغه دَپاره بیا هم جائزنه دې. لکه که حجام غلام وی نودَهغه دَپاره اجرت په خپل ذاتې استعمال کښې راوستل جائزدی اوکه چرې آزاد وی نودهغه دَپاره مکروه دې. دغه شان دا دَ کراهت قول دَ حضرت عثمان رضي الله عنه حضرت ابوهریره رضي الله عنه او حسن رحمه الله او ابراهیم نخعی رحمه الله نه هم نقل کړې شوې دې.[6]

---

[1] کشف الباری:۳۸۷/۳.
[2] کشف الباری:۲۳۸/۱، ۱۰۲/۳.
[3] کشف الباری:۵۷۱/۲.
[4] کشف الباری: ٤/۲.
[5] المغرب:۱/ ۱۸۳٤.
[6] المغنی:۱۲۸۸/۱.

ددې حضراتو دليل دحضرت ابن مسعود ﷺ روايت دې کوم وخت چه هغوی د نبی کريم ﷺ نه د حجام د اجرت باره کښې سوال اوکړو نورسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو كسب الحجام خبيث د حجام اجرت خو حرام دې أطعمه ناضحك ورقيقك او تاسو دا اجرت خپلو اوښانو او غلامانو باندې خورئی. [1]

**د جمهورودلائل:-** د جمهورو علماؤ دلائل هغه ټول احاديث دی چه پخپله امام بخاری ﷫ او نورو اصحاب صحاح نقل کړی دی چه نبی کریم ﷺ پخپله هم ښکرلګولې دې او حجام ته ئی اجرت هم ورکړې. ددې نه معلومه شوه چه ښکر لګول او په هغې باندې اجرت اخستل جائزدی. که چرې دااجرت حرام وې نو حضوراکرم ﷺ به څنګه ورکولو. لکه چه پخپله په حديث باب کښې دحضرت ابن عباس ﷺ نه نقل دی چه رسول الله ﷺ ښکراولګولواو حجام ته ئی اجرت ورکړو اوکه چرې داسې کول مکروه وې نو حضورپاك به حجام ته اجرت نه ورکولو.

**اشكال اودهغې جواب:-** اوس پاتې شوه داخبره چه د کومو روايتونونه کراهت معلومیږی نوجمهور علماء دا په کراهت تنزيهی باندې محمول کوی. علامه مقدسی ﷫ فرمائی چه د نهی په روايات کښې د رسول الله ﷺ فرمان اطعمه رقیقك دا پخپله د حجام په اجرت د اباحت دلالت کوی څکه چه غلام هم بهرحال سړې دې او په هغه باندې هم هغه ټول محرم څيزونه حرام دی لکه څنګه چه په آزاد سړی باندې حرام دی. بلکه دې ته کسب خبيث وئيلوسره هم ددې حراموالې نه لازميږی څکه چه حضورپاك اوګې او پیاز ته هم خبيثين فرمائيلی سره ددې چه دا څيزونه مباح دی. نو حضورپاك د يوآزاد سړی دپاره دا پیشه ددې عمل د خساست او دناءت د وجه نه ناخوښه فرمائيلې ده. [2]

**دامام طحاوى ﷫ قول:-** امام طحاوی ﷫ فرمائی چه په کراهت باندې دلالت کونکی روايات منسوخ دی خود نسخ ددعوې دپاره د تاريخ تعيين ضروری دې اودلته تاريخ معلوم نه دې. [3]

[احاديث باب ۲۱۵۸/۲۱۵۹] [4] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-، وَأَعْطَى الْحَجَّامَ أَجْرَهُ.

**ترجمه:-** د حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه حضورپاك ښکرلګولې وو او ښکرلګونکی ته ئی ددې اجرت هم ورکړې وو.

---

[1]) اخرجه الامام مسلم فی صحيحه رقم الحديث: ۱۵۶۸.

[2]) المغنی:۱/۱۲۸۸.

[3]) فتح الباری: ٤/٥٧٩.

[4]) مرتخريجه فی الباب السابق.

## رجال الحديث

**موسىٰ بن اسماعيل:**- دا موسىٰ بن اسماعيل التميمى المنقرى ابوسلمه التبوذكى البصرى رحمه الله دي.[1]

**وهيب:**- دا وهيب بن خالد ابوبكر الباهلى البصرى رحمه الله دي.[2]

**ابن طاؤس:**- دا عبدالله بن طاؤس بن كيسان يمانى رحمه الله دي. دَ دوى تذكره كتاب الحيض، باب المرأة تحيض بعد الافاضة كښې تيره شوې ده.

**عن ابيه:**- دا طاؤس بن كيسان يمانى جندى حميرى رحمه الله دي. دَ دوى تذكره كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء الا من المخرجين الخ كښې تيره شوې ده.

**ابن عباس:**- دَ حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما تذكره تيره شوې ده.[3]

[حديث ۲۱۵۹] [4] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- وَأَعْطَى الْحَجَّامَ أَجْرَهُ، وَلَوْ عَلِمَ كَرَاهِيَةً لَمْ يُعْطِهِ.[ر: ۱۹۹۷]

**ترجمه:** دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه حضورپاك ښكرلګولې وو او ښكرلګونكى ته نى دَدې اجرت هم وركړې وو. كه چرې په دې كښې څه كراهت وې نوحضورپاك به اجرت نه وركولو.

## رجال الحديث

**مسدد:**- دا مسدد بن مسرهد اسدى بصرى رحمه الله دي.[5]

**يزيدبن زريع:**- دا يزيد بن زريع تميمى عيشى، ابومعاويه بصرى رحمه الله دي. دَدوى ذكرخير كتاب الوضوء باب غسل المنى وفركه الخ كښې تيرشوې دي.

**خالد:**- داخالد بن مهران الخداء رحمه الله دي.[6]

**عكرمة:**- داعكرمة مولى ابن عباس رحمه الله دي.[7]

---

[1] كشف البارى: ۴۳۳/۱.
[2] كشف البارى: ۱۱۸/۲.
[3] كشف البارى: ۴۳۵/۱.
[4] مر تخريجه فى الباب السابق.
[5] كشف البارى: ۴/۲، ۵۸۸/۴.
[6] كشف البارى: ۳۶۱/۳.
[7] كشف البارى: ۳۶۳/۳.

احدیث ۲۱٦٠ [۱] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا -رضی الله عنه- يَقُولُ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَحْتَجِمُ، وَلَمْ يَكُنْ يَظْلِمُ أَحَدًا أَجْرَهُ.

**ترجمه**:- حضرت انس بن مالک ﷺ فرمائی نبی کریم ﷺ ښکرلګولې وو اونبی کریم ﷺ دَ هیچا دَ اجرت په معامله کښې هیڅ قسم ظلم روا نه ساتلو (یعنی هم ددې وجې نه حضورپاك دَ ښکرلګولو اجرت هم پوره ورکړې وو)

## رجال الحدیث

**ابونعیم**:- دا ابونعیم فضل بن دکین رحمه الله دې. [۲]

**مشعر**:- دامشعر بن کدام بن ظهیر هلالی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره کتاب الوضوء باب الوضوء بالحد کښې تیره شوې ده.

**عمروبن عامر**:-دا عمرو بن عامر انصاری رحمه الله دې. دَ دوی تذکره کتاب الوضوء باب الوضوء من غیر حدث کښې تیره شوې ده.

**انس**:- دا مشهور صحابی حضرت انس بن مالک رضی الله عنه دې. [۳]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت**:- ددې مذکوره احادیثو ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضح دې.

## ۱۹-باب: من كلم موالي العبد أن يخففوا عنه من خراجه

### چا چه دَ یوغلام مالکانوسره دَ غلام په خراج کښې دَ کمی دپاره خبرې اوکړې

**دَ ترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری رحمه الله فرمائی چه که چا دَ غلام په ذمه خراج مقرر کړو اوهغه دا محسوس کړی چه زیات دې اودَهغې په پوره کولوکښې غلام ته سختی ده نوتاسو دَهغه مالك ته دَ تخفیف کولوسفارش کولې شئی. او یاد ساتئی چه دَ خراج مقدارخو زیات دې اوهغه غلام دَ دومره مقدار ورکولودپاره سعی اوکوشش کولې شی نوبیا به دا سفارش کول مستحب وی اوکه دَ خراج مقدار دومره زیات دې چه دَهغه دَ طاقت نه بهردې نو بیا دا سفارش کول لازم دی. [۴]

...

---

[۱] وأخرجه الامام مسلم في صحيحه كتاب السلام باب لكل داء دواء رقم: ۱۵۷۷ وأخرجه أصحاب السنة سوى البخاري ومسلم أيضًا ولكن بالفاظ مختلفة انظر جامع الاصول: ۵۴۳/۷ رقم: ۵٦۷۴.

[۲] كشف الباري: ٦٦۹/۲.

[۳] كشف الباري: ۴/۲.

[۴] عمدة القاري: ۱۴۵/۱۲.

[حديث باب ٢١٦١] (١) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضي الله عنه - قَالَ دَعَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - غُلاَمًا حَجَّامًا فَحَجَمَهُ، وَأَمَرَ لَهُ بِصَاعٍ أَوْ صَاعَيْنِ، أَوْ مُدٍّ أَوْ مُدَّيْنِ، وَكَلَّمَ فِيهِ فَخُفِّفَ مِنْ ضَرِيبَتِهِ. [ر: ١٩٩٦]

**ترجمه**:- دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ يو دَ ښكرلګولو والا غلام (ابوطيبه) راوغوښتلو هغه حضورپاك له ښكر اولګولو نو حضورپاك هغه ته يوصاع يا دوه صاع يا يومد يا دوه مد (راوى حديث شعبه ته شك وو) غله وركولوحكم وركړو او دَ هغه مالكانوسره ئى خبره اوكړه دَ كوم په نتيجه كښې چه دَ هغه خراج (محصول) كم كړو.

## رجال الحديث

**ادم**:- دا آدم بن ابى اياس رحمه الله دې. (٢)

**شعبة**:- داشعبة بن حجاج رحمه الله دې. (٣)

**حميدالطويل**:- داحميد بن ابى حميد الطويل رحمه الله دې. (٤)

**انس**:- اودَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه تذكره هم تيره شوې ده. (٥)

**دَحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَ حديث باب ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې.

## ٢٠ - باب: كسب البغي والاماء

وَقَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى (وَلاَ تُكْرِهُوا فَتَيَاتِكُمْ عَلَى الْبِغَاءِ إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِتَبْتَغُوا عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَمَنْ يُكْرِهُّنَّ فَإِنَّ اللَّهَ مِنْ بَعْدِ إِكْرَاهِهِنَّ غَفُورٌ رَحِيمٌ). {وَقَالَ مُجَاهِدٌ} (فَتَيَاتِكُمْ) إِمَاؤُكُمْ.

دَ زانيه او وينځې ګټه، ابراهيم نخعى رحمه الله دَ دې نوحه كونكوښځو او ګانې ويونكو ښځو اجرت ناخوښه ګڼرخولې وو اودالله تعالى دا ارشاد چه خپلې وينځې كله چه هغوى پاكدامنى هم غواړى دَ زناد پاره مه مجبوره كوئى دې دپاره چه تاسو دَ دنياد ژوند سامان وراورسوئى اوكه يوسړې هغوى مجبوره كوى نو الله تعالى په هغوى باندې جبركولونه پس (هغوى) معافى كونكې او په هغوى باندې رحم كونكې دې. اوامام مجاهد رحمه الله فرمائى دَ قرآن پاك آيت مبارك ﴿ فَتَيٰتِكُمْ ﴾ دَ امائكم په معنى كښې دې. يعنى ستاسو وينځې.

**حل لغات**:- **البغي**: يقال بغت المرأة تبغى بغيًا من ضرب، اذازنت (زناكول) فهى بغى اودَدې جمع بغايا

---

(١) مر تخريجه فى باب ضريبة العبد وتعاهد ضرائب الاماء.

(٢) كشف البارى:١/٦٧٨.

(٣) كشف البارى:١/٦٧٨.

(٤) كشف البارى:٢/٥٧١.

(٥) كشف البارى:٢/٤.

راځی. او اماء دا د امة جمع ده. [۱]
**د ترجمة الباب مقصد:** - امام بخاری رحمه الله بغی عام ذکرکړې دې که آزاده ښځه وی اوکه وینځه وی. دغه شان ئی امة هم عام ذکرکړې دې که زناکاره وی اوکه پاکه ښځه وی او په صراحت سره ئی ددې حکم نه دې بیان کړې ددې خبرې طرف ته تنبیه کولوسره چه د زنا پیشه خومطلقاً دهرچاد پاره ممنوع ده. باقی د وینځودپاره د فسق اوفجور په ذریعه کسب کول خو یقیناً حرام دی او نور حلال ذرائع استعمالول سره کسب کول جائزدی. [۲]
دحضرت ابراهیم نخعی رحمه الله دا تعلیق علامه ابن ابی شیبه رحمه الله حدثنا سفیان عن أبی هاشم عن ابراهیم په سندسره موصولاً ذکرکړې دې. [۳]
**تشریح:** - ښکاره خبره ده چه د بغی یعنی زنا اجرت حرام دې ځکه چه زنا حرام ده نودغه شان نوحه کول او تغنی یعنی ګانه وئیل هم حرام دی. نود نائحة او مغنیه اجرت هم حرام شو.
**شان نزول:** - د جاهلیت په زمانه کښې به بعض خلقو په خپلو وینځوباندې کسب کولو. عبدالله بن ابی رئیس المنافقین سره ډیرې وینځې وې په کوموسره چه به ئی بدکاری کوله او رقم به ئی حاصلولو. په هغوی کښې بعض مسلمانانې شوې نو د دې خراب کارنه ئی انکاراوکړو په دې به هغه ملعون دوی وهلې ټکولې. دا آیت هم په دغه قصه کښې نازل کړې او هم ددې شان نزول رعایت سره د نور تقبیح او شناعت دپاره ﴿إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا﴾ (که چرې هغوی بچ کیدل غواړی) او ﴿لِتَبْتَغُوا عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ (چه تاسو ګټل غواړئی د دنیاد ژوندون اسباب) قیدونه زیات کړی دی. ګنی په وینځوسره بدکارئی کول حرام دی اودغه شان چه کومه ګټه اوکړی هغه ټول حرام دی. که وینځې داکار په رضااو رغبت سره کوی اوکه په زبردستئی او ناخوښئی سره ئی کوی. او داخبره ده که چرته وینځې نه غواړی اومالك ئی صرف د دنیاوی فائدې دپاره په زبردستئی مجبوره کوی نود نور ډیرزیات وبال او سپکوالی او بې شرمئی دلیل دې. [۴]

**قوله: (وقال مجاهد رحمه الله تعالى: فتياتكم اى امائكم)**- دامام مجاهد رحمه الله دا قول امام طبری رحمه الله او عبدبن حمید رحمه الله د ابن ابی نجیح عن مجاهد رحمه الله په طریق سره نقل کړې دې. [۵]

---

۱) عمدة القاری: ۱۴۶/۱۴.
۲) عمدة القاری: ۱۴۶/۱۲ وفتح الباری: ۴۶۰/۴.
۳)المغرب: ۸۰/۱ وعمدة القاری:۱۴۶/۱۲.
۴) تفسیرعثمانی النور:۳۳.
۵) إرشادالساری:۴۴۶/۵.

احدیث باب ۲۱۶۲] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَمَهْرِ الْبَغِيِّ وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ [ر: ۲۱۲۲]

**ترجمه**:- حضرت ابومسعودانصاری ﷺ بیان کوی چه رسول ﷺ دَ سپی قیمت دَ زناکارې ښځې دَ زنا اجرت اودَ کاهن دَ اجرت نه منع فرمائیلې وه.

## رجال الحدیث

**قتیبة**:- دا قتیبه بن سعید ثقفی رحمه الله دی. (۲)

**مالک**:- دا امام مالك بن انس رحمه الله دی. (۳)

**ابن شهاب**:- دا ابن شهاب زهری رحمه الله دی. (۴)

**ابوبکر بن عبدالرحمن**:- دا ابوبکربن عبدالرحمن بن حارث بن هشام رحمه الله دی. دَدوی تذکره **کتاب أبواب الاذان، باب التکبیر إذاقام من السجود** کښې تیره شوې ده.

**ابومسعود**:- اودَ حضرت ابو مسعود انصاری رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده. (۵)

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت **قوله: ومهرالبغی** سره واضح دی. دا حدیث **کتاب البیوع باب ثمن الکلب** کښې هم تیر شوې دی.

[حدیث باب ۲۱۶۳] (۶) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ كَسْبِ الإِمَاءِ. [ر: ۵۰۳۳]

**ترجمه**: حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی حضورپاك ﷺ دَ وینځودَ (ناجائز) گټې نه منع فرمائیلې ده.

---

(۱) أخرجه البخاری أيضًا فی البيوع باب ثمن الكلب وفی الطلاق باب مهر البغی والنكاح الفاسد. و فی الطب باب الكهانة. وأخرجه مسلم فی المساقاة باب تحريم ثمن الكلب رقم: ۳۹۸۵، ۳۹۸۶ ومالک فی مؤطئة فی البيوع باب ماجاء فی ثمن الكلب رقم: ۱۲۷۶ والنسائی فی البيوع باب بيع الكلب.

(۲) كشف الباری: ۱۸۹/۲.

(۳) كشف الباری: ۸۰/۲.

(۴) كشف الباری: ۳۲۶/۱.

(۵) كشف الباری: ۷۴۸/۲.

(۶) أخرجه البخاری أيضًا فی فی الطلاق باب مهر البغی والنكاح الفاسد. وأبوداؤد فی البيوع باب كسب الاماء رقم: ۳۴۲۵ وانظر جامع الاصول: ۵۸۷/۱۰.

## رجال الحديث

**مسلم بن إبراهيم:-** دامسلم بن ابراهيم فراهيدی رحمه الله دی.[1]
**شعبة:-** دا شعبه بن الحجاج رحمه الله دی.[2]
**محمد بن جحادة:-** دامحمد بن جحادة اودی کوفی ایامی رحمه الله دی.
**اساتذه:-** دوی دَ ابان بن ابی عیاش، اسماعیل بن رجاء، انس بن مالك، ابوالجوزاء، اوس بن عبدالله ربعی، حضرت جحاده، حسن بصری، رجاء بن حیوه، سلمه بن کهیل، سلیمان الاعمش، هماك بن حرب، عطابن ابی رباح، عطیه عوفی، عمرو بن دینار عمروبن شعیب، قتادة، منصوربن معتمر اونافع مولی عمر رضی الله عنه نه ئی علم حاصل کړې دې.[3]
**تلامذه:-** دَهغوی نه دَ هغوی خوئی اسماعیل بن محمد بن جحادة، اسرائیل بن یونس، زیاد بن خیثمه، داؤد بن زبرقان، زهیربن معاویه، زیدبن ابی انیسه، سفیان ثوری، سفیان بن عیینه، شعبة بن حجاج، مسعربن کدام وغیرهم رحمهم الله روایات نقل کړی دی.[4]
احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی محمد بن جحادة من الثقات.[5] ابوحاتم رحمه الله فرمائی ثقة صدوق.[6]
امام نسائی رحمه الله فرمائی ثقة.[7] ابن حبان رحمه الله دَهغوی ذکر ثقات کښې کړې دې. یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ثقة.[8]
**أبوحازم:-** دا ابوحازم سلمان اشجعی رحمه الله دې.[9]
**ابوهریره:-** اودَحضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره وړاندې تیره شوې ده.[10]
**دَ حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې.

# ۲۱- باب: عسب الفحل

### د نرپه جفتې باندې اجرت

**حل اللغات:-** عسب: **يقال عسب الفحل الناقة من ضرب يعسبها عسباً،** دَ نرمادې سره جفتې کول.[11]

---

[1] کشف الباری: ۲/۴۵۵.
[2] کشف الباری: ۱/۶۷۸.
[3] تهذیب الکمال: ۲۴/۵۷۶ – ۵۷۸.
[4] العلل ومعرفة الرجال: ۱/۲۴۸ بحواله حاشية تهذيب الکمال.
[5] کتاب الجرح والتعدیل: ۷/، الترجمة: ۱۲۲۷ (ایضاً)
[6] تهذیب الکمال: ۲۵/۵۷۸.
[7] کتاب الثقات: ۷/۴۰۴.
[8] نقلاً عن حاشية تهذيب الكمال: ۲۴/۵۷۷.
[9] کشف الباری: ۴/۱۰۱.
[10] کشف الباری: ۱/۶۵۹.
[11] المغرب: ۱/۶۱.

**د ترجمة الباب مقصد:**- عسب الفحل نه مراد هغه كرايه ده چه د نر په جفتي باندې اخستې شي. بعض حضرات وائى چه د نر د جفتي عمل ته وئيلې شي او بعض حضرات فرمائى چه د جفتي نه كومې اوبه خارج كيږى هغې ته عسب وائى.[1]

د امام بخارى رحمه الله د دې باب نه مقصد دادې كه د چا نرخاروى ته واخلې او خپل ماده خاروې په دې سره حامله كړې نو د دې پيسې اخستل جائزنه دى. حرام دى.[2] امام بخارى رحمه الله سره د دې چه په ترجمه كښې د حكم طرف ته اشاره نه ده كړې ليكن روايت چونكه د حرمت د بيان دې په دې وجه معلومه شوه چه امام صاحب رحمه الله هم دا جائزنه گنړى.

**د فقهاء كرامو اختلاف:**- ائمه ثلاثه يعنى امام ابوحنيفه امام شافعى او امام احمد بن حنبل رحمهم الله فرمائى چه دا ناجائزدى. امام مالك رحمه الله فرمائى چه كه دا معلومه وى چه هغه نر به خپلې مادې سره دومره ځل جفتې كوى مثلاً ځلور ځل يا اته ځل نو داسې كول جائزدى او په دې باندې اجرت اخستې شي.[3] يعنى چه كله عمل منفعت او مدت معلوم او متعين وى نو د اجارې په نورو منافع باندې قياس كولوسره دا هم جائزدى.

**د جمهورواستدلال:**- جمهوردحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د دې روايت نه استدلال كوى چه حضورپاك د عسب الفحل نه منع فرمائيلې ده.

اول خودا معلوميدل ډير معتذر دى چه څومره نزوات به وى بله داخبره هم نه ده معلومه چه اوبه به خارج كيږى كه نه. دريمه خبره داهم معلومه نه ده چه هغه اوبه به محل ته رسى كه نه. په داسې صورت كښې چه هرڅيزمجهول دې نو بيا د دې قيمت څنگه اخستې شى.[4]

**د جمهورو نور دلائل:**- عن ابى هريرة رضى الله تعالى عنه قال نهى رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم عن ثمن الكلب وعسب الفحل.[5] يعنى رسول الله ﷺ د سپى قيمت او د نرجفتي باندې اجرت اخستلو نه منع فرمائيلې ده.

عن على رضى الله تعالى عنه أن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم نهى عن كل ذى مخلب من الطير وعن ثمن الميتة وعن لحم الحمر الاهلية وعن مهر البغى وعن عسب الفحل وعن ميائر الارجوان.[6] يعنى رسول الله ﷺ د هر پنجو والا مرغنى د مردارې قيمت ساتلى شوى خرو غوښه، د زناكارې ښځې گټه، د نر په جفتي باندې اجرت او د ارجوان نه جوړې شوو گديانو نه منع فرمائيلې ده.

---

[1] إرشادالسارى:۲٤٧/٥.
[2] فتح البارى: ٥٨٢/٤.
[3] بدية المجتهدونهاية المقتصد: ١٣٩/٥.
[4] شرح صحيح البخارى لابن بطال: ٤١٢/٦وإرشادالسارى: ۲٤٧/٥ والمغنى لابن قدامة المقدسى: ١٢٩٣/١.
[5] أخرجه النسائى كتاب البيوع باب ضراب الجمل: ٣١١/٧ وأخرجه أحمد: ٢٩٩/٢، ٥٠٠.
[6] أخرجه الهيثمى فى مجمع الزوائد: ٩٠/٤ وقال الهيثمى: رواه عبدالله بن احمد ورجاله ثقات

**په عسب الفحل باندې کرامة څه ورکول جائزدي**:- البته کرامة څه ورکول جائز دي مثلاً څوک خپله اسپه د چا په ښکلي او اصيل والااس باندې جفتي کولوډپاره راولي اوبيا هغه ته کرامة څه ورکړي د کوم چه څه مقدار متعين نه وي نو داسې کول جائزدي (۱)

ددې دپاره د حضرت انس بن مالك ﷺ روايت دې چه د قبيله بني کلاب يوسړی د رسول الله ﷺ نه دعسب الفحل باره کښې تپوس اوکړو نو حضورپاك منع کړو. هغه اووئيل چه زمونږ خائي کښې داسې صورت وی چه مونږ خپل څاروی بل ته ورکړو دهغوی د اوښو او اسپو د حامله کولودپاره ددې نه پس هغه د کرامت په توګه مونږ ته څه راکوی نو حضورپاك اوفرمائيل په دې کښې څه مضائقه نشته (۲)

[حديث ۲۱۶۴] (۳) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحَكَمِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضى الله عنهما- قَالَ نَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ.

**ترجمه**:- حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائي چه حضورپاك د نر په جفتي باندې اجرت اخستلونه منع فرمائيلې ده.

## رجال الحديث

**مسدد**:- دامسدد بن مسرهد ﷫ دی. (۴)

**عبدالوارث**:- داعبدالوارث بن سعيد ﷫ دې. (۵)

**اسماعيل بن ابراهيم**:- دا اسماعيل بن ابراهيم ابن عليه ﷫ دی. (۶)

**على بن حكم بنانى**: د دوی ﷫ کنيت ابوالحکم دې او هغوی ﷫ د بصرې اوسيدونکی دی. (۷)

**اساتذه**:- د ابراهيم نخعى، حضرت انس بن مالك، ضحاك بن مزاحم، عبدالله بن ابى مليكه، عبدالملك بن عمير، ضحاك بن يقظان، عطاء بن ابى رباح، عمرو بن شعيب، ميمون بن مهران، نافع مولى ابن عمر او ابوعثمان نهدى وغيرهم رحمهم الله نه دوی ﷫ روايات نقل کړی دی. (۸)

---

(۱) المغنى لابن قدامة: ۱/۱۲۹۳.

(۲) أخرجه الترمذى فى كتاب البيوع باب ماجاء فى كراهية عسب الفحل رقم الحديث: ۳/۲۷٤. ۱۷۳ والنسائى كتاب البيوع باب ضراب الفحل: ۷/۳۱۰.

(۳) أخرجه احمد: ۲/۱٤ وأبوداؤد فى كتاب البيوع والاجارات باب فى عسب الفحل رقم الحديث: ۳٤۲۹ والترمذى فى كتاب البيوع باب ماجاء فى كراهية عسب الفحل رقم الحديث: ۱۲۷۳.

(۴) كشف البارى: ۲/۲، ٤/۵۸۸.

(۵) كشف البارى: ۳/۳۵۸.

(۶) كشف البارى: ۲/۱۲.

(۷) تهذيب الكمال: ۲۰/٤۱٤.

(۸) المصدر السابق.

**تلامذه:** - دوی رحمه الله نه اسماعیل بن علیه، جریر بن حازم، جعفر بن سلیمان صبعی، حمادبن زید، حمادبن سلمه، سعیدبن زید، سعیدبن ابی عروبه، شعبه بن حجاج، عبدالوارث بن سعید، علی بن فضل، عماره بن زاذان، معمر بن راشد، هشام بن حسان او هشام الدستوائی وغیرهم رحمهم الله روایات نقل کوی.[1]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی **لیس به باس.**[2] ابوحاتم رحمه الله فرمائی **لاباس به صالح الحدیث.**[3] ابوداؤد او نسائی فرمائی ثقة.[4] ابن حبان رحمه الله د هغوی ذکر په ثقات کښې کړې دې.[5] محمدبن سعد رحمه الله فرمائی علی بن حکم بنانی د کره خلقو نه دې او ثقه دې.[6] دوری رحمه الله فرمائی لم یذکره یحیی رحمه الله تعالی إلا بخیر.[7] ابن شاهین رحمه الله فرمائی ثقة.[8] او بزاز او ابن نمیر هم د هغوی توثیق کړې دې.[9]

**وفات:** - د هغوی رحمه الله انتقال ۱۳۱هجری کښې شوې.[10]

**نافع:** - دا نافع مولی ابن عمر رضی الله عنهما دې.[11]

**عبدالله بن عمر:** - او د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما تذکره تیره شوې ده.[12]

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت:** - د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت ډیر زیات واضح دې.

## ۲۲ – باب: إذا استأجر أرضا فمات أحدهما

وَقَالَ ابْنُ سِيرِينَ لَيْسَ لأَهْلِهِ أَنْ يُخْرِجُوهُ إِلَى تَمَامِ الأَجَلِ. وَقَالَ الْحَكَمُ وَالْحَسَنُ وَإِيَاسُ بْنُ مُعَاوِيَةَ تُمْضَى الإِجَارَةُ إِلَى أَجَلِهَا. وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ أَعْطَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - خَيْبَرَ بِالشَّطْرِ، فَكَانَ ذَلِكَ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ خِلاَفَةِ عُمَرَ، وَلَمْ يُذْكَرْ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ جَدَّدَا الإِجَارَةَ بَعْدَ مَا قُبِضَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم

---

[1]) المصدر السابق.
[2]) تهذیب الکمال: ٤١٤/٢٠.
[3]) المصدر السابق.
[4]) المصدر السابق.
[5]) المصدر السابق.
[6]) طبقات ابن سعد: ٢٥٦/٧.
[7]) التاریخ للدوری: ٤١٦/٢ بحواله حاشیة تهذیب الکمال: ٤١٤/٢٠.
[8]) ثقات لابن شاهین الترجمة: ٧٦١ بحواله حاشیة تهذیب الکمال: ٤١٥/٢٠.
[9]) حاشیة تهذیب الکمال: ٤١٤/٢٠.
[10]) تهذیب الکمال: ٤١٤/٢٠.
[11]) کشف الباري: ٦٥١/٤.
[12]) کشف الباري: ٦٣٧/١.

یوسړی دچانه زمکه په اجاره واخستله بیا د فریقینونه یوکس وفات شو. امام ابن سیرین رحمه الله فرمائی چه دمتعین مودې پورې د مړی د وارثانودپاره دا جائزنه دی چه مستاجر بې دخل کړی. امام حسن حکم حسن او ایاس بن معاویه رحمهم الله فرمائی چه اجاره به د خپل مقررمودې پورې قایم وی. او عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائی حضورپاك د خیبر اجاره نیم په نیمه باندې یهودیانوته ورکړې وه بیا هم دغه اجاره حضورپاك د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د زمانې پورې باقی اوساتله اود حضرت عمر رضی الله عنه دخلافت د شروع وخت پورې هم اوچرته دا ذکر نشته چه حضرت ابوبکر اوحضرت عمر رضی الله عنه د حضورپاك د وفات نه پس نوې اجاره کړې وی.

**د ترجمة الباب مقصد اود فقهاؤ اختلاف:-** امام بخاری رحمه الله دا ښائی چه د احد المتعاقدین د وفات کیدو د وجې نه عقد اجاره فسخ کیږی یاباقی پاتې کیږی.[1]

جمهورعلماء امام مالك امام شافعی امام احمدبن حنبل، اسحاق، ابوثور او ابن المنذر رحمهم الله فرمائی که چرته احد المتعاقدین فوت شی نو دهغې په وجه باندې په عقداجاره باندې هیڅ فرق نه پریوځی او باقی وی. خو حضرات احناف سفیان ثوری رحمه الله ابولیث رحمه الله فرمائی چه په داسې صورت کښې عقداجاره فسخ کیږی.[2]

امام بخاری رحمه الله د حدیث باب په ذریعه د جمهورو تائیدکوی اود خیبرد یهودیانو معامله وړاندې کوی چه حضورپاك ﷺ د خیبریهودیانوسره دمزارعت معامله کړې وه. د رسول الله ﷺ د وفات نه پس هم هغه اجاره په ځائی وه. حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه به هم دهغوی نه نیمه حصه د پیداوار وصول کوله بیا حضرت عمرفاروق رضی الله عنه هم ترکومې چه هغوی جلاوطن کړې شوې نه وو ترهغه وخته پورې ئې د پیداوار نیمه حصه وصول کوله. ددې نه معلومه شوه چه د احد المتعاقدین د فوت کیدو د وجې نه عقداجاره نه فسخ کیږی.

**د احنافود طرف نه جمهورو ته جواب:-** د احنافود طرف نه جمهورو ته مختلف جوابونه ورکړې شوی دی:

① احدالمتعاقدین د فوت کیدو د وجې نه چه کله اجاره فسخ کیږی کله چه متعاقد دخپل ځان دپاره عقدکړې وی. حضوراکرم ﷺ خو امام المسلمین وو اوحضورپاك دمسلمانانود طرف نه هغه عقد اجاره کړې وه. په دې وجه دحضور پاك د وفات نه پس هم هغه اجاره ختمه نه شوه ځکه چه مسلمانان خو موجود وو.[3]

حاصل کلام داشوکه چرې موجر یا مستاجر نه څوك مړه شی اوعقد اجاره هغوی دخپل ځان دپاره کړې وی نو د احنافو په نیزبه اجاره فسخ شی. د موجر د مرګ په صورت کښې به ځکه فسخ کیږی چه دهغه دمرګ نه پس هغه څیز د هغه د وارثانو ملکیت شو او که مستاجر د دغه څیز نه منفعت حاصلوی نود غیرد څیزنه به فائده حاصلول لازم شی اودا ممنوع دی.

---

[1] عمدة القاری:۱۲/ ۱۵۰.

[2] المغنی لابن قدامة: ۱/ ۱۲۵۹ وبدایة المجتهد: ۵/ ۱۵۱.

[3] إعلاء السنن: ۱٦/ ٤۱۵.

دَ مستاجر دَ انتقال په صورت کښې به څکه فسخ کیږی چه په دې صورت کښې دَ ملك غیرنه کوم چه دَ مستاجر دَ ورثه دې به دَ اجرت اداکول لازم راشی اوداهم جائزنه دی. او داخبره ده چه که عقد اجاره دَ بل چادپاره منعقد کړې شوې وی نودَ احدالمتعاقدین دَمرګ په صورت کښې به دا اجاره نه فسخ کیږی لکه چه بیان اوشو. [1]

۲ دویم جواب دا ورکړې شوې دې هغه اجاره چرته وه خراج مقاسمه وو حضورپاك ﷺ دَ خیبر یهودو سره جنګ اوکړو دَ جنګ نه پس هغه ټوله زمکه دَمسلمانانو شوه. دَ مسلمانانوکیدونه پس په هغه زمکه باندې کافران آباد کړې شو اوپه هغوی باندې لازم کړې شو چه تاسو به دومره خراج پیش کوئی اودَحضورپاك دَ وصال نه پس هغه خراج ساقط نه شو. [2]

۳ دریم جواب دا هم ورکړې شو چه دَحضوراکرم نه پس حضرت ابوبکر ﷺ عملاً دَهغې عقد تجدید کړې وو دا ده چه قولاً ئې نه ووکړې په دې وجه ئې هغه زمکه هغوی سره پریخوده چه هغوی ئې دَهغه ځایه خارج نه کړل. دغه شان حضرت عمر ﷺ هم هغه په ځائې ساتلوسره تجدید اوکړو او تجدیدکه قولاً وی نو هم صحیح دې او که فعلاً او عملاً وی نو هم هغه معتبر وی نو په دې وجه هغه اجاره فسخ نه شوه. لکه څنګه چه دَ دَحضرت عبدالله بن عمر ﷺ راتلونکې تعلیق کښې دا خبره هم محتمل ده.

دَ امام محمدبن سیرین ﷫دا قول امام ابوبکر بن ابی شیبه په خپل مصنف کښې ایوب عن ابن سیرین په طریق سره موصولاً ذکرکړې دې.[3] اودَدې تعلیق نه دَ امام بخاری ﷫ منشاء داده چه احدالمتعاقدین کښې دَ چادَ انتقال نه پس دَ مرکیدونکی خپلوانوته به داحق حاصل نه وی چه هغه فریق آخر کوم چه ژوندې دې دَ اجارې دَ مودې دَ پوره کیدو نه وړاندې دَ اجارې نه خارج اوګرځوی یعنی اجاره به هم هغه شان باقی وی. دا اقوال هم امام ابوبکر بن ابی شیبه ﷫ په خپل مصنف کښې موصولاً نقل کړی دی. [4]

حضرت ابن عمر ﷺ فرمائی نبی کریم ﷺ دَ خیبر زمکه (یهودیانوته) په نیم پیداوار باندې ورکړې وه. دا معامله دَ حضورپاك په زمانه کښې هم وه او دَ ابوبکر ﷺ په زمانه کښې هم اودَ حضرت عمر ﷺ دَ زمانې په شروع کښې هم. او داهیچانه دی بیان کړی چه حضرت ابوبکر او عمر ﷺ دَ نبی کریم ﷺ دَ وفات نه پس دَحضورپاك عقداجاره دَ معاملې تجدید کړې وی.

امام بخاری ﷫ دا تعلیق هم په دې باب کښې جویریة بن اسماء عن نافع په طریق سره مسنداً ذکرکړې دې. دَاحنافو دَ طرف نه دَدې جوابات هم په دې باب کښې تیرشو.

---

[1] هدیة شرح بنایة ......: ۲۳۰/۶.
[2] عمدة القاری: ۱۵۲/۱۲.
[3] فتح الباری: ٥٨٤/٤.
[4] المصدرالسابق.

[حدیث ۲۱۶۵] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ أَسْمَاءَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنه - قَالَ أَعْطَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - خَيْبَرَ أَنْ يَعْمَلُوهَا وَيَزْرَعُوهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا، وَأَنَّ ابْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ أَنَّ الْمَزَارِعَ كَانَتْ تُكْرَى عَلَى شَىْءٍ سَمَّاهُ نَافِعٌ لاَ أَحْفَظُهُ. وَأَنَّ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ حَدَّثَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى عَنْ كِرَاءِ الْمَزَارِعِ. وَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ حَتَّى أَجْلاَهُمْ عُمَرُ. [۲۲۰۳، ۲۲۰۴، ۲۳۶۶، ۲۵۷۱، ۴۰۰۲]

**ترجمه**:- حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی رسول الله ﷺ (دَ خیبر یهودیانوته) دَ خیبر زمکې ورکړې وې چه په دې کښې بنه په محنت سره کرونده کوئی او دَ پیداوار نیمه پخپله اخلئی او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دَ حضرت نافع رحمه الله نه دا هم بیان کړی وو چه زمکه به دَ څه عوض په اخستلوسره په اجاره ورکولې شوه او نافع رحمه الله دَ دغه عوض تعیین هم کړې وو خو ماته (جویریه بنت اسماء) یاد پاتې نه شو.

## رجال الحدیث

**موسی بن اسماعیل**:- داموسیٰ بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دې. (۲)

**جریر بن اسماء**:- دا جویریة بن اسماء بن عبید بصری رحمه الله ده. (۳)

**نافع**:- دا نافع مولی ابن عمر رضی الله عنهما دې. (۴)

**عبدالله**:- اودحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما تذکره تیره شوې ده. (۵)

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت په ظاهره **قوله: اعطی النبی صلی الله تعالی علیه وسلم خیبر بالشطر الخ** سره دې.

**دَعلامه عینی رحمه الله اشکال**:- علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دې حدیث سره دَترجمة الباب اثبات نه شی کیدې ځکه چه دَ خیبر په یهودیانو باندې دَ زمکې دَ پیداوار نه حصه مقرر کول دَ مزارعت

---

[۱] واخرجه البخاری أیضًا فی المزارعة باب المزارعة بالشطر ونحوه وباب إذا لم یشترط السنین فی المزارة وباب المزارعة مع الیهود وفی الشرکة باب مشارکة الذمی والمشرکین فی المزارعة وفی الشروط باب الشروط فی المعاملة وفی المغازی باب معاملة النبی صلی الله تعالی علیه وسلم أهل خیبر وأخرجه مسلم فی المساقاة باب المساقاة والمعاملة بجزء من التمر والزرع رقم: ۱۵۵۱ وابوداؤد فی الخراج باب ماجاء فی حکم أرض خیبر رقم: ۳۰۰۸ واخرجه ابن ماجة مختصر افی الرهون باب معاملة التحیل والکرم رقم: ۲۴۶۷.

[۲] کشف الباری: ۴۷۷/۳.

[۳] کشف الباری کتاب الغسل باب الجنب یتوضاثم ینام.

[۴] کشف الباری: ۶۵۱/۴.

[۵] کشف الباری: ۶۳۷/۱.

اومساقاة دَ قبیل نه نه وه بلکه دَ خراج اومقاسمه په توګه وه. دَ کوم تفصیل چه تیرشو.(۱)

**قوله: وأن رافع بن خدیج حدث الخ:**(۲)- اول حدثه اووئیلې شو دَ ضمیر اثبات سره او اوس ضمیرحذف کولوسره حدث اوفرمایه دې دپاره چه تنبیه اوشی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حضر نافع ته بالخصوص حدیث بیان کړې وو په خلاف دَ حضرت رافع.(۳) حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه بیان کوی چه نبی کریم ﷺ په زمکه کښې دَعقد اجاره نه منع کړې وه.

**قوله: وقال عبیدالله عن نافع عن ابن عمر:**- دا عبدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن خطاب رحمه الله دې.(۴)اودَحضرت نافع او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما تذکرې هم په دې باب کښې تیرې شوې.(۵)

**قوله: عن ابن عمر حتیٰ اجلاهم عمر:**- یعنی حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی (چه دَ خیبر یهودیانوسره دهغه ځائی دَ زمکو معامله روانه وه) تردې چه حضرت عمر رضی الله عنه هغوی جلاوطن کړل. دا تعلیق امام مسلم رحمه الله موصولاً بیان کړې دې.(۶)

بسم الله الرحمن الرحیم

# ۴۳- کتاب الحوالات

حواله دَتحویل نه ماخوذ ده اودَدې لغوی معنی نقل کول ده اودَ شریعت په اصطلاحی کښې حواله وائی نقل الدین من ذمة إلى ذمة یعنی دَقرض داری دَ قرض اداکولو ذمه واری دَ بل چاطرف ته منتقل کول.(۷)

**دَحواله شرعی حیثیت:**- حواله کول شرعًا اوعقلاً جائز ده. دَمذکوره کتاب احادیث دَدې په شرعی ثبوت باندې دلالت کوی. اوعقلی دلیل دادې چه محتال علیه په خپل ځان باندې یوداسې ځیز لازم کوی دَ کوم په حواله کولوباندې چه هغه قدرت لری اودَ داسې ځیز التزام دَ کومې په حواله کولوچه قدرت وی صحیح دې. ځکه چه دَ کفاله په شان حواله هم صحیح کیږی.(۸)

---

(۱) عمدة القاری: ۱۵۲/۱۲ – ۱۵۳.

(۲) کشف الباری کتاب مواقیت الصلاة باب وقت المغرب.

(۳) إرشاد الساری: ۲۴۹/۵.

(۴) کشف الباری کتاب الوضوء باب التبرز فی البیوت.

(۵) صحیح المسلم کتاب المساقاة باب المساقاة ومعاملة بجزء من الثمر والزرع رقم: ۳۹۳۶ – ۳۹۴۴.

(۶) ایضاً.

(۷) طلبة الطلبه ص: ۲۸۹.

(۸) هدایة شرح بدایة المبتدی: ۳۲۸/۵.

اویاد ساتنی چه حواله به صرف په دیون کښې صحیح وی ځکه چه د حواله معنی د نقل اوتحویل ده اودا نقل اوتحویل په دیون کښې خو ممکن دې لیکن په اعیان کښې ممکن نه دې ځکه چه دین غیرمتعین وی لهذا دا محتال علیه هم اداکولې شی. خو عین متعین وی نودا هم هغه سرې اداکولې شی چاسره چه هغه عین موجود وی. نومعلومه شوه چه د دیون حواله کول خو جائزدی مګر د اعیان حواله جائزنه ده. ([1])

دلته یو څوالفاظ د غور قابل دی. په مسائلو باندې پوهیدل پهدې باندې موقوف دی. اکثر وختونو کښې په دې کښې ګډوډوالی د وجې نه سړې په مسائلو نه پوهیږی. ① محتال به یا محال به دین ته وائی. ② محیل مدیون ته وائی ③ محتال دائن ته. ④ محتال علیه یا محال علیه چه دا حواله قبوله کړی یعنی د چاپه ذمه چه د دې دین ادائیګی کړې شوې ده. ([2])

## ۱- باب: فی الحوالة، وهل یرجع فی الحوالة

وَقَالَ الْحَسَنُ وَقَتَادَةُ إِذَا كَانَ يَوْمَ أَحَالَ عَلَيْهِ مَلِيًّا جَازَ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَتَخَارَجُ الشَّرِيكَانِ وَأَهْلُ الْمِيرَاثِ، فَيَأْخُذُ هَذَا عَيْنًا وَهَذَا دَيْنًا، فَإِنْ تَوِيَ لِأَحَدِهِمَا لَمْ يَرْجِعْ عَلَى صَاحِبِهِ.

**د حواله مسائل:**- آیا په حواله کښې محتال (دائن) محیل (مدیون) طرف ته رجوع کولې شی اوحسن بصری او قتاده رحمهما الله فرمائی چه کله د چا طرف ته دین منتقل کیدلو نوکه هغه وخت هغه خوشحال وو نوجائزدی (یعنی حواله پوره شوه او رجوع جائزنه ده او که چرې مفلس وی نوجائزده). ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه شرکاء یا اهل میراث په داسې توګه صلح کړی چه څه خلق دې نقد مال واخلی او څه خلق قرض نو (د دې تقسیم نه پس) که چرته د دواړو شریکوالونه د یوحصه هلاك شی نو د هغه دویم نه ئی وصول کولې نه شی.

**د ترجمة الباب مقصد:**- د ترجمة الباب مقصد دادې چه آیا د حواله کیدونه پس محتال (دائن) محیل (مدیون) طرف ته رجوع کولې شی که نه؟ امام بخاری رحمه الله په دې کښې هیڅ فیصله نه ده کړې ځکه چه په دې مسئله کښې د فقهاؤ اختلاف دې. ([3])

**د فقهاؤ د اختلاف بیان:**- ① امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه محتال ته په محیل باندې د رجوع کولوحق په دوو صورتونو کښې دې. رومبې صورت دادې چه محتال علیه مفلس مړشی او دویم صورت دا چه د حواله انکاراوکړی او قاضی له لاړشی قسم اوخوری. هم دغه مسلك د امام ابویوسف امام محمد شریح نخعی شعبی اوعثمان العتبی وغیره رحمهم الله هم دی. ([4])

---

[1]) المصدرالسابق.

[2]) طلبة الطلبه ص: ۲۸۹ وفیه قال الامام النسفی رحمه الله ولا یقال المحتال له. لانه لا حاجة إلى هذه الصلة وإن كان يتكلم به المتفقهة والمغرب: ۲۳۵/۱ وفیه قال صاحب المغرب: وقول الفقهاء للمحال (المحتال له)لغوٌ لا حاجة إلى هذه الصلة.

[3]) عمدة القاری:۱۲/ ۱۵٤.

[4]) بداية المجتهد: ٥/ ٢٩٤ الهداية شرح بداية المبتدی: ٥/ ٣٣٠ فتح الباری: ٤/ ٥٨٦ عمدة القاری:۱۲/ ۱٥٤.

اود دې حضراتو دلیل دادې چه دَ حواله دَ وجې نه دَ محیل برئ الذمه کیدل دَ محتال دحق دَ سلامتیاسره مقیددی ځکه چه دَ حواله هم دغه مقصوددې چه دَ محتال حق صحیح اوسالم محفوظ شی نوچه کله دا شرط یعني دَ محتال دَ حق سلامتیا مفقودشی نوحواله فسخ شوه او دَ محتال حق په محیل باندې راواپس شو اوچه کله دَ محتال حق په محیل باندې راواپس شو نومحتال ته دَ هغې دَ رجوع حق هم حاصل شو. لکه چه دَ مبیع صحیح اوسالم کیدل په بیع کښې مشروط وی سره ددې چه په لفظونو کښې ذکرنه وی مثلاً یوسړی یوڅیزواخستو اود قبض نه وړاندې هغه هلاك شو نوعقد به فسخ کیږی اودَ مشتری حق به په ثمن کښې واپس کیږی. ([1])

② حضرات صاحبین رحمهما الله فرمائی چه دریم صورت هم دې چه حاکم دَ محتال علیه دَ افلاس حکم ورکړی اوهغه مهجورعلیه اوګرځوی چه اوس تاته دَ هیڅ تصرف اختیارنشته. ([2])

③ امام شافعی امام احمد، عبید، لیث او ابوثور رحمهم الله فرمائی چه دَ حواله کولونه پس محتال ته په محیل باندې دَ رجوع کولوحق نشته که محتال علیه مفلس اوګرځی اوکه مړشی اویادَ حواله نه دَ انکارکولوسره قسم اوخوری. ([3])

دَ دې حضراتو دلیل دادې چه دَ محیل برئ الذمه کیدل مطلقًا ثابت دی او په دې کښې دا قسم هیڅ قیدنشته چه که دَ محتال حق هلاك شی نومحیل به نه برئ الذمه کیږی. بهرحال چه کله دَ محیل برئ کیدل مطلقًا ثابت دی نوپه هیڅ صورت کښې په محیل به قرضه نه واپس کیږی. ([4])

④ امام مالك رحمه الله اودَ یوروایت مطابق امام احمد رحمه الله فرمائی چه کتلې به شی په کومه ورځ چه حواله شوې وه هغه ورځ محتال علیه غني وو که فقیر. که چرې غنی وو نومحتال ته دَ محیل طرف ته دَ رجوع کولوحق نشته اوکه چرې فقیر وو اومحیل دخپل علم باوجود محتال ته اونه خودل نو په دې صورت کښې به لکه چه هغه محتال ته دهوکه ورکړه، لهذا محتال ته به داحق حاصل وی چه هغه په محیل باندې رجوع اوکړی.

⑤ امام حسن رحمه الله، امام زفر رحمه الله او دَ یوقول مطابق امام شریح رحمه الله فرمائی چه حواله دَ کفاله په شان ده لهذا محتال ته اختیاردې که هغه غواړی نو محتال علیه مطالبه کولې شی اوکه غواړی نودَ محیل نه دې مطالبه اوکړی. دَ محتال دَ رجوع حق محیل ته نه ساقط کیږی. ([5])

**دَ امام بخاری رحمه الله اختیار:-** اوس سوال دا پیداکیږی چه امام بخاری رحمه الله په دې پنځو مذهبونو کښې کوم اختیاره وی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی امام بخاری رحمه الله کفاله دَ کتاب الحواله په ضمن کښې ذکرکړې ده او په کفالت کښې مکفوله ته حق حاصل وی چه که غواړی نودَ کفیل نه دې مطالبه اوکړی اوکه غواړی نودَ مکفول عنه نه. لهذا معلومه شوه چه دَ امام بخاری رحمه الله

---

[1]) الهدایة شرح بدایة المبتدی: ۵/۳۳۰ – ۳۳۱.

[2]) المصدرالسابق.

[3]) المصدرالسابق.

[4]) المصدرالسابق.

[5]) بدایة المجتهد: ۲۹۴/۵ فتح الباری: ۵۸۶/۴عمدة القاری:۱۵۴/۱۲ وإرشادالساری:۲۵۱/۵.

په نیز په حواله کښې هم دغه صورت وی یعنی هغه دَ مذهب خامس طرف ته مائل دې او محتال ته اختیاردې چه که غواړی نو محتال علیه نه دې مطالبه اوکړی اوکه غواړی نودَ محیل نه دې مطالبه اوکړی.[1]

لیکن داخبره هم کولې شی چه امام بخاری رحمه الله دلته څلورم مذهب یعنی دَ امام ملک رحمه الله اودَ یوقول مطابق دَ امام احمد رحمه الله مذهب ئې اختیارکړې دې. ځکه چه هغه نقل کړی دی (قال الحسن وقتادة إذاکان یوم احال علیه ملیًا جاز) یعنی چه محتال علیه په کومه ورځ حواله کړې شوې دې که چرې مالدار وو نودا حواله صحیح ده اوکه هغه چرې مالدارنه وو بلکه فقیروو اومحیل دهوکه ورکولوسره محتال هغه پسې اولګولو نوبیابه دا حواله ټیک نه وی. لهذا دَ امام بخاری رحمه الله دَحضرت حسن رحمه الله اوقتاده رحمه الله دا اثر پیش کول په دې خبره باندې دال دې چه هغه دَ مذهب رابع طرف ته مائل دې.[2]

**قوله: وقال ابن عباس رضی الله تعالی عنهما یتخارج الشریکان الخ.**

**لغة: تخارج،** خروج نه دې لاس رابنکل او پریخودو ته وائی. دَ شریعت په اصطلاح کښې **مصالحة الورثة علی إخراج بعض منهم بشئ معین من الترکة** ته تخارج وئیلې شی.[3] یعنی ټول ورثه (یا شرکاء) متفق شی یووارث (یاشریك) ته څه مال ورکړی اودَ میراث نه ئې اوباسی.

نو دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ قول مطابق شرکت کښې دَ تخارج توضیح داده چه مثلاً دَ چاڅپل یوشریکوال سره په کاروبارکښې پنځوس زره روپئې لګیدلی دی په هغې کښې پنځه ویش زره دَ سامان او نقدو په صورت کښې دی او پنځه ویش زره قرض دی. اوس دا شریك دغه شرکت پریږدی نو ښکاره خبره ده چه هغه کله کاروبار پریږدی نو مال به تقسیمیږی. یو اووئیل چه دا قرض به زه وصول کړم دَ ده دا لالچ وی چه دا نقدې اوکیښ به ملاؤشی او بل سامان واخستلو چه په قرض څه یقین دې دا سامان اوس نقدملاویږی دا به تخارج وی. اوس دا اوشو چه کوم کس سامان اخستې وو هغه پاتې شو په مزوکښې اوکوم چه دَ قرض وصول کولو ذمه واری اوچته کړې وه هغه ته په پنځه ویشتو کښې صرف پنځلس زره وصول شو لس زره ډوبې شوې. اوس که هغه دا وائی چه ماته خو صرف پنځلس وصول شوی دی اوتادَ پنځه ویشتو زرو سامان اخستې دې نوته اوس دا تقسیم کړه چه دواړه برابرشی. نودې داسې نه شی وئیلې اوددې نه برعکس هم کیدې شی چه هغه ته دغه قرضه ټول په ټوله ملاؤشوه اوچاچه سامان او نقدې اخستې وې دَ شپې غل راغلو ټول سامان ئې یوړو نودَ شلو زرو ټول سامان لاړو. نقدې صرف پنځه زره بچ پاتې شوې. اوې دې وینا شروع کړی چه ماله خو لاس ته صرف پنځه زره راغلې باقی شل خو په غلا کښې لاړې. لهذا اوس ته خپلې پنځه ویش زره تقسیم

[1] فتح الباری: ۴/۵۸۶.
[2] فتح الباری: ۴/۵۸۶.
[3] التعریفات للجرجانی ص:۴۶.

کړه او خپلې اوزما پیسې برابرکړه نودې داسې مطالبه نه شی کولې
**دَاهل میراث دَ تخارج تشریح:-** دغه شان تخارج دَ اهل میراث هم وی مثلاً پلار مړشو دَهغه دوه خامن دی او دَ مال متروکه بعینه هم دغه سابقه ترتیب دې چه هغه پنځوس زره پریخې دی پنځه ویش زره عین او پنځه ویش زره دین دې عین یو واخستو او دین بل واخستو بیا دَ دغه تخارج نه پس په هغوی کښې دَ یوکس حصه هلاکه شوه نوهغه خپل شریك ته داسې نه شی وئیلې چه ته خپل مال دوباره تقسیم کړه چه زه او ته دواړه برابرشو.
**حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ تعلیق مقصد:-** حضرت امام بخاری رحمه الله دَ ابن عباس رضی الله عنهما اثر امام ابوحنیفه رحمه الله اودَ صاحبینو رحمهما الله دَ تردیددپاره پیش کړې دې خکه چه امام صاحب رحمه الله او صاحبین رحمهما الله دا فرمائی چه دَ حواله کولونه پس محتال ته دَ محیل طرف ته رجوع کولوحق حاصل نه دې بغیردَ یوخوصورتونونه چه په هغې کښې رجوع کولې شی. امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه کله محتال اول راضی شوې وو چه زه به دَ محتال علیه نه خپلې پیسې وصول کوم نوکه اوس هغه ضائع کیږی نوضائع دې شی لکه څنګه چه هلته په تخارج کښې دَ یوکس حصه ضائع شوې لکه چه امام بخاری رحمه الله حواله مسئله په تخارج باندې قیاس کړې ده.[1]
**دَ تعلیقات تفصیل:-** حضرات حسن اوقتاده رحمهما الله اقوال، اثرم رحمه الله او علامه ابن ابی شیبه رحمه الله په خپل سنن اومصنف کښې نقل کړی دی.[2] او دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اثر علامه ابن ابی شیبه رحمه الله په خپل مصنف کښې **حدثنا ابن عیینه عن عمرو بن دینار عن عطاء** په طریق سره ذکرکړی دی.[3]

[حدیث ۲۱۶۶] [4] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضی الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - قَالَ « مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ، فَإِذَا أُتْبِعَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيٍّ فَلْيَتْبَعْ ». [۲۱۶۷، ۲۲۷۰]

**ترجمه:-** نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دَ مالداردَ طرف نه دَ قرض په ادا کولوکښې تیل تال کول ظلم دې اوچه دَ چا قرض چامالدارته حواله کړې شی نوهغه قبلول پکاردی.

---

[1] عمدة القاری:۱۲/۱۵۵ فتح الباری: ۴/۵۸۶.
[2] فتح الباری:۴/۵۸۶ عمدة القاری: ۱۲/۱۵۴.
[3] فتح الباری:۴/۵۸۶.
[4] وأخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب المساقاة باب تحریم مطل الغنی: ۳۹۷۸ حدیث رقم: ۲۹۲۴ والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم والنسائی فی کتاب البیوع حدیث رقم: ۴۲۰۹، ۴۶۱۲ وأبوداؤد فی کتاب البیوع باب فی المطل، حدیث رقم:۲۹۰۳. وأحمد فی مسنده حدیث رقم: ۷۰۳۴، ۷۲۲۶ ۷۸۲۸.

## رجال الحدیث

**عبدالله بن یوسف:**- داعبدالله بن یوسف تنیسی رحمه الله دي.[1]
**مالک:**- امام معروف امام مالک رحمه الله دي.[2]
**ابوالزناد:**- دا عبدالله بن ذکوان ابی الزناد رحمه الله دي.[3]
**اعرج:**- دا اعرج عبدالرحمن بن هرمز رحمه الله دي.[4]
**ابوهریره:**- اود حضرت ابوهریره رضي الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[5]

**حل اللغات:**- **مطل:** من نصر مطل الحبل مطلاً، رسئی اوږدول. مطل الحدید اوسپنه غزول اوډدې نه المطل بالدین ماخوذ دي. یعنی دَ چاحق اداکولو کښې تیل ټال کول. **یقال مطله رماطله بحقه.**[6]
**أتبع:** باب افعال نه ماضی مجهول صیغه ده. **یقال أتبع فلان بفلان** دَ فلانکی حواله په فلانکی باندې کړې شوه.
**تبیع:** په چاباندې چه ستامال وی.[7]
**فلیتبع:** سمع نه دَامر صیغه ده مطیع او حکم منونکې کیدل، شاته تلل، بعض حضرات دا په تشدید دَ تاء دَ باب افتعال نه لولی **وقال صاحب الصحاح: وکذلك اتبعتهم وهو افتعلت.**[8]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:**- دَ حدیث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت **قوله (فاذا أتبع احدکم الخ)** سره واضح دې.[9]

**قوله: (فلیتبع)**:- دَ جمهور علماؤ په نیز دلته صیغه دَامر دَ استحباب دَپاره ده.[10] یعنی حضور پاك ﷺ دائن ته ترغیب ورکوی چه که څوك غنی دَ یومدیون دَطرف نه حواله قبلوی نو دغه دائن له هم منل پکاردی. او اکثر حنابله ابوثور ابن جریر او داؤد طیالیسی رحمهم الله په نیز امر وجوبی دې اودَ بعض حضراتو په نیز دا امراری شادی دې یعنی دَ مشورې په توګه حضورپاك فرمائیلی خودا قول شاذ دې.[11]

---

[1]) کشف الباری: ۱۱۳/٤.
[2]) کشف الباری: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲.
[3]) کشف الباری: ۱۰/۲.
[4]) کشف الباری: ۱۱/۲.
[5]) کشف الباری: ۶۵۹/۱.
[6]) الصحاح ص: ۹۹۳.
[7]) الصحاح ص: ۱۷٤..
[8]) المصدرالسابق.
[9]) عمدة القاری: ۱۵۵/۱۲.
[10]) فتح الباری: ۵۸۷/٤.
[11]) عمدة القاری: ۱۵۶/۱۲ فتح الباری: ۵۸۷/٤.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه مطل الغنی ظلم هغه ټولو خلقوته شامل دې په کومو چه څه حق لازم وی اوهغه دَ دې په ادا کولو کښې ټيل ټال نه کاراخلی لکه دَ ښځې حق په خاوندباندې اودَ غلام حق په آقاباندې اودَ رعايا حق په حاکم باندې اودغه شان برعکس.(۱)

## ۲-باب: أذاأحاك علی ملی فليس له رد

څوک چه يومالدار باندې حواله کړې شی نوهغه ردکول جائزنه دی او څوک چه يوغنی باندې حواله کړی نوحواله دې قبلوی. مطلب دا چه کله په تاباندې دَ چا قرض وی او تاهغه يو مالدار سړی ته حواله کړو اوهغه ستا دَ طرف نه دَ ضامن هم جوړشو بيادَهغې نه پس که ته مفلس شوې نوهغه له پکاردی چه هغه دې دَ حوالې والا سړې نه دَخپل قرض دَ غوښتلو مطالبه اوکړی اودَهغه نه دې واخلی.

**تنبيه:-** داباب دَ صحيح بخاری دَ نسخو نه صرف دَعلامه فربری رحمه الله په نسخه کښې دې.(۲)

**دَترجمة الباب مقصد:-** دلته امام بخاری رحمه الله دا فرمائی چه کله مديون دائن يومالدار سړی ته حواله کړو اوس دائن ته هيڅ حق نشته چه هغه داحواله ردکړی. دغه شان دغه غنی له هم پکاردی چه هغه داحواله قبوله کړی.

**دَعلماؤ دَاختلاف بيان:-** لکه چه تيرشو په حواله کښې درې کسان وی ①محال ②محتال ③محتال عليه يا محال عليه. سوال دادې چه دَ حوالې دَپاره دَدې دريواړو رضامندی شرط دې. دَ احنافو په نيز دَ دريواړو رضامندی ضروری ده او دليل ئې دادې چه قرضه دَمحتال حق دې اوداقرضه په حواله سره منتقل کيږی ليکن دَخلقو په ذمو کښې ډير تفاوت کيږی. بعض خلق بامروت اوپه معاملاتو کښې ښه کهره وی او دَدې برعکس بعض خلق دَ ټيل ټال کونکی او دَنه ورکونکی قسم په شان وی. نوکه دَمحتال رضامندی مشروط نه وی نو اکثر محتال په ضرر اونقصان کښې اخته کيدې شی. په دې طريقه که چرته محتال عليه يوداسې سړې مقررکړی چه بدکردار او نه ورکونکې وی په داسې صورت کښې دَ محتال دَپاره خپله قرضه وصول کول ډير متعذر او ګران شی نوهم دَدې وجې نه دَ محتال رضامندی شرط کړې شوه.(۳)

اودَ محتال عليه رضامندی ځکه ضروری ده چه دَ حواله مطلب دَ محيل دَ طرف نه په محتال عليه باندې قرض لازم کول دی. او لزوم بغيردَ التزام نه نه شی کيدې. ګنی هرسړې به دَ بل په ذمه باندې چه څه غواړی لګولې شی. دَدې دَ پاره په محتال عليه باندې دَ قرضې لازم کولودَپاره ضروری دی چه هغه پخپله دا په خپل ځان باندې لازم کړی اوچه کله محتال عليه په خپل ځان باندې لازم کړه نومعلومه شوه چه دَ محتال رضامندی اوشوه. لهذا دې سره دا معلومه شوه چه محتال عليه باندې دَ قرضې لازم کولودَپاره دَهغه رضامندی هم مشروط ده.

---

(۱) فتح الباری: ۵۸۸/٤.

(۲) إرشاد الساری: ۲٥٤/٥ وعمدة القاری: ۱۵۷/۱۲.

(۳) الهداية شرح بداية المبتدی: ۳۲۸/٥.

(۱) اوپاتې شوه محيل نو په قدورى او عام متون كښې خو هم داسې دى چه د حواله د صحيح كولو د پاره د محيل رضامندى هم مشروط ده (۲) ليكن امام محمد بن حسن الشيبانى رحمه الله په زيادات كښې فرمائى چه حواله د محيل د رضامندئى نه بغير هم صحيح ده.

مالكيه وائى چه محيل او د محال رضامندى ضرورى ده او د محتال عليه رضامندى هغه وخت ضرورى ده چه كله په محتال او محتال عليه كښې دښمنى وى. شوافع حضرات فرمائى چه د محيل محال رضا خو شرط دې او د محتال عليه د رضامندئى باره كښې د حضرات شوافع دوه اقوال دى: يو قول دادې چه د ده رضا هم شرط دې او د دويم قول مطابق شرط نه دې. حنابله وائى د محيل رضا ضرورى ده د محال او محال عليه ضامندى ضرورى نه ده (۳)

د ترجمة الباب د اطلاق نه په ظاهره د امام بخارى رحمه الله مسلك هم دغه معلوميږى او داهم احتمال دې چه د امام بخارى په نيزچه د محتال رضا شرط نه وى د محيل او محال عليه رضا شرط وى څكه چه هغه فرمائى **إذا حال على ملى فليس له رد** يعنى محتال ته د رد كولو حق نشته نولكه د محتال رضا هغه خارج كړځوى. وړاندې فرمائى **من اتبع على ملى فليتبع** د دې مطلب هم دغه دې چه كوم سړې يو مالدار ته حواله كړې شو نو هغه له پكاردى چه د هغه مالدار كور ته لاړشى او د هغه نه دې قرض او غواړى هغه ته د چان چو كولو هيڅ حق نشته.

**قوله: معناه إذا كان لاحد عليك شئ الخ:-** يعنى په تا د چا قرض دې تا دا قرضه په يو مالدار باندې حواله كړه او دا مالدار دا ضمانت وركړى چه ستا قرضه به هغه اداكړى تر دې خائى خو خبره ټيك ده. دې نه پس وړاندې وائى چه **فان أفلست** كه چرې ته مفلس شې نو ته خو د وړاندې نه مفلس وې په دې وجه خو دې قرض نه وركولو او خپل قرض دې بل ته حواله كړې وو. خبره خو داسې كيدل پكاردى چه هغه محتال عليه مفلس شى غرض دا چه دلته دا عبارت **فان أفلست الخ** مهمل او بې كاره دې او هم دغه وجه ده چه په مصرى نسخو كښې دا عبارت نشته. او نه د حافظ ابن حجر رحمه الله په نسخه كښې شته اونه د علامه عينى قسطلانى كرمانى او سندهى رحمهم الله په نسخو كښې شته. (۴)

**د علامه انور شاه كشميرى رحمه الله قول:-** حضرت شاه صاحب فرمائى چه د افلاس محيل هيڅ مطلب نشته په فقه كښې د دې جزئيات خو موجود دى چه محتال عليه كه چرته مفلس شى نو څه به كيږى ليكن دا جزئيات چه كه محيل مفلس شى د فقه په كتابونو كښې ذكر نشته. (۵)

---

(۱) المصدر السابق.

(۲) المصدر السابق.

(۳) بداية المجتهد: ۲۹۲/۵ ولامع الدرارى: ۱۹۳/۶ – ۱۹۴.

(۴) فتح البارى: ۵۸۸/٤ إرشاد السارى: ۲۵۳/۵ عمدة القارى: ۱۵۷/۱۲ وشرح الكرمانى: ۱۱۷/۱۰.

(۵) فيض البارى: ۲۸۱/۳.

**د حضرت ګنګوهی رحمه الله اوحضرت شیخ الحدیث رحمه الله قول:**- حضرت ګنګوهی رحمه الله او حضرت شیخ الحدیث رحمه الله ددې قول یوحکمت بیان کړې دې چه محتال علیه پسې شاته لګیدل اوهغه نه مطالبه کول هغه وخت ده کله چه محیل مفلس وی او که محیل مفلس نه وی نو په دغه صورت کښې محتال ته اختیاردې چه غواړی نودمحیل نه دې مطالبه اوکړی او که غواړی نو دمحتال علیه نه دې مطالبه اوکړی. دابله خبره ده چه د احنافو مسلك بل دې خوددې عبارت مفهوم هم دا راوځی اوښکاره خبره ده چه دا به په هغه صورت کښې وی چه د امام بخاری رحمه الله مسلك د رجوع باره کښې هغه وی کوم چه خامس مذهب دې. حافظ ابن حجر رحمه الله بیان کړې وو چه څنګه مکفول ته کفیل او مکفول عنه دواړوته د رجوع کولوحق وی دغه شان په حواله کښې محتال اومحتال علیه او محیل دواړو نه د مطالبې حق شته. (۱) اوکه چرې دا اووئیلې شی چه د امام بخاری مسلك د رجوع باره کښې څلورم مذهب دې کوم چه د امام مالك رحمه الله وو نو بیا به دحضرت شیخ رحمه الله تقریر په دې باندې نه منطبق کیږی.

[حدیث ۲۱۶۷](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ ذَكْوَانَ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ، وَمَنْ أُتْبِعَ عَلَى مَلِيٍّ فَلْيَتَّبِعْ». [ر: ۲۱۶۶]

**ترجمه:**- رسول الله ﷺ فرمائی چه د مالدارد طرف نه په قرض اداکولوکښې ټال ټیل کول ظلم دې اوچه د چاقرض یو مالدار ته حواله کړې شی نوهغه قبلول پکاردی.

## رجال الحدیث

**محمدبن یوسف:**- دامحمدبن یوسف بیکندی رحمه الله دې. (۳)

**سفیان:**- دا سفیان ثوری رحمه الله دې. (۴)

**ابن ذکوان:**- داعبدالله بن ذکوان رحمه الله دې. (۵)

**اعرج:**- دا عبدالرحمن بن هرمز اعرج رحمه الله دې. (۶)

**ابوهریره:**- اودحضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده. (۷)

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:**- دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت **قوله: من اتبع علی ملی فلیتبع** سره واضح دې.

---

۱) لامع الدراری: ۱۷۹/۶.

۲) مرتخریجه فی الباب السابق.

۳) کشف الباری:۳۸۷/۳.

۴) کشف الباری:۲۷۸/۲.

۵) کشف الباری:۱۰/۲.

۶) کشف الباری:۱۱/۲.

۷) کشف الباری:۶۵۹/۱.

# ۳-باب: إن أحال دين الميت على رجل جاز

## كه د يومړي قرض د يوژوندي سړي طرف ته منتقل كړې شي (حواله كړې شي) نوجائزدى

**دترجمة الباب مقصد** - تراوسه پورې خو حواله دداسې مديون طرف ته كيدله كوم چه ژوندې وو ليكن چه يوسړې مړ شو او د هغه د قرض حواله په چاباندې كولې شي نو دا هم جائزده.

**اشكال** - په دې كښې دا اشكال كيږى چه ددې تعلق خو حواله سره دې نه ځكه چه دمړى د قرض وركولو ذمه وارى چه څوك اخلى نوهغه خو به كفيل وى هغه ته محتال عليه څنګه وئيلې شى؟

**د علامه ابن بطال رحمه الله جواب:** - شارح بخارى علامه ابن بطال رحمه الله ددې دا جواب وركړې دې چه په اصل كښې امام بخارى رحمه الله كفاله د حواله په ضمن كښې ذكركوى ځكه چه په دواړو كښې يوقدر مشترك دې چه مطالبه د يوسړى نه د بل سړى په ذمه كيږى ددې مناسبت په وجه امام بخارى رحمه الله دامسئله سره ددې چه كفاله سره متعلق ده دلته په حواله سره تعبيركړې ده. [۱] باقى پاتې شوه داخبره چه د مړى د قرض كفالت او ضمانت جائزدې كه نه، دامختلف فيها مسئله ده.

**دعلماؤد اختلاف بيان:** - جمهورعلماء يعنى ابن ابى يعلى رحمه الله امام محمد رحمه الله امام ابويوسف رحمه الله امام شافعى رحمه الله قول دادې چه داسې كفالت جائزدې او بيا دا د مړى د مال نه د رجوع كولوهيڅ حق نشته ځكه چه هغه په خپل دې ضمان كښې متبرع اومتطوع دې. او **ولا رجوع فى التبرعات** د امام مالك رحمه الله نه يوروايت دادې كه چرې هغه اووائى چه زه ضامن يم دې دپاره چه زه روستو دمړى مال ته رجوع اوكړم نو هغه ته د رجوع كولو حق حاصل دې. خوكه د مړى څه مال نه وى اوضامن ته ددې علم هم وى نوبيا به دهغه د رجوع حق نه وى. امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى كه چرې مړى د ضمان په اندازه مال پريخودې دې نودهغه د طرف نه به ضمان صحيح وى اوكه چرې هغه مال نه وى پريخودې نو ضمان به صحيح نه وى. [۲]

**د امام ابوحنيفه رحمه الله په مسلك باندې اعتراض اودهغې جواب:** - دلته دا اشكال پيداكيږى چه په حديث باب كښې خو موجود دى چه داسې ضمانت كول صحيح دى نوددې جواب به د احنافو دطرف نه داوى چه حديث په تبرع باندې محمول دې په كفاله كښې چه كوم لزوم وى هغه دلته مراد نه دې. بعض حضرات مثلاً ابن المنذر رحمه الله وغيره فرمائى چه **فتخالف ابوحنيفة رحمه الله تعالى هذا الحديث.** [۳] يعنى امام ابوحنيفه رحمه الله دلته د حديث مخالفت كړې دې.

---

[۱]) شرح صحيح بخارى لابن بطال: ۴۱۹/۶.

[۲]) فتح البارى: ۵۹۰/۴ شرح البخارى لابن بطال: ۴۱۹/۶.

[۳]) شرح صحيح البخارى لابن بطال: ۴۱۹/۶.

**دعلامه عیني تنبیه:-** علامه عیني رحمه الله فرمائي چه داسې وینا کول ډیر خلاف ادب او ګستاخي ده چه د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله په شان متورع اومحتاط سړی یوصحیح او ثابت حدیث باندې د خبریدو نه باوجود د هغې مخالفت اوکړي. او د هغوی مسلك خو د احادیث ضعیفه په مقابله کښې هم قیاس پریخودل په علماؤ کښې مشهوردی. په دې وجه د ادب تقاضاداده چه داسې اوونیلې شي چه امام صاحب په دې حدیث باندې عمل ترك کړې دې او د ترك عمل وجه یا خودا ده چه دا حدیث دهغوی په نیز ثابت نه دې یا هغه دې نه واقف شوی نه دې یا دهغوی په نیز د دې حدیث منسوخ کیدل معلوم شوی دی. او د څلورو ابوابو نه پس راتلونکې د حضرت ابوهریره رضي الله عنه حدیث په دې حدیث مذکور په نسخ باندې هم دلالت کوي. **قوله صلی الله تعالی علیه : أنا أولی بالمؤمنین من أنفسهم الخ.** [1] یعني زه د مسلمانانو پخپله د هغوی د ذات نه هم زیات مستحق یم په دې وجه چه اوس کوم یومسلمان وفات شي اوهغه قرضداري پاتې شو نو د هغه قرض زما په ذمه. خو چه کوم مسلمان مال پریږدی اوهغه د هغه ازرتانو حق دې. دغه شان نور هم ډیر احادیث دی چه په دې مضمون باندې دلالت کوي لکه چه علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چه د مړي د قرض التزام کولو کښې دا احتمال موجود وي چه دا د حضورپاك د کریمانه اخلاق مقتضی د وجې نه تبرعا واحسانا وو نه چه داسې کول وجوبا او لازما وو. [2]

[حدیث ۲۱۶۸] [3] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رضي الله عنه - قَالَ كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم إِذْ أُتِيَ بِجَنَازَةٍ، فَقَالُوا صَلِّ عَلَيْهَا. فَقَالَ «هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ». قَالُوا لاَ. قَالَ «فَهَلْ تَرَكَ شَيْئًا». قَالُوا لاَ. فَصَلَّى عَلَيْهِ، ثُمَّ أُتِيَ بِجَنَازَةٍ أُخْرَى، فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ، صَلِّ عَلَيْهَا. قَالَ «هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ». قِيلَ نَعَمْ. قَالَ «فَهَلْ تَرَكَ شَيْئًا». قَالُوا ثَلاَثَةَ دَنَانِيرَ. فَصَلَّى عَلَيْهَا، ثُمَّ أُتِيَ بِالثَّالِثَةِ، فَقَالُوا صَلِّ عَلَيْهَا. قَالَ «هَلْ تَرَكَ شَيْئًا». قَالُوا لاَ. قَالَ «فَهَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ». قَالُوا ثَلاَثَةُ دَنَانِيرَ. قَالَ «صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ». قَالَ أَبُو قَتَادَةَ صَلِّ عَلَيْهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَعَلَىَّ دَيْنُهُ. فَصَلَّى عَلَيْهِ. [۲۱۷۳]

**ترجمه:-** حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه فرمائي چه زه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضروم چه یوه جنازه راوړلې شوه رسول الله صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو آیا په ده باندې څه قرض شته؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم اوفرمائیل نه هیڅ قرض پرې نه وو. حضورپاك معلومات اوکړل چه څه میراث ئې هم پریخودې ده؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو نه (څه میراث ئې هم نه دې پریخودې) بیا حضورپاك د هغه د جنازې مونځ اوکړو. د دې نه پس یوه بله جنازه راوړلې شوه صحابه کرامو

---

[1] سیاتي تخریجه.

[2] عمدة القاري: ۱۲/۱۶۰.

[3] وأخرجه احمد رحمه الله في مسنده رقم: ۱۵۹۱۳ والنسائي في سننه كتاب الجنائز رقم: ۱۹۳۵ وانظر تحفة الاشراف: ۴/۴۷.

عرض اوکړو حضورپاک ددہ جنازه هم تاسو اوکړئی. حضورپاک پښتنه اوکړه چه په مړی ډچاقرض وو؟ هغوی عرض اوکړو او وو حضورپاک بیاتپوس اوکړو څه میراث ئی پریخودې دې؟ خلقو عرض اوکړو چه درې دیناره ئی پریخې دی رسول الله ﷺ دهغه هم جنازه اداکړه بیا دریمه جنازه راوړلې شوه صحابه کرامو عرض اوکړو دَ ده جنازه هم تاسو اوکړئی. حضور پاک تپوس اوکړو څه میراث ئی پریخوددې دې؟ صحابه کرامو عرض اوکړونه. حضورپاک بیا پښتنه اوکړه په ده دَ چاقرض وو؟ صحابه کرامو عرض اوکړو او درې دیناره وو. رسول الله ﷺ په دې باندې ارشاد اوفرمائیلو دَخپل ملګری دَ جنازې مونځ هم تاسو اوکړئی. حضرت ابوقتاده رضی الله عنه (چه خپل یوملګرې دَ دې عظیم فضیلت نه محروم کیدوسره اولیدو) وئی وئیل یارسول الله! تاسو دَ ده جنازه اوکړئی دده قرض به زه اداکړم. حضورپاک دَهغه جنازه اوکړه.

## رجال الحدیث

**مکی بن ابراهیم:** - دا مکی بن ابراهیم رحمه الله دې.[1]

**یزیدبن ابی عبید:** -دا یزیدبن ابی عبید مولی سلمه بن اکوع رحمه الله دې.[2]

**سلمة بن الاکوع:** - اودَ سلمة بن اکوع رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[3]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** - دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت علامه ابن بطال رحمه الله قول په ذریعه سره ښه په ذهن کښې راتلې شی کوم چه شاته ذکرشوې دې.[4] بل قوله: وعلی دینه سره هم دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې.[5]

**فوائد:** - په دې حدیث مبارک کښې تنبیه ده چه بنده بغیرد سخت ضرورت نه هیڅ کله قرض نه اخلی ځکه چه دَ رسول الله ﷺ په اهتمام سره معلومات کول اوبیا دَ داسې قرض دارې کیدو په صورت کښې چاچه څه مال هم نه وی پریخودې دَ رسول الله ﷺ دَهغه دَ جنازې کولونه انکار ډیرزیات سخت وعید دې.[6]

دا معمول په شروع زمانه کښې ووبیاچه کله الله تعالی حضورپاک ﷺ ته فتوحات ورکړل نو حضورپاک به دَ قرض داری قرض په خپله ذمه اخستو او جنازه به ئی کوله.[7] بل په دې حدث کښې چونکه فصلی علیه او اتی بجنازة الفاظ موجود دی کوم چه دَ کتاب الحواله په براعت اختتام باندې هم دلالت کوی. اودا حدیث دَامام بخاری په ثلاثیات[8] کښې اووم حدیث دې.[9]

---

[1]) کشف الباری:۴۸۱/۳.

[2]) کشف الباری: ۱۸۲/۴.

[3]) کشف الباری: ۱۸۳/۴.

[4]) عمدة القاری:۱۵۸/۱۲.

[5]) إرشادالساری:۲۵۵/۵.

[6]) إرشادالساری:۲۵۵/۵.

[7]) فتح الباری: ۵۹۰/۴.

[8]) دَ ثلاثیات باره کښې تفصیلی مضمون دکتاب آخره کښې اوګورئی.(مرتب).

[9]) عمدة القاری:۱۵۸/۱۲.

بسم الله الرحمن الرحيم

# ۴۴- كتاب الكفالة

**كفالة** لغةً ضم كولو اوملاوولوته وائى او په اصطلاح كښې **ضم الذمة إلى الذمة فى المطالبة** يعنى يوه ذمه بلې ذمه سره په مطالبه كښې ملاوولوته وائى. (۱) اوداهم وئيلې شوى دى چه كفاله يوه ذمه بلې ذمه سره په دين كښې ملاوولو ته وائى. ليكن صاحب دهدايه رحمه الله دَ اولنى تعريف تصحيح كړې ده. (۲) بل **كفالة** ته **حمالة، ضمانة** او **زعامة** هم وئيلې شي.

اوس دلته يوڅو الفاظوباندې پوهيدل په مسائلودَ پوهيدو كښې دَ آسانتيا سبب دې.

**كفيل:** كفالت كونكې.

**مكفول عنه:** دَ چادَ طرف نه چه كفالت اوكړې شي.

**مكفول به:** دَ كوم څيزچه كفالت اوكړې شي.

**مكفول له:-** دَ چادَ پاره چه كفالت اوكړې شي. (۳)

## ۱- باب: الكفالة فى القرض والديون بالابدان وغيرها

### د قرض اودين په معامله كښې د چاشخصى وغيره (مالى) ضمانت اخستل

**په قرض اودين كښې فرق:-** په قرض اودين كښې فرق دادې چه دين ماوجب في الذمة ته وائى يعنى كوم چه دَ چا په ذمه واجب وى كه هغه په هرځه وجه واجب شوې وى مثلاً يوڅيز ئى واخستو نودَهغې ثمن په ذمه كښې واجب شو دا دين دې. يادَ چايوڅيز ئى غصب كړو اوهغه ختم شو نودَهغې قيمت په ذمه باندې دين دې. ياقصداً ئى دَ چا يوڅيز ضايع كړو نودَهغې قيمت په ذمه باندې دين دې. په دې ټولو صورتونو كښې قيمت او ثمن په ذمه باندې دې په دې وجه دې ته دين وائى او په قرض كښې دا وى چه يوسړې دَ بل كس نه دَ خپل ضرورت دَ پاره پيسې غواړى اوهغه ئى ده ته وركړى قرض خاص دې اودين عام دې. (۴)

**دترجمة الباب مقصد:-** امام بخارى رحمه الله دابښائى چه د قرض اودين په معاملاتو كښې كفاله كول جائزده او كفاله بالابدان وغيرها لفظ زياتولوسره امام بخارى رحمه الله ددې طرف ته اشاره كړې ده چه **كفاله بالابدان** او **كفاله بالمال** دواړه جائزدى اوهم دغه دَجمهورو مسلك دې.

**دَ فقهاء اختلاف:-** جمهور علماء يعنى امام ابوحنيفه امام مالك ليث ثورى اوزاعى اوامام احمد وغيرهم رحمهم الله دَ كفاله بالابدان دَجواز قائل دى. اودَ امام شافعى رحمه الله قول جديد

---

۱) موسوعة كشاف اصطلاح الفنون والعلوم: ۱۳۶۸/۲.

۲) نصب الراية مع الهداية: ۱۵۵/۴.

۳) طلبة الطلبة للنسفى رحمه الله مع تخريج شيخ خالد عبدالرحمن عك، وكشاف اصطلاحات الفنون والعلوم: ۱۳۶۸/۲

۴) عمدة القارى: ۱۶۱/۱۲ إرشادالسارى: ۲۵۷/۵.

دعدم جواز دي اود داؤد ظاهرى رحمه الله هم دغه مسلك دي.[1] امام بخارى رحمه الله بهرحال د جمهورو دمسلك تائيد كړې دي اود كفاله بالابدان دجواز دپاره ئې دوه آثارهم پيش كړي دی.

**دعدم جواز د قائلينو دليل:-** لانه كفل بما لايقدر على تسليمه إذ لاقدرة له على نفس المكفول به بخلاف الكفالة بالمال، لان له ولاية على مال نفسه.[2] يعنى ددې د پاره چه كفيل د يوداسې څيز كفيل شوې دې دكوم په حواله كولوچه هغه قدرت نه لرى ځكه چه دهغه دمكفول به په نفس باندې هيڅ قدرت حاصل نه دې. په خلاف د كفاله بالمال چه كفيل ته په خپل مال باندې مكمل قدرت حاصل دې. په دې سره هغه د مكفول له حق اداكولې شى. اواحضرات دا هم فرمائى چه كفاله بالنفس كيدو د وجې ددې مشابهت شوې دې كفاله فى الحدودسره نولكه څنګه چه په مشبه به كښې كفالت جائزنه دې دغه شان په مشبه كښې هم جائزنه دې.[3]

**د جمهورو دليل:-** د جمهورو دليل د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارك دې. **الزعيم غارم.**[4] يعنى كفيل ضامن دې اودا حديث دخپل اطلاق دوجې نه په دوه قسمه مشروعيت ته شامل دې. د شوافع د دليل جواب صاحب هدايه رحمه الله دا وركړې دې چه **لانه يقدر على تسليمه بطريقه بان يعلم الطالب مكانه فيخلى بينه وبينه أويستعين باعوان القاضى فى ذلك.**[5]

يعنى كفيل دمكفول به نفس حواله كولوباندې په دې طريقه قادر دې چه كفيل مكفول له ته دهغه ځائې اوښائى اودمكفول له او مكفول به په مينځ كښې تخليه اوكړى يا په دې باره كښې د قاضى د معاونينو نه امداد واخلى.

قَالَ أَبُوالزِّنَادِعَنْ مُحَمَّدِبْنِ حَمْزَةَبْنِ عَمْرٍوالأَسْلَمِى عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عُمَرَ-رضى الله عنه-بَعَثَهُ مُصَدِّقًا، فَوَقَعَ رَجُلٌ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ، فَأَخَذَ حَمْزَةُ مِنَ الرَّجُلِ كَفِيلاً حَتَّى قَدِمَ عَلَى عُمَرَ، وَكَانَ عُمَرُقَدْ جَلَدَهُ مِائَةَ جَلْدَةٍ، فَصَدَّقَهُمْ، وَعَذَرَهُ بِالْجَهَالَةِ.

دحمزه بن عمرو الاسلمى رضى الله عنه دا اثر امام ابوجعفر طحاوى رحمه الله موصولاً اومفصلاً ذكركړې دې.[6]

**ترجمه:-** حضرت حمزه بن عمروالاسلمى رضى الله عنه فرمائى (امير المؤمنين) حضرت عمر رضى الله عنه په (خپله زمانه خلافت كښې) هغه مصدق (صدقه وصول كونكې جوړكړو وئى ليګلو چرته چه به هغه صدقه وصول كوله) هلته يو سړى د خپلې ښځې وينځې سره كوروالې كړې وو. حضرت

---

[1]) بداية المجتهد: ۲۸۵/۵.

[2]) نصب الراية مع الهداية: ۱۱۵/٤ الموسوعة الفقهية: ۳۰۶/۳٤.

[3]) بداية المجتهد: ۲۸۵/۵.

[4]) أخرجه أبوداؤد فى كتاب البيوع والاجارات باب فى تضمين العارية حديث رقم: ۳۵۶۵ والترمذى فى كتاب البيوع باب العارية مؤداة حديث رقم: ۱۲۶۵.

[5]) نصب الراية مع الهداية: ۱۱۵/٤.

[6]) شرح معانى الاثار: ۱٤۷/۳باب الرجل يزنى بجارية امرأته تغليق التعليق: ۲۸۹/۳.

حمزه ﷺ اول دهغه د یوسړی نه ضمانت واخستو تردې چه هغه دحضرت عمر ﷺ په خدمت کښې حاضرشو. حضرت عمر ﷺ اول دې سړی ته د سلو کوړو سزا ورکړې وه په دې وجه هغوی ﷺ دَدغه خلقو تصدیق اوکړو او (مسئله) نه پیژندلودوجې نې هغوی ﷺ د ده عذر قبول کړې وو.

## رجال الحدیث

**ابوالزناد:**- دا ابولزناد عبدالله بن ذکوان رحمه الله دې.[1]

**محمدبن حمزه ابن عمرو اسلمی حجازی رحمه الله:**- دَخپل پلار حضرت حمزه بن ابن عمرو اسلمی ﷺ نه روایات نقل کوی چاته چه دَ صحابیت شرف حاصل دې.[2]

**تلامذه:**- دَ هغوی نه اسامه بن زید لیثی، دَهغوی دواړه ځامن حمزه بن محمد بن حمزه اسلمی ابوبکر بن محمدبن حمزه اسلمی، ابوالزناد عبدالله بن ذکوان، کثیر بن زیداسلمی رحمهم الله روایات نقل کوی.[3]

ابن حبان رحمه الله په ثقات کښې دَهغوی رحمه الله تذکره کړې ده.[4] امام بخاری رحمه الله هم استشهاداً دَهغوی روایت نقل کړې دې. امام ابوداؤد په سنن کښې امام نسائی عمل الیوم واللیلة کښې دَهغوی نه روایت نقل کړې دې.[5] ابومحمدعلی بن احمد ابن حزم ظاهری اندلسی رحمه الله دې ضعیف ګرځولې دې. لیکن دا دَ ابومحمدابن حزم ظاهری رحمه الله تشدد دې اودَهغه په دې قول باندې نکیرکړې شوې دې.

**کما قال ابن حجر رحمه الله تعالی: ضعفه ابن حزم رحمه الله تعالی وعاب ذلك علیه القطب الحلبی رحمه الله تعالی وقال لم یضعفه قبله احد انتهی وقال ابن قطان رحمه الله تعالی: لایعرف حاله.**[6]

**حمزة بن عمرو:**- حضرت حمزه بن عمرو اسلمی ﷺ تذکره **کتاب الصوم باب الصوم فی السفر والافطار** کښې تیره شوې ده.

**تشریح:**- دلته په دې حدیث کښې لوئی اختصاردې. امام طحاوی رحمه الله دَدې تفصیل نقل کړې دې چه حضرت عمر ﷺ حضرت حخمزه بن عمرو اسلمی ﷺ دَ صدقه وصول کولودَپاره لیګلې وو. په یومقام تیریدو هغه واؤریده چه یو سړې خپلې ښځې ته وائی اذی صدقة مال مولاك ته دَخپل مولی دَ مال صدقه اوکړه او ښځې وئیل بل انت فادصدقة مال ابنك ته دَخپل ځوئی دَمال صدقه اوکړه. حضرت حمزه بن عمرو اسلمی ﷺ چه کله دا خبره واؤریده نوهغه

---

[1]) کشف الباری: ۲/۱۰.
[2]) تهذیب الکمال: ۲۶/۹۶.
[3]) حواله مذکوره.
[4]) الثقات لابن حبان رحمه الله ۳۵۷/۷.
[5]) تهذیب الکمال: ۲۵/۹۶.
[6]) تهذیب التهذیب: ۹/۱۲۷.

دوى پسې شو اومعلومه ئې كړه چه څه قصه ده؟ نوخلقو هغه ته اوخودل چه دده ښځه په اصل كښې يوه وينځه وه. ده دخپلې ښځې وينځې سره كوروالې كړې وو اوپه دغه كوروالى سره د دغه وينځې يوځوئى هم پيدا شوې وو روستو ئې ښځې دغه وينځه آزاده كړې وه اوهغه آزاده شوې وينځه مړه شوه. ددې وينځې د طرف نه دهغې ځوئى ته څه مال دميراث په توګه ملاو شوې وو. دَدغه مال باره كښې د ښځې اوخاوند په مينځ كښې جګړه كيدله. حضرت حمزه بن عمرو اسلمى رضي الله عنه اوونيل چه تاد خپلې ښځې وينځې سره زناكړې وه زه خو به تا خامخا رجم كوم. نوخلقو اوونيل چه د ده مقدمه خو حضرت عمر رضي الله عنه ته پيش شوې ده اوحضرت عمر رضي الله عنه دې سل كوړې لګولونه پس پريخودې دې. نو حضرت حمزه رضي الله عنه اوونيل ښه ده دده د پاره څوك كفيل راولئى زه پخپله دې حضرت عمر رضي الله عنه ته پيش كوم. اوس زما څه كاردې چه دې اخوا ديخوا نه شى. په تاسوكښې څوك دده كفيل جوړشئى. دې به حضرت عمر رضي الله عنه ته حاضرولې شى. داكفالت بالابدان وو. نوهغه خلق كفيل شو بيا چه كله دې نه پس حضرت عمر رضي الله عنه ته د ده قصه نقل كړې شوه نو حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل او ما دې دا اوګنړلوچه دا ناواقف اوبې خبر وو سل كوړې وهلوسره مې پريخودو. (۱)

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** دحضرت حمزه بن عمرو اسلمى رضي الله عنه دَخلقو نه دَ ده حاضر ضمانتى (كفيل) جوړيدو مطالبه كولوسره دَ كفاله بالابدان مشروعيت مستنبط كيږى.

**كما قال الشيخ القسطلاني رحمه الله تعالى: واستنبط من هذه القصة مشروعية الكفالة بالابدان فان حمزة رضى الله تعالى عنه صحابي وقد فعله ولم ينكره عليه عمر رضى الله تعالى عنه مع كثرة الصحابة رضى الله تعالى عنهم حينئذ.** (۲)

**دَفقهاء كرامو دَ اختلاف بيان:-** كه يوسړې دَخپلې وينځې سره وطى اوكړى نودَامام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نيزيه هغه به حدجارى كولې شى اوهغه به رجم كولې شى. دَامام احمدبن حنبل رحمه الله په نيزكه چرې ښځې خپله وينځه دَ خاونددَپاره حلال كړې وه نوبيابه رجم كولې نه شى بلكه سل كوړې وهلونه پس به پريخودلې شى. اوكه چرې ښځې خپله وينځه دَخاوند دَپاره حلال كړې نه وه نو په هغه صورت كښې به رجم كولې شى. دَامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزكه هغه وائى چه ما خوحلال ګنړلوسره (چه زمادښځې څيزدې نولكه چه زما څيزدې) هغې سره وطى كړې وه نو په هغه صورت كښې به حدنه جارى كيږى يعنى رجم كولې به نه شى اوكه چرې هغه دا اووائى چه ماته معلومه وه چه داحرام ده خوددې باوجود ما ورسره وطى اوكړه نوبيا به رجم كولې شى. (۳)

**په تعزيركښې څه حدمقرردې كه نه؟:-** قوله (وكان عمر جلده مائة)..... داسړې محصن وو

---

(۱) مرتخريجه تحت قول المصنف رحمه الله تعالى وقال ابوالزناد وعن محمدبن حمزة بن عمرو الاسلمي.

(۲) إرشادالسارى: ۲۵۸/۵.

(۳) لامع الدرارى مع تعليقات الشيخ محمدزكريا رحمه الله ۲۰۱/۶.

اوده زنا کړې وه اوحضرت عمر رضی الله عنه هغه سل کوړې وهلونه پس پریخودو دَدې څه وجه ده؟
دَ حضرت عمر رضی الله عنه دَدې عمل نه استدلال کولوسره امام مالك، ابوثور، امام ابویوسف اوامام طحاوی رحمهم الله فرمائی چه تعذیر کښې څه حدمقررنه دې اوکه امام چرته اوغواړی نوهغه دَ حدودنه تجاوز کولې شی. خودَ قاضی ابویوسف مشهورقول اودَ جمهورو په نیزدَتعزیر حد غیرمحدودنه دې بلکه دَدې دَپاره کوړې مقرردی. دَامام احمد بن حنبل رحمه الله په نیزبه دَ لسو نه زیاتې کوړې په تعزیرکښې نه شی لګولې او هم دغه دَ امام اسحاق رحمه الله قول دې او دویم روایت دَ امام احمد رحمه الله نه دادې چه په تعزیرکښې به دَحدنه تجاوزنه شی کولې اوهم دغه دَعلامه خرقی رحمه الله قول مختاردې او هم دا مذهب دَامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله هم دې.[1]

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله قول:-** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ممکن دی چه دَ حضرت عمر رضی الله عنه مسلك دا وی چه که چرې زانی محصن وی اودا پیژنی چه دا زمادَپاره حرام ده نوبیا به هغه رجم کولې شی اوکه چرې هغه جاهل او ناواقف وی نو بیا به دَ تعزیر سل کوړې لګولوسره پرې خودې شی.[2]

**وَقَالَ جَرِيرٌ وَالأَشْعَثُ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ فِي الْمُرْتَدِّينَ اسْتَتِبْهُمْ، وَكَفِّلْهُمْ. فَتَابُوا وَكَفَلَهُمْ عَشَائِرُهُمْ. وَقَالَ حَمَّادٌ إِذَا تَكَفَّلَ بِنَفْسٍ فَمَاتَ فَلاَ شَىْءَ عَلَيْهِ. وَقَالَ الْحَكَمُ يَضْمَنُ.**

یعنی حضرت جریر رحمه الله او اشعث رحمه الله عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته دَ مرتدینوباره کښې اووئیل چه په هغوی باندې توبه اوکړه اودَهغوی نه کفیل (ضامن) واخلئ (چه بیا مرتدنه شی) نوهغوی توبه اوکړه اودَهغوی ضمانت پخپله هم دَهغوی دَ قبیلې والاوکړو.
دَحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دا اثر علامه بیهقی رحمه الله موصولاً اومفصلاً نقل کړې دې.[3]

## رجال الحديث

**جریر:-** دا حضرت جریر بن عبدالله بجلی رضی الله عنه دې.[4]

**اشعث بن قیس بن معدیکرب بن معاویة کندی:-** ابومحمد دَدوی کنیت دې صحابیت شرف هم ورته حاصل دې.[5] هغوی رضی الله عنه دَحضورپاك نه یوڅو احادیث نقل کړی دی. او په صحاح سته کښې دَ هغوی نه تقریباً څلوراحادیث نقل کړې شوی دی.[6] اودَحضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه نه هم هغوی رضی الله عنه یو روایت نقل کړې دې.[7]

---

[1] عمدة القاری:۱۲/۱۶۲لامع الدراری: ۶/۲۰۰.
[2] فتح الباری: ٤/۵۹۲.
[3] السنن الکبری للبیهقی: ۶/۷۷ تغلیق التعلیق: ٤/۲۹۰.
[4] کشف الباری: ۲/۷۶٤.
[5] تهذیب الکمال: ۳/۲۸۶.
[6] أطراف للمزی:۸/۱۱.
[7] حواله بالا.

**تلامذه:-** ده‌غوی رضی الله عنه نه حضرت ابراهیم نخعی، جریر بن عبدالله بجلی، ابووائل شقیق بن سلمة اسدی، عامر شعبی، عبدالرحمن بن عبدالله بن مسعود، عبدالرحمن بن عدی کندی، قیس بن حازم، ابواسحاق سبیعی او ابوبصیر عبدی وغیرهم رحمهم الله روایات نقل کوی.
اوهغوی رضی الله عنه په آخره کښې کوفه کښې مقیم شوې وو. هلته ئې یوکور جوړکړو او بیا هم هلته ۶۳ کالو په عمر کښې ۴۰ هجری یا ۴۱ هجری په آخره کښې ده‌غوی رضی الله عنه انتقال شوې. (۱)
**ابن مسعود:-** داحضرت ابن مسعود رضی الله عنه دې. (۲)

**دَ مذکوره اثر ترجمة الباب سره مناسبت:-** دَمذکوره اثر ترجمة الباب سره تعلق **قوله: وکفلهم** سره واضح دې. (۳)

**تشریح:-** دااثر امام بخاری رحمه الله په ډیر اختصارسره ذکرکړې دې. امام بیهقی رحمه الله دا په تفصیل سره بیان کړې دې. (۴) چه حضرت حارثه بن مضرب فرمائی چه ما حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه سره مونځ اوکړو دَسلام نه پس یوسړې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه له راغلوونې وئیل چه زه دَ بنوحنیفه جمات سره تیریدم چه دَهغه ځائی مؤذن عبدالله بن نواحة ما واؤریدو چه هغه په اذان کښې وئیل أن مسیلمة رسول الله حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فوری توګه باندې دَ بنوحنیفه خلق اونیول. دَ مصنف ابی ابی شیبه رحمه الله په روایت کښې دی چه دا ۱۷۰ کسان وو. (۵) حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه خودعبدالله بن نواحة ستې هم هغه وخت والوزولو اوباقی خلقوباره کښې ئې دَ خلقو نه مشوره اوکړه. دَحضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه رائې داده چه دوی هم قتل کړه اوحضرت جریر رضی الله عنه اوحضرت اشعث رضی الله عنه اووئیل چه په دوی باندې توبه اوکړئی اودَدوی نه کفیل واخلئی چه دوی به بیا هیڅ قسم ګړبړنه کوی. نو په هغوی باندې توبه اوویستلې شوه اودهغوی خاندان والادَهغوی کفیلان شو چه بیا به داخلق داسې حرکت نه کوی.

**تنبیه:-** زمونږ په نسخه کښې اِسْتَبِهِمْ دې داغلط دې صحیح اِسْتَتِبْهِمْ دې لکه چه شراح بخاری په نسخوکښې واقع شوې دې.

اوس په دې پوهه شئی چه دا امام بخاری رحمه الله دَحضرت حمزه بن عمرو اسلمی رضی الله عنه واقعه او دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اثرذکرکړې دې په دې سره امام بخاری کفالت بالابدان ثابت کړې دې. اودَ استدلال حاصل دادې چه کله په حدود کښې کفالت بالابدان جائزدې نو په اموال او دیون کښې خو به په طریقه اولی جائزوی. باقی دا مسئله په خپل ځائی باندې دَ غورطلب

---

(۱) الطبقات لابن سعد:۳/ ۱۳ – ۱٤تهذیب الکمال:۳/ من ۲۸۶ – ۲۹۵ وتهذیب التهذیب:۱/۸، تقریب التهذیب: ۹۱/۱.
(۲) کشف الباری: ۲۵۷/۲.
(۳) عمدة القاری: ۱۶۳/۱۲.
(۴) مرتخریجه تحت قول المصنف وقال ابن جریر والاشعث لعبدالله بن مسعود رضی الله عنه الخ.
(۵) فتح الباری: ۵۹۳/٤عمدة القاری:۱۶۳/۱۲.

ده چه ددې تعلق کفالت سره دې هم که نه داخوهسې دَ استیاق صورت ته پیش کړې شوه سره ددې چه په دې کښې حقیقی کفالت موجودنه دې.[1]

**ایا په حدودکښې کفالت بالابدان جائزدې؟:-** اوس ددې نه پس یوه مسئله بله ده که په یوسړی باندې حد واجب شوې وی نودهغه کفیل بالبدن څوك سړې کیدې شی که نه؟ اکثرعلماء خودافرمائی چه دلته کفالت بالبدن جائزنه دې که دَ دغه حقوقوتعلق حقوق الله سره وی اوکه حقوق العبادسره وی. هم دا مسلك دَامام ابوحنیفه، امام احمدبن حنبل قاضی شریح، حسن، اسحاق بن راهویه، ابوعبید او ابوثور رحمهم الله دې.

اوهم دغه قول دَ امام شافعی رحمه الله دَدغه حدودو نه دې کوم چه حقوق الله سره متعلق وی اوکوم چه حقوق العبادسره متعلق دی په هغې کښې دَ هغوی دواړه قوله دی. یوځائی فرمائی لاکفالة فی حدودالادمي ولالعان. یعنی په حدود او لعان کښې هیڅ کفاله نشته. او یوبل ځائی کښې فرمائی تجوزالکفالة بمن علیه حق أوحد، لانه حق الادمی فصحت الکفالة به کسائرحقوق الادمیین.[2] یعنی په کوم سړی چه څه حق وی دَهغه کفاله کول جائزده ځکه چه دادَ سړی حق دې لهذا دَ نورو حقوقو په شان په دې کښې هم کفاله جائزده.

**قوله: وقال حماد إذاتکفل بنفس الخ:-** حمادبن ابی سلیمان رحمه الله فرمائی چه یوسړی دَ چاشخصی ضمانت ورکړو بیا دهغه انتقال اوشو (دَ انتقال کیدودَ وجې نه) دهغه ذمه واری ختمیږی اوحکم بن عتیبه رحمه الله فرمائیلی دی چه په ذمه واری اوس هم په هغه باندې باقی ده. دَحضرت حماد او حکم رحمهماالله تعلیقات امام اثرم شعبه عن حماد والحکم په طریق سره موصولاً نقل کړی دی.[3]

## رجال الحدیث

**حماد:-** دا حماد بن ابی سلیمان مسلم اشعری کوفی رحمه الله دې.[4] څوك چه دَ امام ابوحنیفه رحمه الله دَ مشائخونه دې.[5]

**حکم:-** داحکم بن عتیبه رحمه الله دې.[6]

**دَ فقهاؤ اختلاف:-** په دې تعلیق کښې امام بخاری رحمه الله یومستقل مسئله ذکرکړې ده که چرې یوسړې دَ چا کفیل بالنفس اوکفیل بالبدن جوړشی. اوس هغه سړې (مکفول به) مړشی نو په داسې صورت کښې به دَ کفیل په ذمه څه مطالبه وی که نه؟ نوامام ابوحنیفه، امام شافعی،

---

[1]) إرشادالساری: ۲۵۸/۵ عمدة القاری: ۱۶۳/۱۲.

[2]) المغنی لابن قدامة مقدسی رحمه الله ۱۰۵۸/۱.

[3]) فتح الباری: ۵۹۳/٤.

[4]) کشف الباری کتاب الوضوء باب قرأة القرآن بعد الحدیث وغیره.

[5]) عمدة القاری: ۱۶۳/۱۲.

[6]) کشف الباری: ٤۱۶/٤.

شریح، شعبی، حماد بن سلیمان او حنابله رحمهم الله فرمائی چه د کفیل په ذمه هیڅ ذمه واری نشته چونکه د اصیل په ذمه پاتې نه شو مړشو نو بیا د کفیل په ذمه به څه پاتې شي.
د دې حضراتو دلیل دادې چه کفاله بالنفس بقاء د مکفول بنفسه په بقاء باندې موقوف ده نو دهغه مرګ به کفاله ختمه کړي څکه چه کله مکفول بنفسه مړشو نو کفیل د هغه د حاضرولو نه عاجز کیدل ثابت شو اوکله چه کفیل د مکفول به د حاضرولو نه عاجز شي نو کفاله بالنفس ساقط کیږي او کفیل به د دغه کفاله نه بری الذمه شي. دویم دلیل دادې چه کله مکفول بنفسه مړشي نو د هغه نه حاضریدل ساقط شو او چه کله د هغه نه حاضریدل ساقط شو نو د کفیل نه د هغه حاضرول هم ساقط شو څکه چه براءت اصیل، براءت کفیل واجب کوی (۱)
امام مالک حکم او لیث بن سعد رحمهم الله دا حضرات فرمائی چه کفیل به د دغه مال ذمه واروی کوم چه د مکفول به په ذمه دې (۲)

**د امام بخاری رحمه الله رائې:-** امام بخاری رحمه الله اختلاف نقل کولو سره څه فیصله نه ده کړې لیکن د هغوی متعلق مشهوره ده چه کله هغه څه اختلافی مسئله بیانوی او په هغې کښې دوه آثار پیش کوی نو چه کوم اثر هغه وړاندې راولي هم هغه د هغه په نیز مختاروی نو لکه چه د امام بخاری په نیز د حماد بن ابی سلیمان کوفی رحمه الله ته به ترجیح حاصله وی.

**د تعلیق تفصیل:-** **قال ابوعبدالله: وقال اللیث حدثنی جعفر بن ربیعة الخ......** د حضرت لیث رحمه الله په دې تعلیق باندې کلام د کتاب البیوع په شروع کښې **باب التجارة فی البحر، حدیث رقم: ۲۰۶۳** په ضمن کښې او **کتاب الزکاة باب مایستخرج من البحر حدیث رقم: ۱۴۹۸** په ضمن کښې تیر شوې دې او په هغې کښې د دې تعلیق موصول کیدو تصریح شوې ده. (۳) بل حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دا تعلیق امام اسماعیلی امام نسائی او امام احمد رحمهم الله هم په خپلو سندونو کښې موصولاً ذکر کړې دې. (۴)

[حدیث ۲۱۶۹] (۵) قَالَ أَبُوعَبْدِاللَّهِ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ

---

(۱) الهدایة شرح بدایة المبتدی: ۲۷۹/۵.
(۲) المغنی لابن قدامة مقدسی: ۱۰۶۱/۱.
(۳) تغلیق التعلیق: ۲۹۱/۳.
(۴) فتح الباری: ۵۹۳/۴.
(۵) أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الزکاة باب مایستخرج من البحر رقم: ۱۴۹۸ وفی کتاب البیوع باب التجارة فی البحر رقم: ۲۰۶۳ وفی کتاب فی الاستقراض واداء الدیون والحجر والتفلیس باب إذا أقرضه إلی أجل مسمی أو اجله فی البیع رقم: ۲۴۰۴ وفی کتاب اللقطة باب إذا وجد خشبة فی البحر أو سوطا اونحوه رقم: ۲۴۳۰ وفی کتاب الشروط باب الشروط فی القرض رقم: ۲۷۳۴ وفی کتاب الاستئذان باب من یبدأ فی الکتاب رقم: ۶۲۶۱ واخرجه محمد بن فتوح الحمیدی فی الجمع فی أفراد البخاری: ۱۷۹/۳ وأخرجه أحمد فی مسنده: ۲۴۱/۱۶، جامع الاصول کتاب القصص: ۷۸۲۶.

بن هرمز عن أبي هريرة - رضي الله عنه - عن رسول الله - صلى الله عليه وسلم - «أنه ذكر رجلا من بني إسرائيل سأل بعض بني إسرائيل أن يسلفه ألف دينار، فقال ائتني بالشهداء أشهدهم. فقال كفى بالله شهيدا. قال فأتني بالكفيل. قال كفى بالله كفيلا. قال صدقت. فدفعها إليه إلى أجل مسمى، فخرج في البحر، فقضى حاجته، ثم التمس مركبا يركبها، يقدم عليه للأجل الذي أجله، فلم يجد مركبا، فأخذ خشبة، فنقرها فأدخل فيها ألف دينار، وصحيفة منه إلى صاحبه، ثم زجج موضعها، ثم أتى بها إلى البحر، فقال اللهم إنك تعلم أني كنت تسلفت فلانا ألف دينار، فسألني كفيلا، فقلت كفى بالله كفيلا، فرضي بك، وسألني شهيدا، فقلت كفى بالله شهيدا، فرضي بك، وأني جهدت أن أجد مركبا، أبعث إليه الذي له فلم أقدر، وإني أستودعكها. فرمى بها في البحر حتى ولجت فيه، ثم انصرف، وهو في ذلك يلتمس مركبا، يخرج إلى بلده، فخرج الرجل الذي كان أسلفه، ينظر لعل مركبا قد جاء بماله، فإذا بالخشبة التي فيها المال، فأخذها لأهله حطبا، فلما نشرها وجد المال والصحيفة، ثم قدم الذي كان أسلفه، فأتى بالألف دينار، فقال والله ما زلت جاهدا في طلب مركب لآتيك بمالك، فما وجدت مركبا قبل الذي أتيت فيه. قال هل كنت بعثت إلي بشيء؟ قال أخبرك أني لم أجد مركبا قبل الذي جئت فيه. قال فإن الله قد أدى عنك الذي بعثت في الخشبة فانصرف بالألف الدينار راشدا». [ر: ۱۴۲۷]

**ترجمه:-** حضرت ابوهریره ﷛ د رسول الله ﷺ نه روایت نقل کوی چه رسول الله ﷺ د بنی اسرائیلو د یوسړی تذکره کولوسره اوفرمائیل چه هغه د بنی اسرائیلو یوبل سړی نه زر دینار قرض اوغوښتل نوهغه ورته اووئیل چه اول داسې گواه راوله د چاپه گواهئی چه زما اعتباروی. قرض غوښتونکی اووئیل چه د گواه په حیثیت خو بس الله کافی دې بیا هغه اووئیل چه ښه څوك کفیل (ضامن) راوله قرض غوښتونکی سړی اووئیل چه د ضامن په حیثیت سره هم بس الله کافی دې. هغه اووئیل چه تا رښتونې خبره اوکړه اود یومتعین مودې پورې ئې هغه ته قرض ورکړو. دې صاحب قرض واخستو او په سمندری سفرباندې روان شو اوبیا د خپل ضرورتونو پوره کولو سره د څه سورلئی (کشتئی وغیره) په لټون کښې شو چه په هغې کښې سور شی او د متعینه مودې پورې قرض ورکونکی ته اورسیدې شی (اود هغه قرض اداکړی) خو څه سورلی ملاؤنه شوه. آخر هغه یو لرګې واخستو او په هغې کښې ئې سورې اوکړو بیائې زر دیناره او یوخط د خپل طرف نه د قرض ورکونکی طرف ته (اولیکلو) په هغه سوړه کښې ورکړو اود هغې خله ئې بنده کړه اوهغه ئې سمندرته راوړو. بیائې اووئیل اې الله! تاته ښه پته ده چه ما د فلانکی سړی نه زر دینار قرض اخستې وو هغه زما نه ضامن اوغوښتو نو ما وئیلې وو چه د ضامن په حیثیت سره الله کافی دې نوهغه ماسره راضی شوې وو او (تاته پته ده چه) ما ډیر کوشش اوکړو چه څه سورلی ملاؤشی د کوم په ذریعه چه زه په مقرره موده کښې هغه قرض اورسولې شم لیکن ماته په هغې کښې کامیابی حاصله نه شوه.

په دې وجه زه اوس دا هم تاته حواله کوم (چه ته ئې اورسوه) بیاهغه هغه لرګې په سمندر لاهوکړو تردې چه هغه لرګې سمندرته اورسیدو اوهغه سړې واپس لاړو. اوس ئې هم دغه فکروو چه په څه شان به څه سورلې (کشتئې وغیره) ملاؤشي د کوم په ذریعه چه خپل ښارته لاړشي (بل طرف ته هغه بل سړې) چاچه قرض ورکړې وو هم په دې لټون کښې د سمندرغاړې ته راغلو چه ممکن ده چه چرته یوجهاز دهغه مال راوړې راشي لیکن هلته ده ته یو لرګې ملاؤشو په کوم کښې چه مال وو هغه دغه لرګې د خپل کور د خشاك دپاره واخستو بیائې چه کله هغه اوڅیرلو نودهغې نه دینار راووتل اویوخط هم. بیا هغه صاحب چاته چه هغه قرض ورکړې وو (څه ورځې پس) قرض ورکونکی ته زر روپئې راوړې راغلو او وئې وئیل چه په خدائې چه زه برابر په دې کوشش کښې ووم چه جهاز ملاؤشي او تاله ستا مال دراورسوم لیکن د هغه ورځ نه وړاندې په کومه ورځ چه زه سورشوم ماته هیڅ سورلې ملاؤ نه شوه نوقرض ورکونکي تپوس اوکړو چه آیا څه څیزدې هم زما په نوم رالیګلې وو؟ قرض داری ورته اووئیل چه هم دغه خودرته ښایم چه هیڅ یوجهاز ماته ددې جهازنه وړاندې ملاؤنه شو په کوم باندې چه نن رسیدلې یم. هغه اوئیل چه بیاخو الله تعالی ستا هغه قرض اداکړو کوم چه تا په لرګي کښې رالیګلې وو. ته ښه په خوشحالئی سره (کامیابئی سره) خپل زر دیناره واخله واپس لاړشه.

## رجال الحدیث

**ابوعبدالله:-** د ابوعبدالله نه مراد امام محمدبن اسماعیل بخاری رحمه الله پخپله دې.

**لیث:-** دالیث بن سعد رحمه الله دې. ([1])

**جعفربن ربیعة:-** جعفربن ربیعه به شجیل بن حسنه قرشي مصری رحمه الله دې. ([2])

**عبدالرحمن:-** دا عبدالرحمن بن هرمز اعرج رحمه الله دې. ([3])

**ابوهریره:-** اود حضرت ابوهریره تذکره تیره شوې ده. ([4])

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: فسالنی کفیلاً** سره واضح دې. ([5])

**شرائع من قبلنا زمونږ په شریعت کښې حجت دې که نه؟:-** امام بخاری رحمه الله دا قصه کفاله بالدیون په سلسله کښې پیش کړې ده خودا استدلال مبنی دې په دې خبره چه **شرائع من قبلنا** ددې شریعت مطهره دپاره حجت اومنلې شي اودامسئله مختلف فیها ده. جماهیر علماء یعنی حنفیه مالکیه اوحنابله فرمائي: **انه شرع لنا، ثابت الحکم علیها، إذا قص الله تعالی ورسوله صلی**

---

[1]) کشف الباری:۱/ ۳٤٤.

[2]) کشف الباری: کتاب التیمم باب فی الحضر إذا لم یجد الماء الخ.

[3]) کشف الباری:۲/۱۱.

[4]) کشف الباری:۱/۶۵۹.

[5]) عمدة القاری:۱۲/۱۶٤.

الله تعالى عليه وسلم لنا من غير انكارٍ.

یعنی شرائع من قبلنا چه کله زمونږ دپاره د الله تعالى او دهغه د رسول ﷺ د طرف نه بیان کړې شي او په دې باندې څه نکیرهم وارد نه وی نو هغه زمونږ دپاره حجت وی.(۱) دلته هم حضور پاك ﷺ تو له قصه بیان کړې او نکیرئی نه دې فرمائیلې. معلومه شوه چه کفاله بالدیون کښې هیڅ نقصان نشته. حضرات شوافع شرائع من قبلنا حجت نه ګرځوی.(۲)

## ۲: باب: قول الله تعالى: ﴿وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ﴾

### د الله تعالى ارشاد دې چه کومو خلقو ته تاسو قسمونه خوړلو سره وعده کړې دهغوی حصه اداکړئ.

**د ترجمة الباب مقصد:** - دلته امام بخارى رحمه الله دا ښائى په کفالت کښې کفیل د غیر مال التزام په خپله ذمه کوى لهذا دا لزوم به د کفیل په ذمه شی اودا به هم داسې وى لکه چه د حلف او معاهدې د وجې نه به د میراث استحقاق لازم کیدلو. ددې اجمال تفصیل دادې چه پخوانۍ زمانه کښې دا دستور وو چه ډیروکسانو به په خپل مینځ کښې معاهده کوله او په هغوی کښې به ئې یوبل ته وئیل دمى دمك وحربى حربك وترثنى وارثك الخ یعنی زما وینه ستا وینه ده زما جنګ ستا جنګ دې ته به زما وارث ئې او زه به ستا وارث یم. دغه شان که چرې ته جنايت کوې نوهم زما په ذمه به راځى وغيره اوچه کله به داقسم قسم اومعاهده کيدله نو ددې نه پس چه به کله په دغه قسم خوړونکو کښې څوك مړ کيدلو نو دهغه حليف به دهغه وارث وو. امام بخارى رحمه الله دا ښائى چه څنګه به په حلف او معاهده کښې ميراث جارى کيدلو او د يوبل به ذمه وار کيدلو دغه شان په کفالت کښې هم کفيل ذمه وارجوړيږى. لهذا هم دهغه په ذمه به وى چه د مکفول عنه د طرف نه مکفول له ته دين اداکړى.(۳)

[حديث ۲۱۷۰](۴) حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ إِدْرِيسَ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - (وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ) قَالَ وَرَثَةً (وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ) قَالَ كَانَ الْمُهَاجِرُونَ لَمَّا قَدِمُوا الْمَدِينَةَ يَرِثُ الْمُهَاجِرُ الأَنْصَارِيَّ دُونَ ذَوِي رَحِمِهِ لِلأُخُوَّةِ الَّتِي آخَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بَيْنَهُمْ، فَلَمَّا

---

(۱) ردالمحتار: ۶۳/۱ شرح العناية على الهداية مع فتح القدير: ۴۳۷/۱ الموسوعة الفقهية: ۱۸۲۶.

(۲) ردالمحتار: ۶۳/۱ شرح العناية على الهداية مع فتح القدير: ۴۳۷/۱ الموسوعة الفقهية: ۱۸۲۶.

(۳) إرشادالسارى: ۲۶۲/۵ عمدة القارى: ۱۶۶/۱۲.

(۴) أخرجه البخارى أيضاً فى التفسير سورة النساء باب ﴿وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ﴾ الاية. رقم: ۴۵۸ وفى كتاب الفرائض باب ذوى الارحام رقم: ۶۷۴۷ وأخرجه أبوداؤد فى سننه باب نسخ ميراث العقد بميراث الرحم رقم: ۲۹۲۲ والنسائى فى الكبرى حديث رقم: ۵۵۲۳. جامع الاصول: ۶۵۵/۱.

نَزَلَتْ ( وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ ) نَسَخَتْ، ثُمَّ قَالَ ( وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ ) إِلاَّ النَّصْرَ وَالرِّفَادَةَ وَالنَّصِيحَةَ، وَقَدْ ذَهَبَ الْمِيرَاثُ وَيُوصِي لَهُ.[۴۳۰۴، ۶۳۶۶]

**ترجمه:-** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه دَالله تعالی ارشاد دې اودَ هرچادَ پاره مونږ مقرر کړې دی موالی یعنی وارث اوچاسره چه معاهده اوشوه ستاسو. ددې قصه داسې ده چه مهاجرین کله مدینې منورې ته راغلل(اوحضورپاك په هغوی کښې رورولي قايم کړه) نومهاجر به دَ انصاری میراث اخستلو اودَ انصاری خپلوانوته به څه نه ملاویدل. ددې رورولئی دَ وجې نه کومه چه رسول الله ﷺ کړې وه. چه دا آیت نازل شو ( وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ ) نو دې ( وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ ) ئی منسوخ کړو او دَ ( وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ ) نه (مراد صرف) امداد اعانت او خیرخواهی پاتې شوه اوهغوی ته په میراث کښې حصه ملاویدل ختم شو البته دَ دوی دَپاره وصیت کیدلې شی.

## رجال الحدیث

① **صلت:-** دا صلت بن محمدبن عبدالرحمن خارکي رحمه الله دې.(1)

② **ابواسامه:-**دا ابواسامه حمادبن اسامه رحمه الله دې.(2)

③**ادریس بن یزید:-** ادریس بن یزیدبن عبدالله بن عبدالرحمن ازدی زعافری کوفی رحمه الله دې. دَ دوی کنیت ابوعبدالله دې.(3)

**اساتذه:-** هغوی رحمه الله دَ ابان پن تغلب، اسماعیل بن رجاء، حبیب بن ابی ثابت، حکم بن عتیبه، سلیمان اعمش، سماك بن حرب، طلحه بن مصرف، عبدالرحمن بن اسود بن یزید، عدی بن ثابت، عطیه بن سعد عوفی، علقمه بن مرثد، عمرو بن مرة، قابوس بن ابی طبیان او خپل پلار یزیدبن عبدالرحمن اذدی وغیرهم رحمهم الله نه روایات نقل کوی.(4)

**تلامذه:-** اودهغوی رحمه الله نه ایوب بن سویدرملی، ابواسامه، رحمیل بن معاویه، سفیان ثوری، حمزه بن ربیعه، ابوشهاب عبدربه بن نافع حناط، علی بن غراب فزاری، علی بن محمد بن زرارة، عمرو بن ابی سلمه تنیسی محمدبن عبید طنافسی، وکیع بن جراح، یحیی بن زکریا اودهغوی څوئی عبدالله بن ادریس وغیره هم رحمهم الله روایات نقل کوی.(5) یحیی بن معین او امام نسائی رحمهما الله فرمائی ثقة (6) دغه شان امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی ثقة.(7)

---

(1) کشف الباری کتاب الصلاة باب إذا لم يتم السجود.

(2) کشف الباری:۳/٤١٤.

(3) تهذیب الکمال:۱/۳۳۲.

(4) المصدرالسابق.

(5) تهذیب الکمال:۲/۳۳۲/۱ – ۳۳۳.

(6) تهذیب الکمال:۲/۳۳۲/۱ – ۳۳۳.

(7) تهذیب التهذیب :۱/۱۰۱.

او امام ابن حبان رحمه الله هم دهغوی ذکر په ثقات کښې کړې دې. [۱] عبدالله بن ادریس رحمه الله فرمائی چه ماته شعبة رحمه الله (امیرالمؤمنین فی الحدیث) اوونیل ستا پلار ماته ډیره فائده رارسولې ده. [۲] بل حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی **ثقة من السابعة**. [۳]

⑤ **طلحه** :- دا طلحه بن مصرف بن عمرو کوفی رحمه الله دې. [۴]

⑥ **سعید بن جبیر** :- دوی مشهورتابعی سعیدبن جبیر کوفی رحمه الله دې. [۵]

⑦ **ابن عباس** :- او دَحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما تذکره هم تیره شوې ده. [۶]

**ترجمة الباب سره مطابقت** :- دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې.

**تشریح** :- حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دوه آیاتونه تلاوت کړل رومبی آیت کښې ﴿مَوَالِيَ﴾ شرح اوکړه اوددې نه مراد وارثان دی او دا چه دا آیات ناسخ دې اوددې نه پس آیت تلاوت ئی اوکړو او هغه آیت منسوخ دې اوددې نه پس ئی بیا وضاحت اوکړو چه مهاجرین کله مدینې منورې ته راغلې وو نو حضورپاك په مهاجرینو اوانصارو کښې مواخاة یعنی رور ولی کړې وه. دَدې اثر دا اوشو که یوانصاری به مړکیدو نودَهغه مهاجر رور به دَ هغه وارث وو اودَ انصاری ذو رحم محرم کوم چه به رشته دار وو هغه به نه وارث کیدو. دا تقریر به په هغه صورت کښې وی چه کله المهاجر رفع سره او الانصاری نصب سره اولوستلې شی.

اوکه چرې الانصاری رفع سره اولوستلې شی نو بیابه مطلب داشی چه دَ مواخاة اثر به دا کیدلو که چرته یومهاجر مړکیدلو دَهغه وارث به هغه انصاری رور کیدلو کوم سره چه مواخاة یعنی رور ولی شوې وه. اودَ مهاجرذی رحم خپلوان به وارثان نه وو. [۷] بهر حال بیا دا حکم الله تبارك وتعالی ارشاد ﴿ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ﴾ والا آیت په ذریعه منسوخ شو.

**قوله: وقدذهب المیراث ویوصی له** :- ددې نه پس داخبره یادساتئی چه دا نسخ صرف په میراث کښې شوې ده باقی هغه چه خپل مینځ کښې به ئی دَ خیرخواهئی حسن سلوك امداد اواعانت کومه معاهدیه کوله هغه په خپل ځائی باقی ده. دَدې دَپاره ئی اوفرمائیل وقد ذهب المیراث ویوصی له چه میراث خولاړو وصیت اوس هم دَ هغوی دَپاره کولې شی. [۸]

---

[۱] کتاب الثقات: ۷۸/۶.

[۲] تهذیب التهذیب: ۱۰۱/۱.

[۳] تهذیب التهذیب: ۶۳/۱.

[۴] کشف الباری کتاب البیوع باب التنزه من الشبهات.

[۵] کشف الباری: ۴۱۸/۴.

[۶] کشف الباری: ۴۳۵/۱، ۲۰۵.

[۷] لامع الدراری: ۲۰۳/۶.

[۸] عمدة القاری: ۱۶۸/۱۲.

[حدیث ۲۱۷۱] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ قَدِمَ عَلَيْنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ فَآخَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَيْنَهُ وَبَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ. [ر: ۱۹۴۴]

**ترجمه** - حضرت انس بن مالك ﷺ فرمائی چه عبدالرحمن بن عوف ﷺ (د مکې مکرمې نه) هجرت اوکړو راغلو. رسول الله ﷺ په هغه کښې او حضرت سعد ﷺ کښې رور ولی قایم کړه.

## رجال الحدیث

⊙**قتیبه** - دا قتیبه بن سعید ثقفی رحمه الله دې (۲)

⊙ **اسماعیل** - دااسماعیل بن جعفر مدینی رحمه الله دې. (۳)

⊙ **حمید** - داحمید بن ابی حمید الطویل رحمه الله دې. (۴)

⊙**انس رضی الله عنه** - داحضرت انس بن مالك ﷺ دې د دوی تذکره هم ماقبل کښې تیره شوې ده. (۵) د دې حدیث نه غرض پخوانئی معاهدې اوقسمونه کوم چه په حق او د نیکئی په کارونو باندې مشتمل وو په اسلام کښې اثبات دې (۶) بل په دې حدیث باندې کلام د کتاب البیوع په شروع کښې تیرشوې دې. (۷)

[حدیث ۲۱۷۲] (۸) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ قَالَ قُلْتُ لأَنَسٍ رضى الله عنه أَبَلَغَكَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لاَ حِلْفَ فِي الإِسْلاَمِ». فَقَالَ قَدْ حَالَفَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بَيْنَ قُرَيْشٍ وَالأَنْصَارِ فِي دَارِي. [۵۷۳۳، ۶۹۰۹]

---

(۱) مرتخريجه فى كتاب البيوع ماجاء فى قول الله تعالى ﴿ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوا فِى الْأَرْضِ ﴾ الاية، حديث رقم:۲۰۴۹.

(۲) كشف الباری:۱۸۹/۲.

(۳) كشف الباری:۲۷۱/۲.

(۴) كشف الباری:۵۷۱/۲.

(۵) كشف الباری:۴/۲.

(۶) فتح الباری: ۵۹۶/۴ وإرشاد السای: ۲۶۳/۵.

(۷) انظركتاب البيوع باب ماجاء فى قول الله تعالى: ﴿ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوا فِى الْأَرْضِ ﴾ الاية، حديث رقم:۲۰۴۹.

(۸) وأخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الفضائل الصحابة باب مواخاة النبى صلى الله تعالى عليه وسلم بين اصحابه رضى الله تعالى عنهم حديث رقم:۶۴۱۰ وأخرجه امنا أبوداؤد فى سننه فى كتاب الفرائض باب فى الحلف حديث رقم:۳۹۲۶ وانظر فى جامع الاصول النوع الثانى فى الحلف والاخاء. رقم:۴۸۰۰ وتحفة الاشراف رقم: ۳۲۰۲.

**ترجمه**:- حضرت عاصم بن سلیمان فرمائی چه ما دَحضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه تپوس اوکړو آیا تاسو ته دَ حضورپاك دا حدیث رسیدلې دې چه دَ جاهلیت عهدوپیمان په اسلام کښې نشته هغوی اوفرمائیل حضورپاك صلی الله علیه وسلم پخپله زما په کورکښې په قریش او انصارکښې عهد وپیمان کړې وو

## رجال الحدیث

① **محمدبن سباح**:- دامحمدبن سباح بن سفیان دولابی ابوجعفر رحمه الله دې.[1]

② **اسماعیل بن زکریاء**:- دااسماعیل بن زکریا ابوزیاد اسدی خلقانی کوفی رحمه الله دې.[2]

③ **عاصم**:- داعاصم بن سلمیان تمیمی ابوعبدالرحمن الاحول رحمه الله دې.[3]

④ **انس**:- داحضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې.[4]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت ظاهردې.

**قوله: لاحلف في الاسلام**:- قوله لاحلف فی الاسلام الخ مطلب دادې چه کوم جاهلانه رسم اورواج باندې مشتمل دَحلف طریقه وه هغه خو اسلام نه برداشت کړه اونه ئې خوښه کړه. ددې نه علاوه یوبل سره حسن سلوك امداد اواعانت باندې حلف اوعهدوپیمان باقی اوساتل اوپخپله رسول الله صلی الله علیه وسلم په په مهاجرینو کښې یوځل دَ هجرته وړاندې مواخات اوکړل او بیا دَمدینې منورې دَهجرت نه پس په مهاجرینو او انصاروکښې مواخات اوکړل اودَ میراث په سلسله کښې چه کوم عهدوپیمان یوه سلسله وه هغه روستو منسوخ کړې شوه.[5]

## ۳-باب: من تکلف عن میتٍ دینًا، فلیس له أن یرجع وَبِهِ قَالَ الْحَسَنُ.

کوم سړې چه دَ مړی دَ قرض ضمانت اوکړی هغه رجوع نه شی کولې اوامام حسن بصری رحمه الله هم داسې وئیلی دی.

**دَترجمة الباب مقصد**:- که چرې څوك دَ مړی کفیل جوړشی نواوس ده ته دَ رجوع حق حاصل نه دې هغه کفیل دَخپل کفالت نه رجوع نه شی کولې ځکه چه داکفالت لازمه دې. دویم مطلب داهم کیدې شی که چرې دَ مړی دَطرف نه څوك کفیل جوړشی بیا هغه دَمړی دین اداکړی نودَ دین دَ اداکولونه پس هغه کفیل دَ مړی ترکه ته رجوع کولې شی که نه شی کولې؟ نودَدې

---

[1] کشف الباری: أبواب الاذان باب من استولی قاعداً فی وتر من صلوته.

[2] کشف الباری کتاب البیوع باب ماذکرفی الاسواق.

[3] کشف الباری کتاب الوضوء باب الماء الذی یغسل به شعر الانسان.

[4] کشف الباری:۲/ ٤.

[5] فتح الباری:٤/ ۵۹۷.

متعلق امام بخاری رحمه الله فرمائی چه ده ته د رجوع حق حاصل نه دې (۱) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه رومبې مطلب دوصیت مقصدسره زیات مناسبت لری. (۲) اوعلامه قسطلانی رحمه الله صرف هم رومبې مطلب بیان کړې دې (۳)

**د فقهاؤ اختلاف**:- که چرې دويم مطلب مراد واخستې شی نودامسئله مختلف فیهاده. جمهور علماء په کوم کښې چه صاحبین رحمهما الله او امام شافعی رحمه الله هم شامل دې فرمائی چه کوم سړې دمړی کفیل جوړشو اوهغه دین ادا کړو نواوس ده ته د مړی ترکې ته د رجوع هیڅ حق حاصل نه دې. امام مالك رحمه الله فرمائی که چرې هغه سړې اووائی چه ما خود رجوع په نیت سره کفالت کړې وو نو په دې صورت کښې ده ته درجوع کولوحق حاصل دې کنی نه دې. امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی که چرته مړی مال پریخودې وی نو په اندازه د دین د رجوع کولوحق شته کنی دکفالت څه اعتبارنشته. یعنی د دین اداکول به دهغه د طرف نه تبرع ګڼړلې شی. د رجوع کولواختیاربه نه شی ورکولې. حضرت حسن بصری رحمه الله هم د عدم رجوع قائل دې (۴)

[حدیث ۲۱۷۳] (۵) حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ - رضى الله عنه - أَنَّ النَّبِىَّ - صلى الله عليه وسلم - أُتِىَ بِجَنَازَةٍ، لِيُصَلِّىَ عَلَيْهَا، فَقَالَ «هَلْ عَلَيْهِ مِنْ دَيْنٍ». قَالُوا لاَ. فَصَلَّى عَلَيْهِ، ثُمَّ أُتِىَ بِجَنَازَةٍ أُخْرَى، فَقَالَ «هَلْ عَلَيْهِ مِنْ دَيْنٍ». قَالُوا نَعَمْ. قَالَ «صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ». قَالَ أَبُو قَتَادَةَ عَلَىَّ دَيْنُهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَصَلَّى عَلَيْهِ. [ر: ۲۱۶۷]

**ترجمه**:- د رسول الله ﷺ مخې ته يوه جنازه راوړلې شوه د جنازې د مونځ کولودپاره. حضورپاك تپوس اوکړو آیا په ده باندې قرض شته؟ خلقو ونیل نه. حضورپاك په هغه باندې جنازه اوکړه بیا دویمه جنازه راوړلې شوه. رسول الله ﷺ تپوس اوکړو په ده باندې قرض وو؟ خلقو ونیل اوجی. حضورپاك صحابه کرامو ته اوفرمائیل تاسو په خپل ملګری باندې جنازه اوکړئی. ابوقتاده رضی الله عنه عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! د ده قرض ماپه خپل ځان واخستو نوبیا حضورپاك جنازه اوکړه.

## رجال الحدیث

① **ابوعاصم**:- دا ابوعاصم النبیل ضحاك بن مخلد رحمه الله دې. (۶)

---

(۱) لامع الدراری: ۶/۲۰۶ – ۲۰۷.

(۲) فتح الباری: ۴/۵۹۸.

(۳) إرشاد الساری: ۵/۳۶۴.

(۴) شرح ابن بطال: ۶/۳۵۳ لامع الدراری: ۶/۲۰۷.

(۵) مرتخریجه فی کتاب الحوالة فی باب إذا حال دین المیت علی رجل جاز.

(۶) کشف الباری: ۲/۱۵۲.

⑤ **یزید**: - دا یزید بن ابی عبید رحمه الله دی. (۱)

⑥ **سلمه بن اکوع**: - دامعروف صحابی حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه دی. (۲)

**دحدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت**: - دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: قال ابوقتادة علی دینه په ذریعه سره واضح دی. (۳)

په دی حدیث تفصیلی کلام کتاب الحوالة کښې تیر شوی. (۴)

**دعلامه کرمانی رحمه الله په قول دعلامه عینی رحمه الله رد**: - علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث دامام بخاری رحمه الله ثلاثیات نه اتم حدیث دی. (۵) علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث په کتاب الحواله کښې تیرشوی دی نودا اتم ثلاثی نه دی بلکه اووم دی اوامام بخاری رحمه الله کتاب الحواله او کتاب الکفاله کښې دا حدیث په توګه د مستدل ددی د پاره پیش کړی دی چه د بعض فقهاؤ په نیز حواله اوکفاله متحدالمعنی دی او بعض فقهاؤ په نیز متقارب المعنی دی. (۶)

[حدیث ۲۱۷۴] (۷) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو سَمِعَ مُحَمَّدَ بْنَ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهم - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لَوْ قَدْ جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ، قَدْ أَعْطَيْتُكَ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا». فَلَمْ يَجِئْ مَالُ الْبَحْرَيْنِ حَتَّى قُبِضَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَلَمَّا جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ أَمَرَ أَبُو بَكْرٍ فَنَادَى مَنْ

---

(۱) کشف الباری: ۱۸۲/۴.

(۲) کشف الباری: ۱۸۳/۴.

(۳) عمدة القاری: ۱۶۶/۱۲.

(۴) کتاب الحوالة باب إذا احال دین المیت علی رجل جاز.

(۵) شرح الکرمانی رحمه الله لصحیح البخاری: ۱۲۳/۱۰.

(۶) عمدة القاری: ۱۶۹/۱۲.

(۷) أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الهبة باب إذا وهب هبة او وعدالخ رقم: ۲٤۵۸ وفی کتاب الخمس باب ومن الدلیل علی أن الخمس لنوائب المسلمین رقم: ۲۹۶۸۱ وفی أبواب الجزیة والموادعة باب ماأقطع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم من البحرین رقم: ۲۹۹۳ وفی کتاب المغازی کتاب قصة عمان وبحرین رقم: ٤۱۲۲ وأخرجه مسلم فی الفضائل باب ماسئل رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم شیئًا. قط فقال لا رقم: ۲۳۱٤ وأخرجه احمد فی مسندجابر بن عبدالله رضی الله تعالی عنهما رقم: ۱٤۷۲ والطحاوی فی مشکل الاثار باب بیان مشکل ماروی عن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فیما الخ رقم: ۳۰٤ وفی مسندالشافعی رحمه الله تعالی. فی کتاب قسم الفئ رقم: ۱٤۰۷ وفی مسند أبی یعلی فی مسندجابررضی الله تعالی عنه رقم: ۱۹۶۶ وأخرجه الحمیدی فی مسنده فی أحادیث جابر بن عبدالله رضی الله تعالی عنهما رقم: ۱۲۳۳ وأخرجه البیهقی فی سننه فی کتاب قسم الفئ والغنیمة باب بیان مصرف أربعة اخماس الفئ الخ رقم: ۱۲۵۲۵ وابن أبی شیبة فی مصنفه: ۲۵۳/۶ جامع الاصول: ۹۳۸۳/۱، ۹۲۶۸/۱۱.

كَانَ لَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- عِدَةٌ أَوْدَيْنٌ فَلْيَأْتِنَا. فَأَتَيْتُهُ، فَقُلْتُ إِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ لِي كَذَا وَكَذَا، فَحَثَى لِي حَثْيَةً فَعَدَدْتُهَا فَإِذَا هِيَ خَمْسُمِائَةٍ، وَقَالَ خُذْ مِثْلَيْهَا.[۲۴۵۸، ۲۵۳۷، ۲۹۶۸، ۲۹۹۳، ۴۱۲۲]

**ترجمه**:- حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه ارشاد فرمائي چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل که چرته دَ بحرين خراج راغلو نوزه به تاته داسې او داسې (يعنى دواړه لپې ډکې کړې) درکړم بيا دَ بحرين خراج راتلونه وړاندې دَرسول الله ﷺ وفات اوشو (دَ ابوبکر رضي الله عنه په خلافت کښې) دَ بحرين نه مال راغلو نوهغه اعلان اوکړو چه حضورپاك چاسره کومه وعده کړې وى يا په حضورپاك باندې دَ چاڅه قرض وى نوهغه دې حاضرشى. ما چه دا اعلان واوريدو نو ابوبکر صديق رضي الله عنه له لاړم. ما اووئيل حضورپاك ماته دَ دومره دومره مال راکولووعده فرمائيلې وه. هغه يوه لپه ډکه کړه ماته ئې روپئى راکړې ما چه اوشميرلې نو پنځه سوه وې هغه وئيل چه دَدې په ډبل نورې واخله.

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله**:- داعلى بن عبدالله بن جعفر المعروف بابن المدينى رحمه الله دې.[1]

② **سفيان**:- دا سفيان بن عيينه رحمه الله دې.[2]

③ **عمرو**:- داعمروبن دينارمكى رحمه الله دې.[3]

④ **محمدبن على**:- دامحمدبن على بن حسين رحمه الله دې.[4]

⑤ **جابربن عبدالله**:- دامشهورصحابى حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه دې.[5]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت**:- حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه چه دَ رسول الله ﷺ نائب او قائمقام وو. هغوى دَ حضور اکرم ﷺ دَ طرف نه دَدين دَاداکولوذمه وارى واخسته نودا ښکاره خبره ده چه کفالت شو. لهٰذا معلومه شوه چه **کفايت عن الميت** جائزدې.[6]

بحرين بصره اوعمان په مينځ کښې يوځائې دې اوهلته حضرت علاء بن حضرمى رضي الله عنه دَحضورپاك دَ طرف نه عام مقرروو.[7]

---

[1]) کشف البارى:۲۹۷/۳.

[2]) کشف البارى:۳۳۸/۱، ۱۰۲/۳.

[3]) کشف البارى:۳۰۹/٤.

[4]) کشف البارى کتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء من الخرجين الخ.

[5]) کشف البارى کتاب الوضوء باب صب النبى صلى الله تعالى عليه وسلم وضوء الخ.

[6]) عمدة القارى:۱۷۰/۱۲.

[7]) عمدة القارى:۱۷۰/۱۲.

# ۴- باب: جوار أبي بكر في عهد النبي ﷺ وعقده

## د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په زمانه كښې

## (ديو كافر) ته امن وركول او هغه سره عهد كول

**دترجمة الباب مقصد:** - امام بخاري رحمه الله دا ترجمة الباب د يو خاص وجې نه ذكركړې دې جوار وائي چاته پناه وركولو ته او په دې كښې درې كسان وي يومجير (پناه وركونكې) يومجار چاته چه پناه وركړې شي او يومجارمنه د چا د ضررنه چه د بچ كيدو دپاره پناه اخستونكې پناه اخلي او پنا وركونكې پناه وركوي. په كفالت كښې هم دا درې څيزونه وي كفيل مكفول له او مكفول عنه اوامام بخاري رحمه الله چه په دې باب كښې د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه كومه واقعه بيان كړې ده د دې نه دامعلومه شوه چه قاعده داوه چه مجاد مجارمنه طرف نه د مجيرد وجې نه څه تكليف نه رسيدلو په دې وجه د ابن الدغنه د وجې نه قريشو حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته د تكليف رسولونه لاس راښكلو نو امام بخاري رحمه الله داسې فرمائي چه هم دغه شان په كفاله كښې د مكفول له د طرف نه مكفول عنه ته د كفيل د وجې نه څه تكليف نه رسولو او في عهدالنبي صلى الله تعالى عليه وسلم قيدددې خبرې د خودلودپاره اولګولې شو چه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په زمانه كښې ابن الدغنه سره په دغه عهدوپيمان كښې شركت كړې وو اود هغه په جواركښې داخل شوې وو او رسول الله ﷺ په دې باندې هيڅ نكيرنه وو فرمائيلې. بلكه د سكوت په ذريعه ئې د دې تائيدكولوسره د دې تقريرفرمائيلې. د دې نه معلومه شوه چه دامعتبردې اوچه كله دا معتبردې نو كفالت هم معتبردې ځكه چه د دې نوعيت بالكل هم دغه شان دې. (۱)

[حديث ۲۱۷۵] (۲) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - زَوْجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَتْ لَمْ أَعْقِلْ أَبَوَىَّ إِلاَّ وَهُمَا يَدِينَانِ الدِّينَ . وَقَالَ أَبُو صَالِحٍ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ لَمْ أَعْقِلْ أَبَوَىَّ قَطُّ ، إِلاَّ وَهُمَا يَدِينَانِ الدِّينَ ، وَلَمْ يَمُرَّ عَلَيْنَا يَوْمٌ إِلاَّ يَأْتِينَا فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ - صلى

---

(۱) الابواب التراجم لشيخ الحديث العلامة زكريا كاندهلوى رحمه الله ص: ۱۶۹.

(۲) إخرجه البخاري أيضا فى أبواب المساجد باب المسجد يكون فى الطريق من غيرضرر بالناس. رقم:۴۶۴ وفى كتاب فضائل الصحابة باب هجرة النبى صلى الله تعالى عليه وسلم واصحابه إلى المدينة رقم:۳۶۹۲ وابن حبان فى صحيحه فى كتاب التاريخ باب بدئ الخلق رقم:۶۲۷۷ والامام أحمد فى مسنده: ۱۹۸/۶ فى حديث سيدة عائشة رضى الله تعالى عنها رقم:۲۵۶۶۷ ولم يخرج هذا الحديث سوى الامام البخارى رحمه الله تعالى من أصحاب الكتب السنة انظر تحفة الاشراف: ۴۰۰/۱۳ رقم: الحديث ۱۶۵۵۲ جامع الاصول رقم الحديث:۹۲۰۳.

الله عليه وسلم - طَرَفَي النَّهَارِ بُكْرَةً وَعَشِيَّةً، فَلَمَّا ابْتُلِيَ الْمُسْلِمُونَ خَرَجَ أَبُو بَكْرٍ مُهَاجِرًا قِبَلَ الْحَبَشَةِ، حَتَّى إِذَا بَلَغَ بَرْكَ الْغِمَادِ لَقِيَهُ ابْنُ الدَّغِنَةِ - وَهُوَ سَيِّدُ الْقَارَةِ - فَقَالَ أَيْنَ تُرِيدُ يَا أَبَا بَكْرٍ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَخْرَجَنِي قَوْمِي فَأَنَا أُرِيدُ أَنْ أَسِيحَ فِي الْأَرْضِ فَأَعْبُدَ رَبِّي. قَالَ ابْنُ الدَّغِنَةِ إِنَّ مِثْلَكَ لَا يَخْرُجُ وَلَا يُخْرَجُ، فَإِنَّكَ تَكْسِبُ الْمَعْدُومَ، وَتَصِلُ الرَّحِمَ، وَتَحْمِلُ الْكَلَّ، وَتَقْرِي الضَّيْفَ، وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ، وَأَنَا لَكَ جَارٌ فَارْجِعْ فَاعْبُدْ رَبَّكَ بِبِلَادِكَ. فَارْتَحَلَ ابْنُ الدَّغِنَةِ، فَرَجَعَ مَعَ أَبِي بَكْرٍ، فَطَافَ فِي أَشْرَافِ كُفَّارِ قُرَيْشٍ، فَقَالَ لَهُمْ إِنَّ أَبَا بَكْرٍ لَا يَخْرُجُ مِثْلُهُ، وَلَا يُخْرَجُ، أَتُخْرِجُونَ رَجُلًا يُكْسِبُ الْمَعْدُومَ، وَيَصِلُ الرَّحِمَ، وَيَحْمِلُ الْكَلَّ، وَيَقْرِي الضَّيْفَ، وَيُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ. فَأَنْفَذَتْ قُرَيْشٌ جِوَارَ ابْنِ الدَّغِنَةِ وَآمَنُوا أَبَا بَكْرٍ وَقَالُوا لِابْنِ الدَّغِنَةِ مُرْ أَبَا بَكْرٍ فَلْيَعْبُدْ رَبَّهُ فِي دَارِهِ، فَلْيُصَلِّ وَلْيَقْرَأْ مَا شَاءَ، وَلَا يُؤْذِينَا بِذَلِكَ، وَلَا يَسْتَعْلِنْ بِهِ، فَإِنَّا قَدْ خَشِينَا أَنْ يَفْتِنَ أَبْنَاءَنَا وَنِسَاءَنَا. قَالَ ذَلِكَ ابْنُ الدَّغِنَةِ لِأَبِي بَكْرٍ، فَطَفِقَ أَبُو بَكْرٍ يَعْبُدُ رَبَّهُ فِي دَارِهِ، وَلَا يَسْتَعْلِنُ بِالصَّلَاةِ وَلَا الْقِرَاءَةِ فِي غَيْرِ دَارِهِ، ثُمَّ بَدَا لِأَبِي بَكْرٍ فَابْتَنَى مَسْجِدًا بِفِنَاءِ دَارِهِ، وَبَرَزَ فَكَانَ يُصَلِّي فِيهِ، وَيَقْرَأُ الْقُرْآنَ، فَيَتَقَصَّفُ عَلَيْهِ نِسَاءُ الْمُشْرِكِينَ وَأَبْنَاؤُهُمْ، يَعْجَبُونَ وَيَنْظُرُونَ إِلَيْهِ، وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ رَجُلًا بَكَّاءً لَا يَمْلِكُ دَمْعَهُ حِينَ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ، فَأَفْزَعَ ذَلِكَ أَشْرَافَ قُرَيْشٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَأَرْسَلُوا إِلَى ابْنِ الدَّغِنَةِ فَقَدِمَ عَلَيْهِمْ، فَقَالُوا لَهُ إِنَّا كُنَّا أَجَرْنَا أَبَا بَكْرٍ عَلَى أَنْ يَعْبُدَ رَبَّهُ فِي دَارِهِ، وَإِنَّهُ جَاوَزَ ذَلِكَ، فَابْتَنَى مَسْجِدًا بِفِنَاءِ دَارِهِ، وَأَعْلَنَ الصَّلَاةَ وَالْقِرَاءَةَ، وَقَدْ خَشِينَا أَنْ يَفْتِنَ أَبْنَاءَنَا وَنِسَاءَنَا، فَأْتِهِ فَإِنْ أَحَبَّ أَنْ يَقْتَصِرَ عَلَى أَنْ يَعْبُدَ رَبَّهُ فِي دَارِهِ فَعَلَ، وَإِنْ أَبَى إِلَّا أَنْ يُعْلِنَ ذَلِكَ فَسَلْهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْكَ ذِمَّتَكَ، فَإِنَّا كَرِهْنَا أَنْ نُخْفِرَكَ، وَلَسْنَا مُقِرِّينَ لِأَبِي بَكْرٍ الِاسْتِعْلَانَ. قَالَتْ عَائِشَةُ فَأَتَى ابْنُ الدَّغِنَةِ أَبَا بَكْرٍ، فَقَالَ قَدْ عَلِمْتَ الَّذِي عَقَدْتُ لَكَ عَلَيْهِ، فَإِمَّا أَنْ تَقْتَصِرَ عَلَى ذَلِكَ وَإِمَّا أَنْ تَرُدَّ إِلَيَّ ذِمَّتِي، فَإِنِّي لَا أُحِبُّ أَنْ تَسْمَعَ الْعَرَبُ أَنِّي أُخْفِرْتُ فِي رَجُلٍ عَقَدْتُ لَهُ. قَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنِّي أَرُدُّ إِلَيْكَ جِوَارَكَ، وَأَرْضَى بِجِوَارِ اللَّهِ. وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمَئِذٍ بِمَكَّةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «قَدْ أُرِيتُ دَارَ هِجْرَتِكُمْ، رَأَيْتُ سَبْخَةً ذَاتَ نَخْلٍ بَيْنَ لَابَتَيْنِ». وَهُمَا الْحَرَّتَانِ، فَهَاجَرَ مَنْ هَاجَرَ قِبَلَ الْمَدِينَةِ حِينَ ذَكَرَ ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، وَرَجَعَ إِلَى الْمَدِينَةِ بَعْضُ مَنْ كَانَ هَاجَرَ إِلَى أَرْضِ الْحَبَشَةِ، وَتَجَهَّزَ أَبُو بَكْرٍ مُهَاجِرًا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «عَلَى رِسْلِكَ فَإِنِّي أَرْجُو أَنْ يُؤْذَنَ لِي». قَالَ أَبُو بَكْرٍ هَلْ تَرْجُو ذَلِكَ بِأَبِي أَنْتَ قَالَ «نَعَمْ». فَحَبَسَ أَبُو بَكْرٍ نَفْسَهُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لِيَصْحَبَهُ وَعَلَفَ رَاحِلَتَيْنِ كَانَتَا عِنْدَهُ وَرَقَ السَّمُرِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ. [ر: ۴۶۴]

**ترجمه**: - حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها چه د حضورپاك بى بى ده ارشاد فرمائى چه ماد كله نه خپل مور پلار پيژندلى دى نوهغوى مې هم د اسلام په دين باندې ليدلى دى او په مونږ باندې

هيڅ يوه ورځ داسې نه ده تېره شوې چه حضورپاك ﷺ به د ورځې په دواړو غاړو يعنى سحراومابنام نه وى راغلې. كله چه مسلمانانوته د كافرانودلاسه سخت تكليف كيدو نو حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه لاړو اوحبشه ته هجرت اوكړو تردې چه برك الغماد نومې ځائى ته اورسيدو نوهغه ته ابن الدغنه ملاؤ شو چه د قاره قبيلې سرداروو هغه تپوس اوكړو ابوبكر! د كوم ځائى اراده ده؟ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه جواب وركړو زما قوم زه اوويستلم اوس زه غواړم چه د الله تعالى په زمكه كښې سيل اوكړم اود هغه عبادت اوكړم. ابن الدغنه اووئيل چه ستا په شان سړې نه اوځى او نه ويستلې شى ته خو چه خلقو سره كوم څيزنه وى هغه ګټې او هغوى ته ئى وركوې (يعنى د غريبانانوخيال ساتونكې ئى) او صله رحمى كوې اود بال بچ بوج په خپل ځان باندې اوچته وې اود ميلمه ميلمستياكوې او په حادثاتوكښې دحق مرسته كوې (يعنى په حق خبره باندې قايم پاتې كيدو د وجې په چاباندې راتلونكې مصيبت دفاع كوې) زه تا په خپله پناه كښې اخلم. زه ته خپل ښار ته واپس شه اود خپل رب عبادت كوه. نو ابن الدغنه هم سفراوكړو او ابوبكر ئى واخستو مكې ته راغلو. د قريشو سردارانوله راغلو هغوى ته ئى اووئيل ګورئى د ابوبكر په شان سړې چه هغه ددې ځائى نه اوځى يا اوويستلې شى (سخته د افسوس خبره ده) تاسو داسې سړې اوباسئى چه د غريبانانو پالنه كوى صله رحمى كوى اود بال بچ بوج په خپل سر اوچته وى د ميلمنو ميلمستياكوى او په حادثاتوكښې دحق خبرې ملګرتياكوى (يعنى په حق باندې قايم پاتې كيدو د وجې نه په يوانسان باندې راتلونكې مصيبت نه حفاظت كوى) نود قريشو كافرانو د ابن الدغنه پناه منظوركړه اوحضرت ابوبكر رضي الله عنه ته ئى امن وركړو. مګر ابن الدغنه اووئيل چه تاسو ابوبكر صديق رضي الله عنه ته اووائې چه په خپل كوركښې د خپل رب عبادت كوه هم هلته مونځ كوه او چه څه دې خوښه وى هغه لوله او مونږ له (په مونځ اوقران لوستلو سره) تكليف مه راكوه اومه ئى په ښكاره لوله خكه چه مونږ ويريږو چه زمونږ ښځې اوځامن په فتنه كښې پرينوځى. ابن الدغنه حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته داهرڅه اووئيل اوحضرت ابوبكر رضي الله عنه (دهغه ورځ نه) په خپل كور كښې عبادت كولو او علانيه ئى مونځ كول او قرآن لوستل پريخودل. بيا دابوبكر صديق رضي الله عنه په زړه كښې راغلل نود خپل كور د صحن مخې ته ئى يوجمات جوړكړو او بهر راووتلو هم هلته ئى مونځ كول او نورو باندې كول شروع كړه او چه كله به ئى قرآن لوستلو نود مشركانوښځو او بچو به په هغوى باندې ګڼړه جوړه كړه او په حيرانتياسره به ئى هغوى ته كتل. حضرت ابوبكر رضي الله عنه ډير ژړيدونكې سړې وو كله چه به ئى قرآن لوستلو نو په خپلو اوښكو به ئى قابونه شوه راوستلې. د قريشو سردارانو چه داكيفيت اوليدلو نو اوويريدل او ابن الدغنه ته ئى اووئيل چه راشه. هغه مكې مكرمې ته راغلو كفارقريش هغه ته اووئيل مونږ خو ابوبكرته په دې شرط باندې امان وركړې وو چه هغه دې په خپل كوركښې عبادت كوى خوهغه د دغه شرط خلاف د كور په صحن كښې جمات جوړكړو او په ښكاره مونځ او قرآن لولى. مونږ ويريږو چه زمونږ ښځې اوبچې چرته په فتنه كښې پرينوځى (ته ابوبكرته اووايه) چه په خپل كوركښې دې د خپل رب عبادت كوى اوكه هغه نه منى او په ښكاره عبادت كول غواړى نوهغه ته اووايه چه ستا د مان نه دې اوځى. خكه چه مونږ ته ستا امان ماتول ښه نه ښكارى. اومونږ خو به ابوبكر په ښكاره

عبادت کولوهیڅ کله هم پرینږدو. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه دې اوریدوسره ابولدغنه حضرت ابوبکر رضی الله عنه له راغلو اوونې وئیل چه تاته پته ده ما چه په کوم شرط باندې ذمه واری اخستې وه یاخوته په خپل شرط باندې اودرېږه یا زماغاړه خلاصه کړه ځکه چه زه دا نه خوښوم چه په عربو کښې دا مشهوره شی چه زماذمه واری ئې ماته کړه. حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوونیل چه ته خو خپله ذمه واپس واخله اوزه دالله تعالی په امان باندې راضی یم او په دغه ورځوکښې حضورپاك هم په مکه کښې وو. رسول الله ﷺ ذکراوکړو چه ماته په خوب کښې ستاسو د هجرت مقام خودلې شوې دې ما یوه شاړه زمکه لیدلې ده چرته چه د کهجورو ونې دی چه د تورو کانړی ژنو زمکو په مینځ کښې ده. ‹یعنی د مدینې منورې دواړه کانړی ژنې غاړې› د رسول الله ﷺ داخبره ئې چه واوریده چاچه هجرت اوکړو نو هغوی د مدینې طرف ته هجرت اوکړو اوڅه خلق چه اول حبشه ته هجرت کړې وو هغوی مدینې طرف ته راغلل. او ابوبکر رضی الله عنه د هجرت تیارې شروع کړو. بیا حضورپاك هغوی ته اوفرمائیل چه لږ شان حصارشه زه دې پوهه کوم ماته به هم ‹دالله تعالی د طرف نه› د هجرت اجازت ملاؤشی حضرت ابوبکر عرض اوکړو زما مور پلاردې په تاسو قربان شی ستاسو دا امید شته چه داسې اجازت به ملاؤشی؟ حضورپاك اوفرمائیل او. په دې وجه حضرت ابوبکر رضی الله عنه حصارشوچه هم حضور پاك سره به هجرت کوی او خپلو دواړو اوښوباندې ئې څلورمیاشتې د کیکر پاڼې خوړلې.

## رجال الحدیث

① **یحیی بن بکیر**:- دا یحیی بن بکیر ابوزکریامخزومی رحمه الله دې.[1]
② **لیث**:- دا لیث بن سعد رحمه الله دې.[2]
③ **عقیل**:- دا عقیل بن خالدبن عقیل رحمه الله دې.[3]
④ **ابن شهاب**:- دامحمدبن مسلم بن شهاب زهری رحمه الله دې.[4]
⑤ **عروه بن الزبیر**:- داعروه بن زبیربن العوام رحمه الله دې.[5]

**قال ابوصالح حمدثنی عبدالله نه څوک مراددی؟**:- ابونعیم اصیلی او جیانی وغیره رحمهم الله فرمائی چه د ابوصالح نه مراد سلیمان بن صالح مروزی رحمه الله دې. د چالقب چه سلمویه دې او دهغوی د شیخ عبدالله نه مراد عبدالله بن مبارك او علامه قسطلانی رحمه الله صرف هم دا قول کرکړې دې.[6]

اوعلامه اسماعیلی رحمه الله فرمائی چه د ابوصالح نه مراد عبدالله بن صالح کاتب لیث دې او

---

[1]) کشف الباری:۱/۳۲۳.
[2]) کشف الباری:۱/۳۲٤.
[3]) کشف الباری:۱/۳۲۵، ۳/٤۵۵.
[4]) کشف الباری:۱/۳۲۶.
[5]) کشف الباری:۱/۲۹۱، ۲/٤۳۶.
[6]) فتح الباری: ٤/۶۰۱ عمدة القاری: ۱۲/۱۷۳ إرشاد الساری:۵/۲۶۷.

دهغوی شیخ عبدالله نه مراد علی ابن وهب رحمه الله دې [۱] علامه عینی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله دَ رومبی قول تصحیح کړې ده. دَدې دَپاره ابن السکن عن الفربری عن البخاری رحمه الله تعالی والا روایت کښې صراحة نقل دی چه قال أبوصالح سلمویه حدثنا عبدالله بن مبارک رحمه الله تعالی. [۲]

⑥ **سلیمان بن صالح لیثی**:- دَهغوی کنیت ابوصالح دې او هغوی په سلمویه مشهوردی اوداهم ونیلې شوی دی چه دَ هغوی نوم سلیمان بن داؤد دې. [۳]

**اساتذه**:- هغوی رحمه الله اوس بن عبدالله بن بریده اسلمی، عبدالله بن مبارک، علی بن مجاهد او فضیل بن عیاض وغیره رحمهم الله نه روایات نقل کوی.

**تلامذه**:- احمدبن محمدبن شبویه، اسحاق بن راهویه، حامدبن آدم، عمرو بن یحیی بن حارث حمصی، محمدبن عبدالعزیز بن ابی رزمة او ابوعلی محمدبن علی بن حمزة مروزی وغیرهم رحمهم الله دَهغوی نه روایات نقل کوی. [۴]

تاریخ المروزی کښې ابوعلی محمدبن علي مروزی رحمه الله نه نقل دی چه حضرت عبدالله بن مبارک، سلیمان بن صالح مروزی رحمه الله ته دَحدیث په معامله کښې به ئې خصوصی اهمیت ورکولو. [۵]

⑦ **عبدالله**:- دا حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله دې. [۶]

⑧ **یونس**:- دا یونس بن یزید رحمه الله دې. [۷]

⑨ **عائشه رضی الله تعالی عنها**:- دا ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ده. [۸]

**حل اللغات**:- **أن اسیح**: ساح یسیح سیاحةً من ضرب سیل کول، په مخ دَ زمکې باندې تلل، په ملکونو او ښارونو کښې ګرځیدل. په اصل کښې دا سیح نه دې یعنی په مخ دَ زمکې باندې بهیدونکې اوبه. [۹]

**الکل**: ثقل، بوج، بال بچ. [۱۰]

**فیتقصف**: په یوځیزباندې وردانګل، ګڼره جوړول، اوبه اصل کښې دا **قصف** یعنی کسر (ماتیدلو)

---

[۱] فتح الباری: ٤/٦٠١ عمدة القاری: ١٢/١٧٣ إرشاد الساری: ٥/٢٦٧.

[۲] فتح الباری: ٤/٦٠١ عمدة القاری: ١٢/١٧٣ إرشاد الساری: ٥/٢٦٧.

[۳] تهذیب الکمال: ١١/٤٥٣.

[۴] تهذیب الکمال: ١١/٤٥٣.

[۵] تهذیب الکمال: ١١/٤٥٣.

[۶] کشف الباری: ١/٤٦٢.

[۷] کشف الباری: ١/٤٦٣، ٣/٢٨٢.

[۸] کشف الباری: ١/٢٩١.

[۹] النهایة فی غریب الحدیث والاثر: ١/٨٣٣.

[۱۰] النهایة فی غریب الحدیث والاثر: ٢/٤٦٣.

نه دي اوهم دَدې نه دي. **ريح قاصفة**: تيزه آوازكونكې هوا او **رعد قاصف**: دَ آواز دَ سخت والى نه هلاكونكې ګرز (يعنى دَ تندر په شان آواز) (۱)

**ان نخفرك**: دَ باب افعال نه دې وعده ماتول، بې وفائى كول مجرد كښې ضَرَبَ نه دې حفاظت كول، امن وركول. (۲)

**سبخة**: نمكين او سپوره زمكه، دَ اوبو ډنډ، دَدې جمع **سباخ** راځي. (۳)

**بين لابتين**: دا دَ **لابة** تثنيه ده. يعنى دَ تورو كاڼو والا زمكه چه سوزيدلې ښكارى. دې ته حرة هم وئيلې شي دَ كوم جمع چه حِرار راځى او حرة دَ مدينې منورې نه بهر زمكې ته هم وائى. (۴)

**ورق السمر**: دَ كيكرو دَ ونو پاڼې سمر، دَ ميم په ضمه سره جمع ده او هم په دغه وزن باندې مفرد هم لوستلې شوې دې. اودَدې يوبل مفرد **سمرة** دې اودَدې جمع **اسمر** و**سمرات** هم راځى. (۵)

**دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې.

**تشريح**:- قوله: ابن الدغنة: دادَ دال په فتحه اوغين په كسره اودنون په فتحه سره دې. اوپه يوه نسخه كښې دَ دال او عين په ضمه اودَ نون په فتحه سره اودريمه نسخه كښې دَ دال اوغين فتحه سره او نون مشدده سره دې. نور اقوال هم شته (۶) دا دَ بنوقاره سرداروو او په ښكلې غشې ويشتوكښې مشهوروو. دغنه دَ هغه دَ مور نوم وو دَهغه په اصل نوم كښې ډير اقوال دى مثلاً مالك او ربيعه وغيره. (۷)

**قوله: ولم يمر علينا يوم الا يأتينا فيه رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم**:- يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه هيڅ يوه ورځ داسې نه تيريدله چه حضورپاك ﷺ به مونږ كره تشريف نه راوړلو.

**يولطيف اشكال اودَ هغې جواب**:- دلته شبه دا كيږى چه خبره خو **زرغبا تزدد حبا** (۸) خلاف ده دَدې جواب دادې چه كله په مزاج كښې بالكل اتحادوى نوبيا هغه وخت دَ **زرغبا تزدد حبا** قانون نه چليږى.

**فضيلت خليفه بلافصل حضرت ابوبكر الصديق رضى الله تعالى عنه**:- **قوله (فانك تكسب المعدوم**

---

۱) النهاية فى غريب الحديث والاثر: ۵۰۶/۱. عمدة القارى: ۱۷۶/۱۲.

۲) النهاية فى غريب الحديث والاثر: ۵۰۹/۱.

۳) النهاية فى غريب الحديث والاثر: ۷۳۷/۱.

۴) النهاية فى غريب الحديث والاثر: ۳۵۷/۱.

۵) النهاية فى غريب الحديث والاثر: ۸۰٤/۱.

۶) تحفة البارى: ۱۱۹/۳.

۷) تحفة البارى:۱۱۹/۳ عمدة القارى: ۱۷٤/۱۲.

۸) أخرجه الخطيب بغدادى فى تاريخه: ۵۵/۶ والحاكم رحمه الله فى مستدركه: ۳٤۷/۳ وصاحب المجمع الزوائد: ۷۵/۸.

**وتصل الرحم الخ:-** يعنی ابن الدغنه هم هغه صفات دحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه بيان کړل کوم چه حضرت خديجة الکبری رضی الله عنها د رسول الله صلی الله علیه وسلم بيان کړی وو او وهغه د حضورپاك دوست او بی بی وه اود حضورپاك دهريوراز نه خبروه اوبياهغې داسې د حضورپاك تعريف اوتوصيف اوکړو چه دلته خو داکافردې اود حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه تعريف کوی او هم هغه اوصاف کوم چه د حضورپاك دی د صديق اکبر رضی الله عنه د پاره ثابتيږی نودا په اتحاد مزاج باندې دال دې په دې وجه دخلافت بلافصل استحقاق هم د صديق اکبر رضی الله عنه جوړيږی د بل چانه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د صديق اکبر رضی الله عنه دا مناسبت څومره وو ددې اندازه ددې نه اولګوئی چه داساری بدر په سلسله کښې چه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم کومه رائې وه هم دصديق اکبر رضی الله عنه رائې وه دغه شان د صلح حديبيه په موقع چه کوم ارشاد رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائيلې وو هم هغه صديق اکبر رضی الله عنه لفظ په لفظ جواب ورکړې وو. دا ټولې په ټولې قصې په دې خبره باندې دلالت کوی چه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه مزاج ته د حضورپاك صلی الله علیه وسلم مزاج سره کوم اتحاد وو هغه اتحاد د بل چا دپاره حاصل نه وو. هم ددې دپاره د خلافت بالفصل استحقاق هم د صديق اکبر رضی الله عنه د پاره ثابتيږی.

**يوسوال اود هغې جواب:-** دلته دا سوال پيداکيږی چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه کله ابن الدغنه سره داوعده کړې وه چه هغه به مونځ په کورکښې کوی نودهغې خلاف ورزی هغه ولې اوکړه؟ ددې جواب دادې چه چرته هم په روايت کښې دا تذکره نشته چه حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه د دې وعده کړې وه. بلکه خبره داده چه د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه دا عمل اضطراری وو هغه ددې دپاره مضطروو لهذا ځنګه چه ابن الدغنه اووئيل چه ته زما جوار يعنی ذمه واری واپس کړه يا د وعدې مطابق په خپل کورکښې عبادت کوه حضرت ابوبکر رضی الله عنه زر اووئيل زه د الله تعالی په پناه کښې پاتې کيدو باندې راضی يم اوهغه وخت حضوراکرم صلی الله علیه وسلم هم په مکه مکرمه کښې وو.(۱)

# ۵- باب: دين

## د قرض بيان

[حديث ۲۱۷۶](۲) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضی الله عنه- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- كَانَ

---

(۱)لامع الدراری مع تعليقات شيخ الحديث محمدزکريا رحمه الله ۲۱۲/۶ مع اضافة.

(۲) وأخرجه البخاری أيضًا فی کتاب النفقات باب قول النبی صلی الله تعالی عليه وسلم من ترک کلاً اوضياعافالی حديث رقم:۳۷۱ وفی الاستقراض واداء الديون باب الصلاة علی من ترک دينا: ۲۳۹۸، ۲۳۹۹ وفی التفسير سورة احزاب رقم: ۴۷۸۱ وفی الفرائض باب قول النبی صلی الله تعالی عليه وسلم من ترک مالا فلاهله رقم: ۶۷۳۱ وأخرجه مسلم فی الفرائض باب من ترک مالافلورثته رقم:۱۶۱۹ وأخرجه النسائی فی الجنائز باب الصلاة علی من عليه دين رقم: ۱۹۶۳ وأخرجه الترمذی فی الجنائز باب الصلاة علی المديون رقم: ۷۰۱ وأخرجه ابن ماجة فی الصدقاتن باب من ترک دينا أو ضياعًا فعلی الله وعلی رسوله صلی الله تعالی عليه وسلم رقم:۲۴۱۵ وأخرجه أحمد رحمه الله تعالی فی مسنده: ۴۵۳/۱ رقم: ۶۸۴۷ وأخرجه ابن حبان فی صحيحه فی کتاب السير باب الغلول رقم: ۴۷۵۴.

يُؤْتَى بِالرَّجُلِ الْمُتَوَفَّى عَلَيْهِ الدَّيْنُ فَيَسْأَلُ «هَلْ تَرَكَ لِدَيْنِهِ فَضْلاً». فَإِنْ حُدِّثَ أَنَّهُ تَرَكَ لِدَيْنِهِ وَفَاءً صَلَّى، وَإِلَّا قَالَ لِلْمُسْلِمِينَ «صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ». فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْفُتُوحَ قَالَ «أَنَا أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ، فَمَنْ تُوُفِّيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فَتَرَكَ دَيْنًا فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ، وَمَنْ تَرَكَ مَالاً فَلِوَرَثَتِهِ». [۲۲۶۸، ۲۲۶۹، ۲۲۹۸، ۴۵۰۳، ۵۰۵۶، ۶۳۵۰، ۶۳۶۴، ۶۳۸۲]

**ترجمه**:- رسول الله ﷺ ته دَ یوکس جنازه راوړلې شوه په کوم چه قرض وو. حضورپاك تپوس اوکړو آیا دې سړی دَ قرض اداکولودپاره څه زیاتی مال پریخودې (چه دَ تجهیزاوتکفین نه پاتې وی) که خلقو به وئیل چه او نو بیابه حضور پاك جنازه کوله ګنی مسلمانانوته به ئې فرمائیل تاسو په خپل ملګری باندې جنازه اوکړئ. بیاچه کله الله تعالی حضورپاك ته دولت ورکول شروع کړه نوحضورپاك اوفرمائیل زه دَمسلمانانودپاره پخپله دَهغوی نه زیات خیرخواه یم چه کم مسلمان مړشي او په هغه قرضه پاتې شی دَهغه قرض په مابانديې دې اوکه مال ئې پریخودې وی نوهغه ئې د وارثانودې.

## رجال الحدیث

① **یحیی بن بکیر**:- دا یحیی بن عبدالله بن بکیر مخزومی رحمه الله دې.[۱]

② **لیث**:- دالیث بن سعد رحمه الله دې.[۲]

③ **عقیل**:- دا عقیل بن خالد رحمه الله دې.[۳]

④ **ابن شهاب زهری**:- دابن شهاب زهری رحمه الله دې.[۴]

⑤ **ابوسلمة**:-دا ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې.[۵]

⑥ **ابوهریره**:- اودَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره هم وړاندې تیره شوې ده.[۶]

**دَ مذکوره روایت دَمختلف نسخوتفصیل**:- امام بخاری رحمه الله چه کوم روایت نقل کړې دې په هغې کښې څلور نسخې دی: ① علامه ابن بطال مالکی رحمه الله فرمائی چه داحدیث **باب من تکفل عن المیت بدین** سره متعلق دې. اوهم هلته داحدیث کیدل پکاردی اوهغه په خپله نسخه کښې هم هلته دَدې ذکرکړې دې.[۷] حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله هم دا زیات مناسب ګرځولی دی چونکه په دې کښې **تکفل دین عن المیت** تذکره ده.[۸]

---

[۱]) کشف الباری:۱/۳۲۳.

[۲]) کشف الباری:۱/۳۲٤.

[۳]) کشف الباری:۱/۳۲۵، ۳/٤۵۵.

[٤]) کشف الباری:۱/۳۲۶.

[۵]) کشف الباری:۲/۳۲۳.

[۶]) کشف الباری:۱/۶۵۹.

[۷]) شرح ابن بطال: ۶/۳۵۳.

[۸]) فتح الباری:٤/۶۰۱ عمدة القاری: ۱۲/۱۷۷.

② دویمه نسخه بغیرد ترجمه د یوباب ده. حضرت شیخ الحدیث رحمه الله هم دا راجح گرځولې ده اوفرمائی چه په اصل کښې دا رجوع الی الاصل د قبیلې نه ده. دَامام بخاری رحمه الله عادت دادې چه کله مسلسل تراجم روانې وی او په مینځ کښې ضمنا څه نوې ترجمه راځې نوډَهغې نه پس هغه یوباب بغیرد ترجمې ذکرکوی اودَ دغه باب په ذریعه سره رجوع الی الاصل کوی. اول دَ کفالت ابواب روان وو په مینځ کښې دَ جوار ابی بکرالصدیق رضی الله عنه ترجمه راغلې وه. ددې دپاره امام بخاری رحمه الله دَ کفالت دَ ابواب طرف ته رجوع کولودپاره دا باب بلاترجمه ذکرکړې دې. او په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دَ کفالت عمومی ثبوت فرمائیلې دې. مطلب دادې چه که یوسړې دَ یوخاص سړی کفیل جوړیدې شی نودغه شان دَعام خلقود طرف نه هم هغه دَ کفالت ذمه واری اوچتولې شی.[1]

③ دریم په یوه نسخه کښې کښې دلته باب الدین عنوان واقع شوې دې لکه چه شراح بخاری علامه عینی رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله وغیره په متداول نسخوکښې دی.[2] لیکن په دې صورت کښې اشکال دادې چه دا ترجمه ددې ځائی کیدو په ځائی دَ باب القرض لاندې کیدل پکاردی.[3] لکه چه وړاندې راځی. ددې جواب داکیدې شی چه په عام توګه باندې په دیون کښې کفالت کیږی. په دې وجه امام بخاری رحمه الله دا ترجمه دلته منعقد کړې ده.

④ څلورمه نسخه داده کومه چه مونږ سره ده. دلته ئی باب جوار ابی بکر صدیق رضی الله عنه په ذیل کښې دا روایت نقل کړې دې.[4] او ظاهره ده چه دَ دې روایت باب جوار ابی بکر صدیق رضی الله عنه سره څه تعلق نشته.[5] ددې دپاره به هم دغه وئیلې شی چه دلته باب بلاترجمه کیدې پکاردی اویادَ باب الدین ترجمه ټیک ده او یا چه ابن بطال رحمه الله چه اوچتولوسره باب من تکفل عن المیت بدین په ضمن کښې ذکرکړې دې هم هلته کیدل پکاردی.

**دَ قوله فعلی قضاؤه تشریح او دَعلماؤ دَاختلاف بیان:-** په دې حدیث مبارك کښې دی چه حضورپاك ارشاد فرمائیلې دې چه کوم مسلمان هم وفات کیږی او دین پریږدی اومړی کیږی نوزه به دَ هغه دین اداکوم اوبیابه حضور پاك دَ بیت المال نه هغه دیون اداکول. بعض علماء فرمائی چه دَ خپل طرف نه به حضورپاك هغه دین اداکول.[6]

---

[1] الابواب والتراجم ص: ۱۶۹.
[2] عمدة القاری:۱۷۷/۱۲فتح الباری: ۶۰۱/۴إرشاد الساری:۲۷۰/۵.
[3] فتح الباری: ۶۰۱/۴.
[4] صحیح البخاری: ۳۰۷/۱ قدیمی.
[5] عمدة القار:۱۷۷/۱۲.
[6] فتح الباری:۶۰۲/۴.

په دې مسئله کښې اختلاف دې چه آیا دا ادائیګی په حضورپاك باندې واجب وو که د تبرع په توګه به ئې داسې کول. د شوافع په نیزدلته دواړه وجوهات دی. په یوه وجه کښې دا فرمائیلې شوی دی چه دا ادائیګی په حضورپاك باندې واجب وه او دویمه وجه داده چه حضورپاك به د تبرع د وجې نه دا ادائیګی کوله.[1] اود احنافو په نیز دلته دحضورپاك قضاء دین کول د تبرع په توګه وو

ددې نه پس په دې کښې اختلاف دې چه دحضوراکرم نه پس په خلیفة المسلمین باندې هم دا ذمه واری راځی که نه؟ نوحضرت شیخ عبدالحق دهلوی رحمه الله فرمائی چه د احنافو په نیز دلته د حضورپاك قضاء دین د تبرع په توګه وو نوچه کله واجب نه وو نوروستو به په خلیفة المسلمین باندې څنګه واجب شی.[2] اود شوافع د رومبې وجې مطابق خلیفة المسلمین باندې هم دا ذمه واری راځی.[3]

**براعت اختتام:** - حضرت شیخ الحدیث فرمائی چه دلته د براعت اختتام دپاره امام بخاری رحمه الله د کتاب الکفاله په اختتام باندې **قوله: فمن توفی من المؤمنین فترك دینا** والا روایت پیش کولوسره د وفات او جنازې صفاأو په صراحت سره ذکرکړې دې.[4]

بسم الله الرحمن الرحیم

# ۳۵- کتاب الوکالة

**الوکالة:** مصدردې او د واؤ زیر اوزبر سره مستعمل دې. د باب ضرب نه معنی حواله کول او پریخودلوپه معنی کښې دې. په حدیث کښې راغلی دی اللهم رحمتك أرجوولا تكلنی إلی نفسی طرفة عین. دې الله زه ستا درحمت امیدواریم لهذا ته ما د یولمحې دپاره هم زما نفس ته مه حواله کوه.[5]

**وکله:** دتفعیل نه، څوك وكيل جوړول، وکیل په وزن د فعیل په معنی د مفعول دې یعنی هغه سړې چاته چه څه کار حواله ړې شی. بل د فاعل په معنی هم راځی لکه چه الوکیل د الله تعالی د اسماء نه هم دې. په معنی دحافظ، قرآن کریم کښې دی: ﴿ حَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ ﴾ (آل عمران: ۱۷۲) اوهم د دې نه توکل دې یعنی وکالت قبلول او ﴿ تَوَكَّلْ عَلَى اللهِ ﴾ مطلب دې په الله تعالی باندې یقین او بهروسه کول اوبعض خلقو دتوکل داتعریف هم کړې دې. **إظهار العجز والاعتماد علی غیرك** یعنی خپله عاجزی او انکساری ښکاره کولوسره په غیرباندې اعتماد کول.[6]

---

[1] نیل الاوطار: ۲۵۵/۵.
[2] لم أجدفی أشعة اللمعات.
[3] نیل الاوطار: ۲۵۵/۵.
[4] الابواب والتراجم ص: ۱۶۶ الکنزالمتواری: ۳۶۳/۱۰.
[5] أخرجه أحمد رحمه الله فی مسنده: ۴۲/۵.
[6] طلبة الطلبة للنسفی رحمه الله ص: ۲۸٤ مع هامشه وأنیس الفقهاء ص: ۲۳۸ وبنایة شرح الهدایة للعینی: ۲٦۱/٦

دَ شریعت په اصطلاح کښې إقامة الغیر مقام نفسه ترفها أو عجزا فی تصرف جائز معلوم ته وائی. یعنې بل یو سړی جائز او معلوم تصرف کښې په خپل ځائې اودرول دَ عاجزئی یا دَ مزې دَ وجې نه.[1]

**دَ وکالت مشروعیت:-** دَ وکالت صحیح کیدل، کتاب الله سنت رسول الله ﷺ او اجماع دَ امت دَ فقهاؤ نه ثابت دې. بل دَ عقل او قیاس هم تقاضا ده چه وکالت جائز دې.

**دَ کتاب الله نه ثبوت:-** الله تعالی دَ اصحاب کهف واقعه ذکر کولو سره فرمائی: ﴿ فَابْعَثُوٓا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِۦٓ إِلَى ٱلْمَدِينَةِ فَلْيَنظُرْ أَيُّهَآ أَزْكَىٰ طَعَامًا فَلْيَأْتِكُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ ﴾ (کهف: ۱۹) یعنی (چه کله دا حضرات دَ اوږد خوب نه بیدار شو نو خپل مینځ کښې مشوره اوکړه وئې وئیل) اوس اولیګئی دَ خپلو کسانو نه یو کس ته خپلې دا روپئی ورکړې په دې ښار کښې بیادې اوګوری چه کوم صفا ستره دې نو رادې اوړی ستاسو دَ پاره خوارک.

اوښکاره خبره ده چه بل دَ سامان راوړو دَ پاره وکیل جوړول دی اودَ اصحاب کهف قصه بلانکیر پیش کول زمونږ په حق کښې هم حجت دې.[2]

دغه شان په زوجین کښې دَ اختلاف پیدا کیدو په صورت کښې صلح دَ پاره دَ زوجین دَ طرف نه دَ حکَم مقرر کولو حکم ورکړې شوې دې. ﴿ فَابْعَثُوا حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَآ إِن يُرِيدَآ إِصْلَٰحًا يُوَفِّقِ ٱللَّهُ بَيْنَهُمَآ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا ﴾ (النساء: ۳۵) یعنی تاسو اودره وه یو منصف، دَ سړو والانه او یو منصف دَ ښځې والانه که چرې دا دواړه غواړی چه صلح اوکړی نو الله تعالی به موافقت اوکړی په دغه دواړو کښې، بیشکه الله تعالی په هرڅه پوهه او خبردار دې. نو دا حکَم هم دَ متعلقه فریق دَ طرف نه دَ وکیل درجه لری.[3]

**احادیث مبارکه نه ثبوت:-** دَ مذکوره کتاب دَ احادیثو نه اودَ نورو ډیرو احادیثونه دَ وکالت ثبوت ملاویږی. په هغې کښې یو څو دادی:

**حضرت عروه ﷺ دَ چیلئی اخستلو وکیل جوړول:-** حضرت عروه بن ابی جعد بارقی ﷺ فرمائی ما ته نبی کریم ﷺ دَ چیلئی دَ اخستلو دَ پاره یو دینار راکړو نو په هغه یو دینار باندې هغه دوه چیلئی واخستې اوبیائی په هغې کښې یوه چیلئی په یو دینار خرڅه کړه. بیائی دَ حضورپاك په خدمت کښې یو دینار او یوه چیلئی حاضره کړه. حضورپاك دَ هغه دَ پاره دَ برکت دعا اوکړه اودَ دې نه پس چه به هغه خاورې هم اخستې په هغې کښې به ئی نفع کوله.[4]

**حضرت حکیم بن حزام ﷺ دَ قربانئی دَ څاروی دَ اخستلو دَ پاره وکیل جوړول:-** حضرت حکیم ﷺ فرمائی نبی کریم ﷺ هغه ته یو دینار دَ قربانئی دَ څاروی اخستلو ته پاره ورکړو. نو هغه دَ قربانئی څاروې واخستو او په یو دینار ګټه ئی خرڅ کړو اوبیائی بل دَ قربانئی څاروې

---

[1]) حاشیة ابن عابدین: ۴/۴۰۰ واللباب شرح الکتاب: ۱۳۸/۲.

[2]) المغنی: ۸۷/۵ تکملة فتح القدیر: ۸/۳۰۴.

[3]) تفسیر ابن کثیر: ۴۹۳/۱ مغنی المحتاج: ۲۱۷/۸.

[4]) أخرجه البخاری فی المناقب باب سؤال المشرکین أن یریهم النبی صلی الله تعالی علیه وسلم الخ رقم: ۳۴۴۳.

واخستو دَ حضورپاك په خدمت کښې حاضرشو اويودينارئي هم پيش کړو. رسول الله ﷺ حکم ورکړو چه څاروې قرباني کړئي او يودينار صدقه کړئي. [۱]

**حضرت ابورافع رضي الله عنه دَ ام المؤمنين حضرت ميمونه رضي الله عنها دَ نکاح په وخت وکيل جوړول:-** حضرت ابورافع رضي الله عنه فرمائي رسول الله ﷺ حضرت ميمونه رضي الله عنها سره نکاح اوکړه په داسې حال کښې چه حضورپاك په احرام کښې نه وو او زه په دغه نکاح کښې دَ دواړو هستيانو په مينځ کښې قاصد ووم. [۲]

دا پورتنې حديث شريف هم دَ خاونددَ طرف نه دَ وکيل جوړيدو په جواز باندې دلالت کوي. [۳]

**اجماع:-** بل دَ وکالت په جوازباندې دَ رسول الله ﷺ دَ زمانې نه ترننه پورې دَ امت دَ فقهاؤ اجماع هم ده. [۴] اودَ عقل اوقياس تقاضاهم داده چه وکالت جائزوی ځکه چه دَ هرسړی دَپاره دا ډيرګران کاردې چه هغه خپل ټول کار پخپله پوره کړې شی نولامحاله به ضرورت اوحاجت وی چه هغه خپل بعض کارونه پخپله سرته رسولونه عاجزکيږي. لکه چه حالت مرض وی يا بوډاوالې زيات شی يايومعزز او دَشان شوکت شخصيت وی دَ څه دَ وجې نه چه خپل بعض کارونو پوره کولونه قاصر وی نو په دې ټولوصورتونوکښې ضروری دی چه هغه دَخپلو کارونودَپاره څوك وکيل مقررکړی اوکه چرې وکالت ناجائزاوګرځولې شی نوبيا به حرج لازم راځی چه دَ نص په رڼاکښې ممنوع دې. ﴿ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ ﴾ (الحج: ۷۸) [۵] يعنی اونه دی کيخودې په تاسوباندې په دين کښې څه ګران.

**دَ وکالت اقسام:-** يوسړې که بل څوك خپل نائب مقررکوی ياخوبه مطلقًا وی يعنی په هرڅيزکښې اويابه مقيداً وی په څه خاص څيزکښې لکه دَ محل په اعتبار دَ وکالت دوه قسمونه دی: ① وکالت خاصه يعنی دَ يومعين تصرف دَپاره بل کس وکيل جوړول مثلاً دَ يومعين سوداَ اخستلودَپاره څوك وکيل جوړکړی نو په دې صورت کښې دَ فقهاؤ اتفاق دې چه دَوکيل دَپاره دَدې نه علاوه تصرف کول جائزنه دی. [۶]

② وکالت عامه يعنی چه يوسړې بل ته اووائی چه ته زمادَ طرف نه په هرڅيزکښې وکيل يئی ته چه څه غواړې کولې شې دَدې په جواز کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې. دَ حنفيه اومالکيه په نيز جائزدې [۷] اودشافعيه اوحنابله په نيزناجائزدی. [۸] البته حافظ ابن حجر رحمه الله دَ وکالت تعريف

---

[۱] أخرجه الامام الترمذی فی سننه: ۵۴۹/۳.

[۲] أخرجه الامام الترمذی فی سننه: ۱۹۱/۳ وقال حديث حسن.

[۳] نيل الاوطار ص: ۳۱۶ المغنی:۸۷/۵.

[۴] المغنی:۸۷/۵ تکلمة فتح القدير:۳/۸.

[۵] تکلمة فتح القدير:۵/۸.

[۶] الموسوعات الفقهية: ۴۵/۲۶ — ۲۷.

[۷] البحرالرائق:۱۴۰/۷ وفتح القدير:۵۰۱/۷ وابن عابدين:۳۹۹/۴ — ۴۰۰ وبداية المجتهد: ۷۷۲/۲.

[۸] مهذب: ۳۵۰/۱ والمغنی:۲۱۱/۵ — ۲۱۲.

داسې کړې دي: إقامة الشخص غيره مقام نفسه مطلقًا أو مقيدًا (۱) دَدې نه معلومېږی چه دَ شوافع په نیز وکالت عامه جائز دې. او یا دا چه بعض صورتونو کښې هغه دَ دې دَ جواز قائل وی.

## ۱-باب: وكالة الشريك في القسمة وغيرها

وَقَدْ أَشْرَكَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَلِيًّا فِي هَدْيِهِ ثُمَّ أَمَرَهُ بِقِسْمَتِهَا. [ر: ۲۳۷۱، ۱۶۳۰]

دَ تقسیم وغیره په کارکښې دَ یوشریک بل شریک وکیل جوړول او نبی کریم ﷺ حضرت علی رضی الله عنه دَ خپل قربانئی په څاروی کښې شریک کړو او بیائی هغه ته دَدې دَتقسیم حکم ورکړو.

**دَترجمة الباب مقصد:**- دَامام بخاری رحمه الله مقصود دادې چه چرته دوه کسان یا زیات کسان په یوڅیز کښې شریک وی او یوشریک بل شریک ته دَتقسیم یا نورو معاملاتو کښې وکیل جوړ کړی نو جوړولې شی اوحافظ ابن حجر رحمه الله دَعلامه ابن بطال رحمه الله نه نقل کړی دی چه په دې کښې هیڅ اختلاف نشته.(۲)

بیا دا اوګنړئی چه حضرت امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې فی القسمة وغیرها الفاظ زیات کړی دی یعنی وکالت په تقسیم کښې هم کیږی اودَدې نه علاوه په نوروڅیزونو کښې هم کیږی.

وکالت فی القسمة خو امام بخاری رحمه الله په روایت سره ثابت کړې دې او وکالت فی غیر القسمة ئی الحاقًا او استدلالاً ثابت کړې دې.(۳) مطلب دادې چه کله چرې په حدیث کښې دَ یوڅیز تذکره وی نو په هغې سره دَباقی نفی نه کیږی بلکه په جزئیات کښې که چرې ثبوت ملاؤشی نو دَ دغه نوع نور جزئیات کښې هم هغه حدیث دلیل جوړیدې شی.

**قوله: وقد أشرك النبي صلى الله تعالى عليه وسلم عليا في هديه ثم أمره بقسمتها**:- دَ ترجمې دا جزء امام بخاری رحمه الله کتاب الحج او کتاب الشرکة کښې موصولاً ذکر کړې دې.(۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَترجمې دا جزء په خپل روایت کړې شوې دوو احادیث ملاوولوسره ثابت کړې دې. یو په کتاب الشرکة کښې دَحضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنهما او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما طویل روایت دَ کوم په آخرکښې چه حضرت علی رضی الله عنه او وئیل لبیک بحجة رسول

---

(۱) فتح الباری: ۶۰۳/۴.

(۲) فتح الباری: ۶۰۴/۴ یقول العبد الضعیف عفاالله تعالی عنه: ما وجدت قول ابن بطال رحمه الله تعالی فی النسخ المطبوعة لشرح ابن بطال رحمه الله تعالی راجع: شرح ابن بطال: ۳۵۷/۶ دارالکتب العلمیة بیروت وشرح ابن بطال رحمه الله تعالی: ۴۳۲/۶ مکتبه الرشد ریاض.

(۳) فتح الباری ۶۰۴/۴ وعمدة القاری: ۱۷۹/۱۲.

(۴) فتح الباری: ۶۰۳/۴ صحیح البخاری: کتاب الحج باب لایعطی الجزار من الهدی شیئًا رقم: ۱۷۱۶ کتاب الشرکة، باب الاشتراک فی الهدی والبدن الخ رقم: ۲۳۷۱.

الله صلی الله تعالی علیه وسلم نونبی کریم ﷺ هغه ته حکم ورکړو چه هغه دې په خپل احرام باندې قایم وی (لکه څنګه چه هغې ترلې دی)، اوهغه نې په خپله قربانئی کښې شریک کړو او دویم په کتاب الحج کښې د حضرت علی رضی الله عنه روایت کوم کښې چه نبی کریم ﷺ زه «د قربانئی د څاروی د خصمانې د پاره» اولیګلم په دې وجه ما دهغې خصمانه کوله بیا حضورپاک ﷺ ماته حکم راکړو نوما دهغې غوښه تقسیم کړه الخ. [1]

[حدیث ۲۱۷۷] [2]: حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ عَلِيٍّ - رضى الله عنه - قَالَ أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ أَتَصَدَّقَ بِجِلاَلِ الْبُدْنِ الَّتِي نُحِرَتْ وَبِجُلُودِهَا. [ر: ۱۶۲۱]

**ترجمه**:- حضرت علی رضی الله عنه فرمائی نبی کریم ﷺ ماته حکم راکړې ووچه دهغوی د قربانئی د څاروی څرمن زه صدقه کړم کوم چه ما ذبح کړې وو.

## رجال الحدیث

① **قبیصه**:- دا قبیصه بن عقبه العامری الکوفی رحمه الله دې. [3]
② **سفیان**:- دا سفیان بن سعید ثوری رحمه الله دې. [4]
③ **ابن ابی نجیح**:- دا ابن ابی نجیح یعنی عبدالله بن یسار رحمه الله دې. [5]
④ **مجاهد بن جبر**:- دامجاهدبن جبر ابوالحجاج مکی رحمه الله دې. [6]
⑤ **عبدالرحمن**:- داعبدالرحمن بن ابی لیلی یسارانصاری رحمه الله دې. [7]
⑥ **علی** رضی الله عنه:- د حضرت علی رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده. [8]

**حل اللغات**:- **جلال**: د جُلّ جمع ده د څاروی څرمن. [9]

---

[1]) حواله مذکوره.
[2]) وأخرجه البخاری رحمه الله أیضًا فی کتاب الحج باب الجلال للبدن رقم:۱۷۰۷ وباب لایعطی الجزار من الهدی شیئا رقم: ۱۷۱۶ وباب یتصدق بجلود الهدی رقم:۱۷۱۷ وباب یتصدق بجلال البدن رقم:۱۷۱۸ وأخرجه مسلم فی کتاب الحج باب فی الصدقة بلحوم الهدی وجلودها وجلالها رقم: ۳۱۶۷، ۳۱۶۸، ۳۱۶۹، ۳۱۷۰ وأخرجه أبوداؤد فی کتاب المناسک باب کیف تنحر للبدن رقم: ۱۷۶۹ وأخرجه ابن ماجة فی کتاب المناسک باب من جلل البدنة رقم: ۳۰۹۹.
[3]) کشف الباری:۲/۲۷۵.
[4]) کشف الباری:۲/۲۷۸:
[5]) کشف الباری:۳/۳۰۲.
[6]) کشف الباری:۳/۳۰۷.
[7]) کشف الباری کتاب أبواب الاذان باب إستواء الظهر فی الرکوع .
[8]) کشف الباری:۳/۱۵۰.
[9]) مختارالصحاح ص: ۱۸٤.

البدن (بضم الدال وسکونها) د بدنة جمع ده. یعنی هغه اوښه یا غوا د کومې چه په مکه مکرمه کښې قربانی اوکړې شی.[1]

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت:-** د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې توګه دې چه حضرت علی رضی الله عنه داخبره پیژندله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک هغه دقربانئی په څاروی کښې شریك کړو.[2] لکه چه کتاب الشرکة کښې دحضرت جابر رضی الله عنه د روایت نه صفا معلومه ده.[3] اود رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت علی د څرمن وغیره په تقسیم باندې لګول دا دحضورپاك د طرف نه توکیل دې.

**یواشکال اودهغې جواب:-** په دې باندې بعض علماؤ دا اشکال کړې دې چه دلته خو د شرکت څه صورت نه ښکاری بلکه داسې شوې چه حضورپاك د مدینې منورې نه د قربانئی څاروې راوستې وو او حضرت علی رضی الله عنه د یمن نه تلې وو.[4] لیکن دا اشکال صحیح نه دې ځکه چه حضرت علی رضی الله عنه څه د قربانئی څاروی د یمن نه راوړې وو اوهغه د هغه ملك نه وو بلکه اصلاً هغه د حضورپاك ملك وو اوبیا رسول اکرم صلی الله علیه وسلم حضرت علی رضی الله عنه په خپله قربانئی کښې شریك کړې وو اوبیائی هغه د تقسیم وغیره وکیل جوړ کړې وو.

[حدیث ۲۱۷۸] [5] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رضی الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَعْطَاهُ غَنَمًا يَقْسِمُهَا عَلَى صَحَابَتِهِ، فَبَقِيَ عَتُودٌ فَذَكَرَهُ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «ضَحِّ أَنْتَ». [۲۳۶۷، ۵۲۲۷، ۵۲۳۵]

**ترجمه:-** حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه فرمائی حضورپاك څوچیلئی هغه ته حواله کړې وې دې د پاره چه هغه داپه صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې تقسیم کړی. دچیلئی یوبچې د تقسیم نه پاتې شوګله چه دهغې ذکر هغه حضورپاك صلی الله علیه وسلم ته اوکړو نوحضورپاك اوفرمائیل چه د دې ته قربانی اوکړه.

## رجال الحدیث

① **عمرو بن خالد:** دا عمروبن خالد بن فروخ بن سعید التمیمی، ابوالحسن حرانی رحمه الله دې.[6]

---

[1] مختار الصحاح ص:۷۹.

[2] عمدة القاري:۱۲/۱۷۹ إرشاد الساری: ۵/۲۷۳.

[3] مرتخرجه انفًا.

[4] الابواب والتراجم ص:۱۶۹.

[5] وأخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الشرکة باب قسمة الغنم والعدل فیها رقم:۲۵۰۰ وفی کتاب الضاحی باب قسمة الامام الاضاحی بین الناس رقم: ۵۵۴۷ وفی باب فی أضحیة النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بکبشین اقرنین الخ رقم: ۵۵۵۵ وأخرجه مسلم فی کتاب الاضاحی باب سن الضحیة رقم ۱۹۶۵ وأخرجه النسائی فی سننه فی کتاب الضحایا باب المسنة والجذعة رقم: ۴۳۷۹ وأخرجه الترمذی فی الاضاحی باب الجذع من الضان فی الاضاحی رقم: ۱۵۰۰ وأخرجه الطحاوی فی مشکل الاثار باب بیان مشکل ماروی عن عقبة بن عام رقم: ۵۰۰۳.

[6] کشف الباری:۱/۴۹۴، ۲/۳۶۶.

⊙ **لیث**:- دا لیث بن سعد رحمه الله دي. (١)
⊙ **یزید**:- دا یزیدبن ابی حبیب رحمه الله دي. (٢)
⊙ **ابوالخیر**:- دا ابوالخیر مرثدبن عبدالله رحمه الله دي. (٣)
⊙ **عقبه بن عامر**:- داحضرت عقبه بن عامر جهنی رضی الله عنه دي. دَدوی تذکره هم ماقبل کښې تیره شوې (٤)

**لغات**:- عتود: دَ چیلئی هغه بچې چه طاقت کښې شی او په هغه کال تیرشې. دَدې جمع أعتدة راځی. (٥)او بعض وائی عتودا هغې ته وائی چه په جفتي باندې قادرشی. (٦)

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- بعض شراح فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دَدې روایت نه خپله ترجمه داسې ثابته کړې چه حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه په دغه دَ قربانئی په څاروو کښې دَ نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم سره شریك وو اوهم هغه حضورپاك دَتقسیم وکیل جوړکړو نولکه چه یوشریك حضرت عقبه رضی الله عنه نورو شریکانویعنی صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دَتقسیم وکیل جوړکړو. (٧)

لیکن دا تقریر صحیح نه دې ځکه چه امام بخاری خودا خودل غواړی چه یوشریك بل شریك خپل وکیل جوړه وی او په دې تقریر کښې یوشریك دَبل شریك وکیل جوړیدل نه ثابتیږی بلکه دَ غیرشریك دَ شرکاء نه بعض وکیل جوړول ثابتیږی. وکیل خو حضورپاك جوړکړو اوشرکاء صحابه کرام رضی الله عنهم وو هغوی وکیل نه دی جوړکړې. په دې وجه دې داسې تقریر اوکړی چه حضورپاك په هغه مال اوچیلوکښې پخپله شریك وو اوحضورپاك حضرت عقبه رضی الله عنه دَ هغې دَتقسیم کولووکیل جوړکړې وو دا به وکالة الشریك الشریك شی. (٨)

**قوله: ضح أنت: ایا دادَ حضرت عقبه رضی الله عنه خصوصیت دې؟**:- یعنی حبیب پاك صلی الله علیه وسلم حضرت عقبه رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه ته دَدې قربانی اوکړه. دَدې نه معلومیږی چه دادَحضرت عقبه رضی الله عنه خصوصیت دې اودَدې تائیددَ امام بیهقی رحمه الله دَ یو روایت نه هم کیږی په کوم کښې چه دی: ولا رخصة فیها لاحد بعدك یعنی ستانه پس به په دې سلسله کښې چاته رخصت نه وی. (٩)خو په بعض روایات کښې دی چه حضورپاك دا جمله دَ حضرت ابوبردع بن نیار رضی الله عنه دَ پاره فرمائیلې

١) کشف الباری:١/٣٢٤.
٢) کشف الباری:١/٦٩٤.
٣) کشف الباری:١/٦٩٥.
٤) کشف الباری کتاب الصلاة باب من صلی فی فروج حریر ثم نزعه.
٥) نهایة: ٢/١٥٦.
٦) عمدة القاری: ١٢/١٨٠.
٧) عمدة القاری: ١٢/١٨٠وفتح الباری: ٤/٦٠٤.
٨) إرشاد الساری:٥/٢٧٣.
٩) فتح الباری:١٠/١٤.

وه. ولن تجزی من احد بعدك. (۱)
اوس خو به هم دا وئیلی شی چه د یوخصوصیت د بل خصوصیت منسوخ کړو او یا به داوئیلی شی چه په یووخت حضورپاك د دواړو د پاره داخصوصیت بیان کړې وو. (۲) او په روایات کښې د تتبع نه معلومیږی چه څلور یا پنځه سړی داسې دی د چا د پاره چه د دې خصوصیت ثبوت ملاویږی. (۳)

## ۲: باب: إذا وكل المسلم حربيًا في دار الحرب، أو في دار الاسلام جاز

### که څوك مسلمان د دارالحرب باشنده په دارالحرب یا دارالاسلام کښې وکیل جوړکړی نوجائزدی

**د ترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری رحمه الله په دې ترجمه کښې دوه خبرې ذکرکوی. یوه خبره خوداده چه د یومسلمان په دارالحرب کښې یوحربی وکیل جوړول جائزدی. اودا خبره د روایت الباب نه ښه ښکاره ثابته ده. چونکه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه امیة بن خلف سره خط اوکتابت کړې وو چه زما کوم خواص او بال بچ په مکه کښې دې امیه به د هغې حفاظت کوی او په مدینه منوره کښې چه د هغه کوم خاص خاص څیزونه دی زه به د هغې حفاظت کوم. دا توکیل وو. امیه بن خلف په مکه کښې اوسیدو چه هغه وخت دارالحرب وو او حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه په مدینه منوره کښې مقیم وو او کوم چه دارالاسلام وو. معلومه شوه چه مسلمان یوحربی چه په دارالحرب کښې مقیم وی د خپل طرف نه وکیل جوړولې شی.
دویمه خبره امام صاحب دا خودلې چه که یومسلمان څوك حربی په دارالاسلام کښې وکیل جوړکړی نوداهم جائزدی. په دارالاسلام کښې به هغه حربی وکیل جوړولې شی چې څوك چه مستامن وی. علامه ابن المنذر رحمه الله فرمائی چه د مسلمان حربی مستامن وکیل جوړول او د حربی مستامن مسلمان وکیل جوړولو په مسئله کښې د چا اختلاف نشته. (۴) مګر هغوی هغه مسئله ذکر نه کړه کومه چه امام بخاری رحمه الله اول ذکرکړې ده.

[حدیث باب ۲۱۷۹] (۵) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي يُوسُفُ بْنُ الْمَاجِشُونِ عَنْ صَالِحِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ- رضی الله عنه- قَالَ كَاتَبْتُ أُمَيَّةَ بْنَ خَلَفٍ كِتَابًا بِأَنْ يَحْفَظَنِي فِي صَاغِيَتِي

---

(۱) صحیح البخاری کتاب الاضاحی باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم لابی بردة ضح بالجذع ولن تجزی عن أحد بعدک رقم: ۵۵۵۶.
(۲) فتح الباریک ۱۰/۱۷.
(۳) فتح الباری: ۱۰/۱۷.
(۴) شرح ابن بطال: ۶/۳۸۵وعمدة القاری: ۱۲/۱۸۰.
(۵) وأخرجه البخاری أیضًا فی کتاب المغازی باب قتل أبی جهل رقم: ۳۷۵۳ ولم یخرجه احد من أصحاب السنة سوی البخاری رحمه الله تعالی انظر تحفة الاشرافک ۷/۲۰۵ رقم: ۹۷۱.

بِمَكَّةَ، وَأَحفَظَهُ فِي صَاغِيَتِهِ بِالْمَدِينَةِ، فَلَمَّا ذَكَرْتُ الرَّحْمَنَ قَالَ لاَ أَعْرِفُ الرَّحْمَنَ، كَاتِبْنِي بِاسْمِكَ الَّذِي كَانَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ. فَكَاتَبْتُهُ عَبْدَ عَمْرٍو فَلَمَّا كَانَ فِي يَوْمِ بَدْرٍ خَرَجْتُ إِلَى جَبَلٍ لأُحْرِزَهُ حِينَ نَامَ النَّاسُ فَأَبْصَرَهُ بِلاَلٌ فَخَرَجَ حَتَّى وَقَفَ عَلَى مَجْلِسٍ مِنَ الأَنْصَارِ فَقَالَ أُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ، لاَ نَجَوْتُ إِنْ نَجَا أُمَيَّةُ. فَخَرَجَ مَعَهُ فَرِيقٌ مِنَ الأَنْصَارِ فِي آثَارِنَا، فَلَمَّا خَشِيتُ أَنْ يَلْحَقُونَا خَلَّفْتُ لَهُمُ ابْنَهُ، لأَشْغَلَهُمْ فَقَتَلُوهُ ثُمَّ أَبَوْا حَتَّى يَتْبَعُونَا، وَكَانَ رَجُلاً ثَقِيلاً، فَلَمَّا أَدْرَكُونَا قُلْتُ لَهُ ابْرُكْ. فَبَرَكَ، فَأَلْقَيْتُ عَلَيْهِ نَفْسِي لأَمْنَعَهُ، فَتَخَلَّلُوهُ بِالسُّيُوفِ مِنْ تَحْتِي، حَتَّى قَتَلُوهُ، وَأَصَابَ أَحَدُهُمْ رِجْلِي بِسَيْفِهِ، وَكَانَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ يُرِينَا ذَلِكَ الأَثَرَ فِي ظَهْرِ قَدَمِهِ. [۳۷۵۳]

**ترجمه**:- حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه فرمائی چه ما امیه بن خلف (کافر) ته خط اولیکلو چه هغه په مکه کښې (هغه وخت دارالحرب وو) د بال بچ اومال اسباب حفاظت کوه اوزه به د هغه د مال اسباب چه مدینه کښې دې حفاظت کوم. کله چه ما خط کښې خپل نوم عبدالرحمن اولیکلو نوهغه اووئیل زه رحمن نه پیژنم. په خپل هغه نوم سره خط اوکتاب کوه کوم چه ستا د جاهلیت په زمانه کښې وو نو ما په خپل اصلی نوم عبدعمرو سره خط اولیکلو. بیا چه کله د بدر ورځ راغله نو زه د احرزة غرطرف ته اووتلم چه د امیه ځان بچ کړم اوخلق اوده شوی وو. حضرت بلال رضی الله عنه هغه اولیدلو نوهغه د انصارو یومجلس ته لاړو او وئې وئیل دا امیه دې که چرې هغه بچ شو نوزه به نه بچ کیږم دې اوریدو سره د انصارو څه خلق حضرت بلال رضی الله عنه سره شو مونږ پسې رااوتل. کله چه ماته اندیښنه شوه چه هغوی به مونږ اووینی ما د هغه ځوئی پریخودو چه هغه په دې کښې اوختو. هغوی دې قتل کړو اوهغه په هیڅ شان اونه منل او مونږ پسې لګیدلې وو او امیه یو وروکې سړې وو نوچه کله هغوی مونږ اولیدو ما امیه ته اووئیل چه کینه هغه کیناستو ما خپل ځان په هغه باندې ورواچولو دې د پاره چه هغه بچ کړم خو انصارو زما نه لاندې توري ورخښې کړې او هغه ئې قتل کړو او په هغوی کښې د یو کس توره باندې زماخپه هم اولګیدله او حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه به مونږ ته د هغې نښه د خپلې خپې په شا خودله.

## رجال الحدیث

۞ **عبدالعزیز**:- داعبدالعزیزبن عبدالله بن یحیی رحمه الله دې. [۱]

۞ **یوسف بن الماجشون**:- دا یوسف بن یعقوب بن ابی سلمه الماجشون رحمه الله دې. د دوی کنیت ابوسلمه دې او هغوی مدنې دی په بنوتیم کښې آل منکدر مولی دې. [۲] هغوی د عبدالعزیزبن عبدالله بن ابی سلمه رحمه الله دتره ځوئی دې. [۳]

---

[۱] کشف الباری: ۴۸/۴.

[۲] تهذیب الکمال: ۴۷۹/۳۲.

[۳] تهذیب الکمال: ۴۸۰/۳۲.

**اساتذه:**- هغوی رحمه الله د سعید مقبری، صالح بن عبدالرحمن بن عوف، عبدالله بن عروة بن زبیر، عتبه بن مسلم مدنی، عثمانی بن سلیمان بن ابی خیثمه، محمد بن عبدالله بن عمرو بن عثمان بن عفان، محمد بن مسلم بن شهاب زهری، محمدبن منکدر اودخپل پلار یعقوب بن ابی سلمه ماجشون رحمهم الله نه روایات نقل کوی. [1]

**تلامذه:**- ابراهیم بن حمزه زبیری، ابراهیم بن مهدی مصیصی، ابومصعب احمدبن ابی بکر زهری، احمدبن حاتم طویل، امام احمد بن حنبل، ابوابراهیم اسماعیل بن محمد معقب، بشربن ولیدکندی، حبان بن بلال، ابوعمر حفص بن عمر حوضی، داهربن نوح اهوازی، داؤدبن عمرو ضبی، ذؤیب بن عمامه سهمی، زکریا بن یحیی زحمویه، سریج بن یونس، ابوکثیر سعیدبن مطرف باهلی، سلیمان بن داؤدهاشمی، طالوت بن عباد صیرفی، عبدالله بن عبدالوهاب حجبی، عبدالله بن عون خزاز، عبدالحمید بن صبیح عدنی، عبدالعزیزبن عبدالله بن اویسی، عبدالملك بن عبدالعزیز بن ابی سلمه ماجشون، عبیدالله بن عمر قواریری، عفان بن مسلم، علی بن مدینی، علی بن مسلم طوسی، محمدبن حسان سمتی، محمدبن حسن بن زبالة مخزومی، محمدبن صباح دولابی، محمدبن عبدالملك، محمدبن عیسی، محمدبن فضل، محمدبن مقاتل، مسددبن مسرهد، مسلم بن ابراهیم، ابوسلمه موسی بن اسماعیل، هشام بن عبدالملك طیالسی، یحیی بن ایوب مقابری، یحیی بن حسان تنیسی، یحیی بن یحیی نیسابوري، یعقوب بن حمیدبن کاسب. [2]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ثقة. [3] علامه ابن حبان هم دَدوي تذکره ثقات کښې کړې ده. [4]

یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ثقة. [5] ابوداؤد رحمه الله فرمائی ثقة. [6] ابوحاتم رحمه الله فرمائی: شیخ. [7]

**وفات:**- دَهغوی انتقال ۱۸۳ یا ۱۸۴ یا ۱۸۵ هجری کښې شوې. [8]

⑨ **صالح بن ابراهیم:**- دا صالح بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف قرشی زهری مدنی رحمه الله دې. دَدوی کنیت ابوعمران دې او دوی دَ سعدبن ابراهیم رور دې. [9]

**اساتذه:**- هغوی دَخپل پلار ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف نه او حضرت انس بن مالك رضی الله عنه، خپل رورسعدبن ابراهیم، سعیدبن عبدالرحمن بن حسان بن ثابت، عبدالرحمن بن هرمز

---

[1] تهذیب الکمال: ۴۸۰/۳۲.

[2] تهذیب الکمال: ۴۸۰/۳۲ – ۴۸۱ والعبرفي خبر من غبراللذهبی رحمه الله: ۵۴/۱ مغانی الاخیار: ۳۰۷/۵.

[3] تقریب التهذیب: ۳۹۳/۲.

[4] الثقات لابن حبان: ۶۳۵/۷.

[5] الجرح والتعدیل: ۲۳۴/۹.

[6] مغانی الاخیار: ۳۰۷/۵.

[7] تهذیب الکمال للمزی: ۴۸۹/۳۲.

[8] تهذیب الکمال: ۴۸۹/۳۲ تقریب التقریب: ۳۹۳/۲ الکاشف: ۴۰۲/۲.

[9] تهذیب الکمال: ۶/۱۳.

اعرج، محمودبن لبید او یحیی بن عبدالله بن عبدالرحمن بن اسعدبن زرارة رحمهم الله [۱] نه روایات نقل کوی.

**تلامذه:**- دوی نه ابراهیم بن جعفر بن محمود بن محمودبن محمد بن مسلمه انصاری اوډ هغوی خوئی سالم بن صالح بن ابراهیم، عبدالله بن یزید مولی المنبعث اوډ هغوی ډ ترہ خوئی عبدالمجیدبن سهیل بن عبدالرحمن بن عوف، عمرو بن دینار، محمدبن اسحاق بن یسار، محمدبن مسلم بن شهاب زهری، یوسف بن یعقوب ماجشون رحمهم الله روایات نقل کوی. [۲]

علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی ثقة. [۳] ابن حبان رحمه الله په ثقات کښې ډدوی تذکره کړې ده. [۴]

**وفات:**- محمدبن سعد رحمه الله فرمائی هغوی قلیل الحدیث دی اوډ هشام بن عبدالملك ډخلافت په زمانه کښې مدینه منوره کښې وفات شوې. [۵] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ډ ۱۳۷ هجری نه وړاندې ډهغوی انتقال شوې. [۶]

⑩ **ابراهیم بن عبدالرحمن:**- دا ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. [۷]

⑪ **عبدالرحمن بن عوف:**- ډ حضرت عبدالرحمن بن عوف زهری ابومحمد مدنی رضي الله عنه تذکره هم وړاندې تیره شوې ده. [۸]

**قوله: صاغیتي:**- صاغیة الرجل خواص رجل ته وائی یعنی هغه خلق چه ډ یوسړی طرف ته خصوصی خیال ساتی. بعضوئیلی دی چه مال اواسباب ته هم صاغیة وئیلې شی. دغه شان په ماتحتانو باندې هم ډ صاغیة اطلاق کولې شی. [۹]

**ډحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:**- ډحدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: کاتبت امیة بن خلف کتابا بان یحفظنی الخ سره واضح دې. یعنی حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه فرمائی چه ما امیه بن خلف سره چه ډهغه وخت دارالحرب مکه مکره وه خط وکتابت اوکړو اوهم دغه ډترجمې مقصود هم دې. [۱۰]

**قوله: کاتبت:** دلته کاتبت دې. اوډ اسماعیلی رحمه الله په روایت کښې دی عاهدت امیة بن خلف

---

[۱]) تهذیب الکمال: ۶/۱۳

[۲]) تهذیب الکمال: ۶/۱۳

[۳]) تقریب: ۳۴۳/۱.

[۴]) الثقات: ۴۵۴/۶.

[۵]) تهذیب الکمال:۶/۱۳.

[۶]) تقریب: ۳۴۳/۱.

[۷]) کشف الباری کتاب الجنائز باب الکفن من جمیع المال

[۸]) کشف الباری کتاب الجنائز باب الکفن من جمیع المال

[۹]) النهایة: ۳۴/۲ عمدة القاری:۱۸۲/۱۲.

[۱۰]) عمدة القاری: ۱۸۱/۱۲.

وكاتبه يعني ما اميه بن خلف سره معاهده اوكړه اوهغه سره مې خط اوكتابت اوكړو.[1]

**قوله: لاأعرف الرحمن**:- چه عبدالرحمن بن عو رضي الله عنه خپل نوم عبدالرحمن اوليكلو نو اميه بن خلف ورته اووئيل چه زه رحمن نه پيژنم دا هم داسې ده لكه چه د صلح حديبيه په موقع باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم بسم الله الرحمن الرحيم ليكل غوښتل نوكافرانو انكاراوكړو. دحضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نوم اول عبدعمرو وو او په دې كښې اضافت دغيرالله طرف ته وو نواميه اووئيل هم هغه نوم ليكه كوم چه دې اول وو نوهغه هم هغه نوم اوليكلو.[2]

**دهغه نومونوپه سلسله كښې چه غيرالله طرف ته مضاف وى، دحضرت شاه صاحب اوحضرت گنگوهي رحمهماالله تحقيق**:- دا حضرات فرمائى چه چرې عبد اضافت غيرالله طرف ته اوكړې شى نود غيرالله دوه صورتونه دى ياخوبه دهغه عبادت كولې شى يا د عبادت ابهام كيدې شى. كه چرې عبادت كيږى نو بياخودعبد اضافت د غيرالله طرف ته حرام دې. لكه عبدالعزى وغيره او كه چرې د عبادت ابهام دې نوداسې نوم كيخودل مكروه دى لكه عبدالرسولو عبدالنبى او عبدالحسين وغيره اوكه چرې داسې لفظ وى چه نه دهغې عبادت كيږى او نه دعبادت ابهام نوهلته دا اضافت جائزدې. لكه عبدلمطلب وغيره دمطلب نه عبادت كيږى اونه په دې كښې دعبادت ابهام كيږى خو عبدمناف نوم كيخودل ناجائزدى ځكه چه مناف د يوبت نوم وو.[3]

د عبدالمطلب نوم خو شيبة الحمدوو.[4]

دهغوى د پلارهاشم دوفات نه پس دعبدالمطلب مور يوې مودې پورې په مدينه منوره كښې دخپل پلاركور بنوخزرج كښې مقيم پاتې وه. كله چه عبدالمطلب لږ شان لوئى شو نودهغوى تره مطلب دهغوى د راوستلودپاره دمكې نه مدينې ته راغلو. كله چه ئى هغوى واخستل واپس شو نو په مكه كښې داخليدو وخت عبدالمطلب خپل تره مطلب پسې شاته په اوښ سوروو. دشيبة الحمد كپړې سخا خيرنې او د دوړو وې اودمخ نه ئى يتيموالې ښكاريدو. خلقو د مطلب نه تپوس اوكړو دا څوك دې؟ مطلب د حياء دوجې نه داسې اووئيل چه دا زما غلام دې چه خلق داسې اونه وائى چه دا وراره ئى په داسې خيرنوكپړوكښې ولې دې په دې وجه د عبدالمطلب په نوم باندې مشهورشو. مطلب چه مكې ته اورسيدو ښكلې كپړې ئى ورته واغوستې اوهغه وخت ئى ښكاره كړه چه دا زما وراره دې.[5]

**قوله: لانجوت أن نجا أمية**:- دحضرت بلال رضي الله عنه وينا ده كه چرې اميه بچ شو نوزه به نه بچ

---

[1]) فتح البارى: ٦٠٥/٤.

[2]) عمدة القارى: ١٨٢/١٢.

[3]) الكنزالمتوارى: ٣٧٠/١٠.

[4]) سيرة المصطفىٰ صلى الله تعالى عليه وسلم: ٣٢/١ وفيه: هغوى ډيرښكلې اوښائسته وو يوشاعر وائى: علىٰ شيبة الحمد الذى كان وجهه يضيئ ظلام الليل كالقمر البدرى ( زرقانى:٧١/١).

[5]) سيرة المصطفىٰ صلى الله تعالى عليه وسلم: ٣٣/١.

کیږم ددې وجې نه وه چه امیه بن خلف داسلام د سختو دښمنانونه وو او په مکه مکرمه کښې دحضرت بلال رضي الله عنه د اسلام راوړلود وجې نه به ئې سخت تکلیفونه ورکول تردې چه دمکې په سخته ګرمه شګلنه زمکه باندې څملولو او دپاسه به ئې پرې غټ کانړې کیخودلو اوویل به ئې چه ته به هم په دې حال کښې پروت ئې. ترکومې چه ته د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دین پرینږدې اوحضرت بلال رضي الله عنه \چه دهمت او استقلال یوغر وو په جواب کښې احد احد فرمائیل.[1]

**قوله: فألقیت علیه نفسي لامنعه: اشکال**:- دلته لږ شان اشکال کیږی چه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه د هغه بدبخت دبچ کولو دومره کوشش ولې کولو؟

**جواب**:- جواب دادې چه دهغه خیال ووچه کله دې زما دومره شفقت اومهربانئی اووینی نوکیدې شی چه دده زړه نرم شی او اسلام راوړی نود هغه د اسلام په حرص کښې هغوی داسې کول.[2]

**قوله: قال ابوعبدالله سمع یوسف صالحًا الخ**:- ابوعبدالله یعنی امام بخاری رحمه الله فرمائی په سند کښې ذکرشوې یوسف ابن الماجشون رحمه الله د صالح بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف نه سماعت کړ او ابراهیم دخپل پلار عبدالرحمن بنعوف رضي الله عنه نه دحدیث سماع کړې ده. دامام بخاری رحمه الله ددې قول فائده داده چه ددې دواړو حضراتو سماع محقق ده صرف دعنعنه د وجې نه امکان د سماع نه دې لکه چه بعض محدثین امام مسلم رحمه الله وغیره په نیز امکان سماع هم د روایت د صحت دپاره کافی ده.[3]

## ۳-باب: الوکالة في الصرف والمیزان

وَقَدْوَکَّلَ عُمَرُوَابْنُ عُمَرَفِی الصَّرْفِ.

صرافی اوناپ تول کښې وکیل کول اوحضرت عمر، وحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما صرافی کښې وکیل اوکړو.

**دترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری رحمه الله فرمائی چه بیع صرف کښې هم وکیل جوړولې شی. چه یوسړې بیع صرف کوی پخپله ئې په څه وجه نه شی کولې نوکه هغه بل څوک سړې وکیل جوړکړی نو صحیح ده اوپه دې کښې د هیڅ اختلاف نشته. علامه ابن المنذر رحمه الله په دې باندې اجماع نقل کړې ده.[4]

**حضرت ګنګوهی رحمه الله توجیه**:- حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی امام بخاری رحمه الله په خاص توګه خکه تنبیه فرمائی چه په بیع صرف کښې تقابض فی المجلس ضروری کیږی. شبه به دلته کیدله چه کیدې شی په دې کښې توکیل جائزنه وی. چونکه وکالت کښې مؤکل اصیل وی

---

[1] ) عمدة القاری:۱۸۳/۱۲.

[2] ) الکنزالمتواری: ۳۶۹/۱۰.

[3] ) إرشادالساری: ۲۷۵/۵ وعمدة القاری: ۱۸۴/۱۲.

[4] ) شرح ابن بطال: ۳۶۰/۶.

او هغه په مجلس كښې حاضرنه وى نودوكيل قبضه كول شايد د مؤكل قبضه شماير نه وى. ځادا وهم كولې شو په دې وجه مصنف رحمه الله اوخودل چه په عقدكښې حقوق دوكيل طرف ته عائدكيږى كه وكيل قبضه كوى نوهغه به هم دمؤكل قبضه شميرلې شى اودابه دتقابض فى المجلس خلاف نه شى ګڼړلې (۱)

**قوله: والميزان** :- او والميزان په دې وجه ذكركړو چه په روايت كښې دكيلى څيز ثبوت ملاويږى د ميزان لفظ ليكلوسره دا اوخودلې شو چه څنګه په كيلى څيزكښې توكيل جائزدې په وزنى څيزونوكښې هم توكيل جائزدې د ثمنين شمير په وزنيات كښې كيږى هم د هغه ځائى نه مصنف رحمه الله داخبره اخذ كړه چه بيع صرف د وكيل په ذريعه كيدې شى نومعلومه شوه چه په نورو وزنياتوكښې به هم توكيل جائزوى.

**قوله: وقدوكل عمرو ابن عمر فى الصرف** :- دحضرت عمر او ابن عمر رضى الله عنهما تعليقات سعيدبن منصور رحمه الله د موسى بن انس عن ابيه اوحسن بن سعد په طريق باندې موصولاً ذكركړى دى. (۲)

[حديث ۲۱۸۰] (۳) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الْمَجِيدِ بْنِ سُهَيْلِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَأَبِي هُرَيْرَةَ رضى الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم اسْتَعْمَلَ رَجُلاً عَلَى خَيْبَرَ، فَجَاءَهُمْ بِتَمْرٍ جَنِيبٍ فَقَالَ «أَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هَكَذَا» فَقَالَ إِنَّا لَنَأْخُذُ الصَّاعَ مِنْ هَذَا بِالصَّاعَيْنِ، وَالصَّاعَيْنِ بِالثَّلاَثَةِ. فَقَالَ «لاَ تَفْعَلْ، بِعِ الْجَمْعَ بِالدَّرَاهِمِ، ثُمَّ ابْتَعْ بِالدَّرَاهِمِ جَنِيبًا». وَقَالَ فِي الْمِيزَانِ مِثْلَ ذَلِكَ. [۲۰۸۹]

**ترجمه**:- (حضرت ابوسعيد خدرى اوحضرت ابوهريره رضى الله عنهما فرمائى) حضورپاك صلى الله عليه وسلم يوسړې د خيبر تحصيل دار (عامل) مقرركړو هغه دهغه ځائى ښكلې كهجورې راوړې. حضورپاك تپوس اوكړو آيا په خيبركښې ټولې هم داسې كهجورې وى؟ هغه وئيل نه مونږ ددې كهجورو يوصاع په نورو كهجورو دوه صاع اوددې دوه صاع اود نورو كهجورو درې صاع په بدل اخلو. حضورپاك اوفرمائيل داسې مه كوئى بلكه دا (مخلوط) كهجورې اول د درهم په بدله كښې

---

(۱) لامع الدرارى: ۲۱۶/۶.

(۲) فتح البارى: ۶۰۶/۴.

(۳) وأخرجه البخارى أيضًا فى كتاب البيوع باب إذا أراد بيع تمربتمر خيرمنه رقم: ۲۲۰۱، ۲۲۰۲ وفى المغازى باب إستعمال النبى صلى الله تعالى عليه وسلم على أهل خيبر رقم: ۴۲۴۴، ۴۲۴۵، ۲۴۲۶ وفى الاعتصام بالكتاب والسنة باب إذا اجتهد العامل أو الحاكم فاخطا خلاف الرسول من غير علم فحكمه مردود رقم: ۷۳۵۰، ۷۳۵۱ وأخرجه مسلم فى كتاب المساقاة باب بيع الطعام مثلاً رقم: ۴۰۵۷، ۴۰۵۸ وأخرجه النسائى فى كتاب البيوع، باب بيع التمربالتمر متفاضلاً رقم: ۴۵۶۷، ۴۵۶۸ وانظر تحفة الاشراف رقم: ۴۰۴۴

خرڅې کړنی بیا په دغه دراهموسره اعلی کهجورې واخلنی او د تول په څیزونوکښې هم دغه حکم ورکړو.

## رجال الحديث

۞ **عبدالله بن يوسف**:- دا عبدالله بن تنيسى رحمه الله دی.[1]

۞ **امام مالک** رحمه الله:- دا امام مالک بن انس رحمه الله دی.[2]

۞ **عبدالمجيد**:- داعبدالمجيد بن سهيل بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دی.[3]

۞ **سعيدبن مسيب**:- دوی معروف تابعی، سعيدبن مسيب رحمه الله دی.[4]

۞ **ابوسعيدخدری**:- دوی معروف صحابی سعدبن مالک بن سنان ابوسعيد خدری رضی الله عنه دی.[5]

۞ **ابوهريره**:-دوی مشهورصحابی حضرت ابوهريره رضی الله عنه دی.[6]

**حل اللغات: جنيب**:- يوښکلې قسم کهجورې.[7] **الجمع**:-غيرمعروف کهجورې يا مختلف قسم جيد او ردی کهجورې.[8]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت قوله: بع الجمع بالدراهم ثم ابتع بالدراهم جنيبًا يعنی دَ رسول الله ﷺ دَخيبرعامل ته دا وينا چه تاسو دغه ګډې وډې کهجورې په دراهم باندې خرڅې کړنی او بيا په دغه دراهم سره اعلی قسم کهجورې واخلنی دادکهجورو د بيع اوشراء دپاره وکيل جوړول دی.[9]

## ۴- باب: إذا أبصر الراعي أو الوكيل شاة تموت، أو شيئًا يفسد ذبح وأصلح ما يخاف عليه الفساد

کله چه ګډبه اووکيل يوچيلئی مړه کيدونکې اووينی يا يوڅيزورانيدونکې اووينی نوهغه دې ذبح کړی اوخرابيدونکې څيزدې صحيح کړی.

**دَترجمة الباب مقصد**:- ددې ترجمة الباب په غرض کښې دوه اقوال دی.

۞ **د علامه ابن المنيرمالکی** رحمه الله **قول**:- علامه ابن المنير مالکی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب او په دې کښې پيش کړې روايت سره دَ ذبيحه په حلت اوحرمت باندې

---

[1] کشف الباری:۱/۲۸۹، ۱۱۳/٤.

[2] کشف الباری:۱/۲۰، ۸۰/۲.

[3] کشف الباری کتاب البيوع باب إذا أراد بيع تمربتمر خيرمنه.

[4] کشف الباری:۱۵۹/۲.

[5] کشف الباری:۸۲/۲.

[6] کشف الباری:۶۵۹/۱.

[7] النهاية: ۲۹۷/۱.

[8] النهاية: ۲۹۷/۱ وعمدة القاری: ۱۸۵/۱۲.

[9] عمدة القاری: ۱۸٤/۱۲.

بحث نه كول غواړى بلكه امام بخارى رحمه الله داخودل غواړى چه راعى يا وكيل داسې څه تصرف اوكړى چه د مؤكل دمصلحت مطابق وى چه يوڅيز ضائع كيدلو اوهغه د ضائع كيدونه د بچ كيدو دپاره داسې تصرف اوكړو مثلاً چيلئى دمره كيدو انديښنه پيداشوه هغه ذبح كړه نو په دې صورت كښې ښكاره خبره ده چه د مالك خيال نى اوساتلو ګنى هغه به مرداره شوې وه. اوس به دلته په شپونړكى او وكيل باندې څه ضمان نه راځى. په روايت الباب كښې دادى چه د كعب بن مالك رضي الله عنه يوې وينځې به دهغه چيلئى څرولې. اتفاقى يوه چيلئى مره كيدله نوهغې زر كانړې واخستلو اوهغه ئى ذبح كړه. حضرت كعب رضي الله عنه چه حضورپاك ته ددې ذكر اوكړو نو حضورپاك اوفرمائيل چه ټيك ده دهغې په خوړلوكښې هيڅ مضائقه نشته يعنى د وينځې ذبح صحيح ده اودهغې دا فعل دهيڅ نكير مستحق نه دې. (١)

⑥ **دعلامه ابن التين رحمه الله قول:** - علامه ابن التين رحمه الله فرمائى چه دا جارية خود كعب بن مالك رضي الله عنه وينځه وه اود هغه په ملك كښې داخله وه ددې نه داچرته ثابت شو چه كه وكيل يوداسې تصرف اوكړى په كوم كښې چه دهغه نيت د مؤكل ښيګړه وى نودهغه په ذمه به ضمان نه راځى. منشاداده چه د دې جاريه قصې سره د وكيل په قصه باندې استدلال كول به صحيح نه وى بلكه دامام بخارى رحمه الله په تفصيل سره خودامعلوميږى كه چرې په داسې صورتحال كښې داسې تصرف يووكيل يا بل څوك سرې كوى نودا تصرف جائزدې اودا خبره دتضمين نه زياته عام ده. (٢) مثلاً يوسړې چا په خپلو څاروو او چيلوباندې وكيل جوړكړو او ورته ئى اووئيل چه دا فلانكى ځائى ته اورسوه. اتفاقى په لاركښې داسې صورت پيداشو چه يوڅاروې يا چيلئى مره كيدله اوس هغه سوچ اوكړو كه دا مره شى نو بالكل به ضايع شى نوهغه ئى حلاله كړه اود مرداريدونه ئى بچ كړه. په داسې صورت كښې دوكيل په تصرف باندې دمالك دطرف نه رضامندى ښكاره كول پكاردى. امام بخارى رحمه الله دامذكوره صورت بيانول غواړى. حقيقت دادې چه دواړه غرضونه كوم بيان كړې شو هغه بهرحال په خپل ځائى صحيح دى.

[حديث ٢١٨١] (٣) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ سَمِعَ الْمُعْتَمِرَ أَنْبَأَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ كَانَتْ لَهُمْ غَنَمٌ تَرْعَى بِسَلْعٍ، فَأَبْصَرَتْ جَارِيَةٌ لَنَا بِشَاةٍ مِنْ غَنَمِنَا مَوْتًا، فَكَسَرَتْ حَجَرًا فَذَبَحَتْهَا بِهِ، فَقَالَ لَهُمْ لاَ تَأْكُلُوا حَتَّى أَسْأَلَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم-، أَوْ أُرْسِلَ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مَنْ يَسْأَلُهُ. وَأَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ -صلى

---

(١) المتوارى على تراجم البخارى ص: ٢٥٩ وفتح البارى: ٤/٦٠٧.

(٢) فتح البارى: ٤/٦٠٧.

(٣) وأخرجه البخارى فى كتاب الذبائح والصيد باب ما أنهر الدم من القصب والمروة والحديد رقم: ٥٥٠١، ٥٥٠٢ وفى باب ذبيحة المرأة والامة رقم: ٥٥٠٤، ٥٥٠٥ والطبرانى فى معجم الكبير باب الكاف كعب بن مالك الانصارى رضي الله عنه: ١٩/٧٣ والحديث من أفراد البخارى رحمه الله تعالى كذا قال الحميدى رحمه الله تعالى فى الجمع بين الصحيحين: ١/٢٧٧.

الله علیه وسلم- عَنْ ذَاكَ، أَوْ أَرْسَلَ، فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهَا. قَالَ عُبَيْدُ اللّهِ فَيُعْجِبُنِي أَنَّهَا أَمَةٌ، وَأَنَّهَا ذَبَحَتْ. تَابَعَهُ عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّهِ.[۵۱۸۲، ۵۱۸۳، ۵۱۸۵، ۵۱۸۶]

**ترجمه**:- دَحضرت کعب بن مالك رضی الله عنه نه روایت دې چه دَهغه چیلئی په سلع غرباندې (کوم چه مدینه کښې دې) څریدلې. زمونږ یوې وینځې اولیدلې چه په هغې کښې یوه چیلئی مره کیدله نوهغې یوکانړې مات کړو او په هغې نې چیلئی حلاله کړه. کعب رضی الله عنه خلقو ته اوونیل دَې غوښه مه خورئی تردې چه زه دَ حضورپاك نه پښپله تپوس اوکړم. یائی داسې اوونیل چه دَ نبی کریم ﷺ په خدمت کښې څوك اولیګم تپوس اوکړې. بیا هغوی پښپله دَحضورپاك نه تپوس اوکړو یائی څوك اولیګل تپوس ئی اوکړو حضورپاك دَهغې دَغوښې خوړلو حکم ورکړو. عبیدالله بن عمر رحمه الله فرمائی زمادا خبره خوښه شوه چه هغه وینځه وه اوهغې چیلئی حلاله کړه.

## رجال الحدیث

⊙ **اسحاق بن ابراهیم**:- دا اسحاق بن ابراهیم حنظلی ابن راهویه رحمه الله دې.[1]

⊙ **معتمربن سلیمان**:- دا معتمربن سلیمان بن طرخان رحمه الله دې.[2]

⊙ **عبیدالله**:- داعبیدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمربن الخطاب العمری رحمه الله دې.[3]

⊙ **نافع**:- نافع مولی عبدالله بن عمر رضی الله عنه دې. کشف الباري:۶۵۱/۴.

⊙ **ابن کعب بن مالک** رضی الله عنه:- ابن کعب بن مالك رضی الله عنه نه مراد څوك دې. علامه مزی په اطراف کښې تصریح کړې ده چه دې نه مراد عبدالله دې.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دې نه مراددَهغوی رور عبدالرحمن دې. اودَدې تائیدهم دَدې مضمون دې روایت نه هم کیږی کوم چه ابن وهب عن اسامه بن زید عن ابن شهاب عن عبدالرحمن بن کعب بن مالك په طریق سره نقل کړې دې.[5]

**کعب بن مالک**:- دَحضرت کعب بن مالك بن ابی کعب عمرو بن القیس انصاری مدنی رضی الله عنه احوال تیرشو.[6]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت دَ راعی په مسئله

---

[1]) کشف الباري:۴۲۸/۳.

[2]) کشف الباري:۵۹۵/٤.

[3])کشف الباری کتاب الوضوء باب التبرز فی البیوت.

[4]) فتح الباري:۶۰۱/٤ دَ دوی تفصیلی احوال دَ پاره اوګورئی کشف الباری کتاب الصلاة باب التراضی والملازمة فی المسجد.

[5]) إرشاد الساری:۲۷۷/۵ وفتح الباري:۶۰۷/٤ دَوی دَتفصیلی احوال دَپاره اوګورئی کشف الباری کتاب الجنائز باب الصلاة علی الشهداء.

[6])کشف الباری کتاب الصلاة باب الصلاة إذا قدم من السفر.

کښې ښکاره دې څکه چه هغه وینځې دچیلو خصمانه کوله اوددې نه دوکالت مسئله هم په دې توګه ثابته شوه چه که شپونړکې وی اوکه وکیل ددې دواړو قبضه قبضه امانت وی. لهذا دوی په دې امانت کښې داسې تصرف کولې شی دَ کوم مصلحت چه ښکاره وی ګنی دَتعدی ضمان به په دوی لازم راځی.(١)

**قوله: قال عبیدالله فیعجبنی أنها أمة وأنها ذبحت:-** عبیدالله بن عمر رحمه الله فرمائی ماته عجیبه ښکاره شوه چه یوه وینځه وه اوهغې دغه چیلئی حلاله کړه یعنی هغې دَوینځې کیدوباوجود دَخپل آقادَمصلحت دومره خیال اوساته او دَحسن فکر ثبوت ئې ورکړو او په عام توګه باندې وینځې داسې نه کوی.(٢)

علامه ابن التین رحمه الله فرمائی ددې حدیث نه معلومه شوه چه دَښځې ذبیحه حلاله ده که حره وی اوکه وینځه وی او دا مذهب جماهیر علماء امام ابوحنیفه رحمه الله امام مالك، امام شافعی، امام احمد وغیرهم رحمهم الله اختیار کړې دې. بل ددې حدیث نه امام ابوحنیفه مالك شافعی اوزاعی ثوری رحمهم الله دَ داسې ذبیحې استدلال کړې دې. کوم چه دَمالك دَ اجازت نه بغیر ذبح کړې شوې وی سره ددې چه داؤدظاهری رحمه الله وغیره دې سره اختلاف کړې دې خودهغه قول شاذ دې.(٣)

**قوله: تابعه عبدة عن عبیدالله:-** یعنی دا روایت معتمربن سلیمان سره عبدة بن سلیمان کوفی هم دَ عبیدالله بن عمر نه روایت کړې دې. اوامام بخاری رحمه الله دا متابعت په کتاب الذبائح کښې موصولاً ذکرکړې دې.(٤)

## رجال الحدیث

**عبدة:-** عبده بن سلیمان ابومحمد کلابی رحمه الله دې.(٥)

## ۵-باب: وکالة الشاهد والغائب جائزة

**وَكَتَبَ عَبْدُاللهِ بْنِ عُمَرٍوإِلَى قَهْرَمَانِهِ وَهُوَغَائِبٌ عَنْهُ: أَنْ يُزَكِّيَ عَنْ أَهْلِهِ الصَّغِيْرِوَالْكَبِيْرِ.**

حاضر اوغائب هریووکیل کول صحیح دی او عبدالله بن عمر رضی الله عنهما خپل وکیل ته اولیکل اوهغه دَهغه نه غائب وو چه دَهغه دکور دَټولو لویو اووړو دَ طرف نه صدقه فطرادا کړی.

**دَترجمة الباب مقصد اودَ علماؤدَاختلاف بیان:-** ددې ترجمة الباب غرض دادې چه دَ غائب او حاضر دواړو وکالت جائزدې یعنی که مؤکل په ښارکښې موجود وی نوبیاهم هغه دَخپل طرف نه څوك وکیل جوړولې شی اوکه هغه چرته په سفرباندې تلې وی نوبیائی هم دَخپل طرف نه

---

١) إرشادالساری:۲۶۸/۵.

٢) لامع الدراری:۲۱۸/۶.

٣) عمدة القاری:۱۷۸/۱۲.

٤) إرشادالساری:۲۷۸/۵.

٥) کشف الباری:۹۴/۲.

وکیل جوړولې شی.(۱) او امام بخاری رحمه الله پیش کړې شوې اثر دَمؤکل حاضر غائب وکیل جوړولوپه سلسله کښې خو اضح دې اودَمؤکل غائب حاضر وکیل جوړول دَدې نه په طریقه اولی مستفاد کیږي دکوم تفصیل چه وړاندې دَحدیث په ضمن کښې راغې. په دې باندې دَټولو اتفاق دې چه دَ غائب دَ طرف نه توکیل جائزدې لیکن که مؤکل په ښار کښې موجود دې نوهغه څوك خپل وکیل جوړولې شی که نه؟ په دې کښې څه تفصیل دې. امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دَعذر په صورت کښې خوئی جوړولې شی اوبغیردَ عذرنه ئی نه شی جوړولې مثلاً دې چرته په سفرروان دې یا دا چه هغه بیماردې او یوبل صورت دادې چه که چرې خصم راضی وی چه ستاسو دَ راتلوضرورت نشته دَحاکم دَپاره خپل څوك وکیل مقررکړه نو په دې صورت کښې هم جائزدې.(۲) امام مالك رحمه الله فرمائی که دَخصم اووکیل په مینځ کښې عداوت اودښمنی وی نوبیا داسې صورت کښې وکیل جوړول جائزنه دی.(۳)

**دَعلامه ابن بطال رحمه الله اشکال:-** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه حدیث باب دَ امام ابوحنیفه رحمه الله خلاف دې ځکه چه په دې کښې حضورپاك ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته حکم ورکړو چه هغه حضرات دې قرض خواه له اوښ ورکړی اودادَحضورپاك دَ طرف نه توکیل وو حالانکه حضورپاك نه غائب وو نه بیماروو اونه مسافروو.(۴)

**دَعلامه عینی رحمه الله جواب:-** علامه عینی رحمه الله فرمائی حدیث باب دَامام ابوحنیفه رحمه الله خلاف حجت نه دې ځکه چه امام صاحب دَ حاضربالبلددَتوکیل منکرنه دې بلکه هغوی فرمائی توکیل خوجائزدې ولې لازم نه دې اودَ لازم نه کیدو مطلب دادې که بل فریق دا وائی چه زه ستاپه دې وکیل باندې راضی نه یم چه دې دې ستادَ طرف نه پیروی اوکړی تاسو پخپله کچهرو ته تشریف راوړئی نوبیابه دَمؤکل حاضریدل ضروری شی چونکه دا توکیل لازم نه دې اوکه چرې هغه فریق راضی شی نوبیاهیڅ بدیت نشته.(۵)

**وَكَتَبَ عَبْدُ اللهِ بْنِ عَمْرٍو إِلَى قَهْرَمَانِهِ وَهُوَ غَائِبٌ عَنْهُ: أَنْ يُزَكِّيَ عَنْ أَهْلِهِ، الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ.**

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه عبدالله بن عمر رضی الله عنهما بغیردَ واؤ نه دې اومراد عبدالله بن عمر بن الخطاب رضی الله عنهما دې.(۶)

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په دَدې کښې نسخې مختلف دی بعض کښې عبدالله بن عمرو (واؤسره) دې اوبعض کښې عبدالله بن عمر(بغیردَ واؤ) دې.(۷)

---

(۱) عمدة القاری:۱۲/۱۸۹وفتح الباری: ۴/۶۰۸ وشرح ابن بطال:۶/۳۶۲ – ۳۶۳ وإرشادالساری:۵/۲۷۸ - ۲۷۹.

(۲) عمدة القاری:۱۲/۱۸۹وفتح الباری: ۴/۶۰۸ وشرح ابن بطال:۶/۳۶۲ وإرشادالساری:۵/۲۷۸ - ۲۷۹.

(۳) عمدة القاری:۱۲/۱۸۹وفتح الباری: ۴/۶۰۸ وشرح ابن بطال:۶/۳۶۲ – ۳۶۳ وإرشادالساری:۵/۲۷۸ - ۲۷۹.

(۴) شرح ابن بطال:۶/۳۶۳.

(۵) عمدة القاری:۱۲/۱۸۹.

(۶) شرح الکرمانی:۱۰/۱۳۴.

(۷) عمدة القاری:۱۲/۱۸۸.

**حل اللغات: قهرمان**:- دَ فارسی ژبې لفظ دې په معنی خازن وکیل حافظ خادم.[1]

**تشریح**:- حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه خپل قهرمان ته اولیکل چه هغه دَ ده تول کوروالاکه واړه دی اوکه لوئی دټولو دَ طرف نه صدقه فطراداکړه لکه چه ده دغه قهرمان خپل وکیل جوړ کړو

[حدیث ۲۱۸۲][2] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَلَمَةَ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ- رضى الله عنه- قَالَ كَانَ لِرَجُلٍ عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- سِنٌّ مِنَ الإِبِلِ فَجَاءَهُ يَتَقَاضَاهُ فَقَالَ « أَعْطُوهُ » . فَطَلَبُوا سِنَّهُ فَلَمْ يَجِدُوا لَهُ إِلاَّ سِنًّا فَوْقَهَا . فَقَالَ « أَعْطُوهُ » . فَقَالَ أَوْفَيْتَنِي أَوْفَى اللَّهُ بِكَ . قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « إِنَّ خِيَارَكُمْ أَحْسَنُكُمْ قَضَاءً ».[۲۱۸۳، ۲۲۶۰، ۲۲۶۲، ۲۲۶۳، ۲۲۷۱، ۲۴۶۵، ۲۴۶۷]

**ترجمه**:- حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی په رسول الله ﷺ باندې دَ یوسړی یواوښ قرض وو. هغه دَ حضورپاك نه دَ تقاضا کولودپاره راغلو حضورپاك اوفرمائیل دَ ده اوښ ورکړه. صحابه کرامو رضی الله عنهم اولټولوخودَهغه دَعمر اوښ ملاؤنه شو بس هغه (اوښ) به ملاویدلوچه دَهغه دَ اوښ نه به نی عمر زیات وو (یعنی ډیر قیمتی). حضورپاك اوفرمائیل هم دغه ورکړئی نوهغه اووئیل چه تاسو زماځنګه حق پوره پوره راکړو دغه شان دې الله تعالی هم تاسوته بنه درکړی. بیاپیغمبر ﷺ اوفرمائیل تاسو کښې هم هغه خلق ډیربنه دی چه قرض په بنه شان سره اداکړی.

## رجال الحدیث

① **ابونعیم**:- دا ابونعیم فضل بن دکین رحمه الله دې.[3]

② **سفیان ثوری**:- داسفیان بن سعیدثوری رحمه الله دې.[4]

③ **سلمه بن کهیل**:- دا سلمه بن کهیل حضرمی رحمه الله دې.[5]

---

[1]) فتح الباری:۶۰۸/٤ وإرشادالساری:۲۷۸/۵.

[2]) أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الوکالة باب الوکالة فی قضاوالدین رقم:۲۳۰۶۱ وفی کتاب الاستقراض وأداء الدیون باب استقراض الابل رقم: ۲۳۹۰ وفی باب هل یعطی اکبرمن سنه رقم:۲۳۹۲ وباب من القضاء رقم: ۲۳۹۳ و باب لصاحب الحق مقال رقم: ۲٤۱ وفی کتاب الهبة وفضلها باب الهبة المقبوضة وغیر المقبوضة الخ رقم:۲۶۰۶ وباب من أهدی له هدیة وعنده جلساؤه فهوأحق رقم: ۲۶۰۹ وأخرجه مسلم فی کتاب المساقاة باب من استلف شیئًا فقضی خیراً منه الخ رقم:٤۰۸٤ – ٤۰۸۸ وأخرجه مسلم فی کتاب البیوع باب ماجاء فی استقراض ابعیر الخ رقم:۱۳۱۶ وأخرجه النسائی فی کتاب البیوع باب استلاف الحیوان واسقراضه رقم:٤۶۳۲ وفی باب الترغیب فی حسن القضاء رقم: ٤۷۰۷.

[3]) کشف الباری:۶۶۹/۲.

[4]) کشف الباری:۲۷۸/۲.

[5]) کشف الباری کتاب الصوم باب من مات وعلیه الصوم.

⑥ **ابوسلمه**:- دا ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه دی.[1]

⑤ **ابوهریره**:- دامشهور صحابی رسول حضرت ابوهریره رضی الله عنه دی.[2]

**حل اللغات سنًّا**:- په معنی دَ غابښ، عمر داسې څناورته وائی دَ کوم چه غابښونه شوې وی دَدې جمع أسنان راځی.[3]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت دَوکالة حاضره په مسئله کښې خو **قوله: أعطوه** سره واضح دې چه حضورپاک صلی الله علیه وسلم بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم ته دَاوښ ورکولودَپاره وکیل جوړکړو.[4] اودَ وکالت غائبه په سلسله کښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا په دې حدیث سره په طریقه اولی ثابتیږی. ځکه چه کله مؤکل حاضریدوسره بل وکیل جوړولې شی اوهغه پخپله په دې عمل قدرت لری نودَغائب کیدو په صورت کښې خودَاحتیاج اوضرورت دَوجې نه هغه زیات اهل دې چه دَ خپل طرف نه وکیل مقررکړی.[5] علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه قوله اعطوه لفظ دواړو صورتونوته شامل دې. دَدې دَپاره که چرې په دې سره خطاب حاضرینوته اوکړې شی ولې دَعرف اوقرائن حال په اعتبار دواړو صورتونوته متضمن دې.[6]

**ایادَ حیوان استقراض جائزدې؟**:- په دې مسئله کښې اختلاف دې چه دَ څناور استقراض جائز دې که نه؟ رومبې مسلك دَ جمهورعلماؤ دې یعنی امام مالك امام احمد امام اوزاعی امام شافعی لیث او اسحاق وغیرهم رحمهم الله فرمائی دَ ټولو څیزونو په شان په حیوان کښې هم قرض جائزدې. حدیث باب نه دَدې تائیدکیږی.[7] اودا حضرات وینځه دَدې نه مستثنی ګرځوی چه دا په قرض ورکول جائزنه دی سوا دَهغه سړی نه چه دَ دغه وینځې محرم وی یا ښځه یا خنثی وی.[8] دویم مسلك دَ ابن جریر رحمه الله او داؤدظاهری دې دَدې حضراتو په نیز وینځه قرض ورکول هم جائزدی.[9] او دریم مسلك دَ امام ابوحنیفه رحمه الله امام ثوری حسن بن صالح وغیرهم رحمهم الله دې. داحضرات دَدې دَعدم جواز قائل دی.[10] دَدې حضراتو دلیل دَحضرت جابر رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم نسیئةً دَحیوان بیع په حیوان سره کولونه منع

---

[1] ) کشف الباری:۲/۳۲۳.

[2] ) کشف الباری:۱/۶۵۹.

[3] ) المغرب: ۱/۴۱۸.

[4] ) عمدة القاری:۱۲/۱۸۸ وفتح الباری: ۴/۶۰۸.

[5] ) فتح الباری: ۴/۶۰۸.

[6] ) شرح الکرمانی:۱۰/۱۳۵.

[7] ) نیل الاوطار:۵/۲۴۵وعمدةالقاری:۱۲/۱۸۹.

[8] ) نیل الاوطار:۵/۲۴۵وعمدةالقاری:۱۲/۱۸۹.

[9] ) نیل الاوطار:۵/۲۴۵وعمدةالقاری:۱۲/۱۸۹.

[10] ) نیل الاوطار:۵/۲۴۵وعمدةالقاری:۱۲/۱۸۹.

فرمائيلي ده.(۱) اوچه كله حضورپاك دَ بيع نه منع فرمائيلي ده نودَ قرض ممانعت خو به په طريقه اولى سره ثابت وى. ځكه چه په بيع كښې د قبيل مثليات كيدل هم ضرورى نه دى اوپه قرض كښې زمونږ په نيز ازقبيل مثليات كيدل ضرورى دى اودَ ذوات قيم استقراض جائزنه دې ځكه چه معروف كليه ده **الاقراض تقضى بامثالها** لهذا دَ شميردَ تفاوت په څيزونوكښې استقراض صحيح نه دې. ځكه چه په دې كښې مثل نه وى. (۲)اوداسې هم ونيلې شى چه كله حيوان قرض خرڅول ممنوع دى نوقرض به هم ممنوع وى ځكه چه دَدواړو علت جامعه دهغې څيزونه عدديه متفاوته نه كيدل دى. (۳)

---

۱) أخرجه ابن ماجه فى سننه فى باب الحيوان بالحيوان نسيئةً رقم الحديث : ۲۲۷۱،۲۲۷۰ وأخرجه ابن حبان فى صحيحه فى ذكر الزجر عن بيع الحيوان بالحيوان إلا يداً بيد عن ابن عباس رضي الله عنهما رقم الحديث :۵۰۲۸ وأبوداؤد فى باب الحيوان بالحيوان نسيئةً رقم الحديث :۳۳۵۶، والترمذى فى باب ماجاء فى كراهية بيع الحيوان بالحيوان نسيئةً عن سمرة رضى الله تعالى عنه رقم:۱۲۳۷.

۲)عمدة القارى:۱۲/۶۴

۳) عمدة القارى: ۱۲/۶۴.

دَ مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله يوعجيبه توضيح:- ليكن حضرت انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه وأقول من عند نفسى إن الحيوانات،وإن لم تثبت فى الذمة فى القضاء، لكنه يصح الاستقراض به فيما بينهم، عند عدم المنازعة والمناقشة، وهذا اللذى قلت، ان الناس يعاملون فى أشياء تكون حانزة فيما بينهم على طريق المرأة والاغماض، فاذا رفع إلى القاضى يحكم عليه ا بعدم الجواز، فالاستقراض المذكور عند عدم المنازعة حجائزعندى، وذلک لان العقود على نحوين: نحو يكون معصية فى نفسه، واذا لايجوز مطلقًا، ونحوآخر لايكون معصية، وإنتما يحم عليه بعدم الجواز لافضائه إلى المنازعة، فاذا لم تقع فيه منازعة حاز. واستقراض البعيرمن النحو الثانى، لان ليس بمعصية فى نفسه،وإنما ينهى عنه، لان ذوات القيم لا تتعين إلا بالتعيين، والتعيين فيما لايجصل إلا بالاشارة، فلاتصلح للوجوب فى الذمة، فاذا لم تتعين افضى إلى المنازعة عندالقضاء لامحالة، فاذا كان النهى فيه لعلة المنازعة حاز عندانتفاء العلة، والحاصل الخ. (اوگورئى فيض البارى على صحيح البخارى: ۲۸۹/۳، ۲۹۰)

يعنى استقراض حيوانات يعنى دهغې په ذمه كښې ثابتيدل سره ددې چه داحنافو په نيز قضاءً ناجائزدى ليكن دخلقو دخپل مينځ دمعاملاتو په اعتبارسره كه اوكتلې شى چه نود منازعت اوجګړې د احتمال نه كيدو په صورت كښې دا استقراض جائزكيدل پكاردى اودا خبره زه ځكه كوم چه خلق اكثر په خپل مينځ كښې دامعاملات كوى چه په اعتبارد مروت اوسترګوپټولو دهغوى په مينځ كښې جائزاو رائج وى. اوچه كله دوى د يوقاضى طرف ته بوځې نوعدم جوازمعلوميږى. نودامذكوره استقراض هم دعدم منازعت په صورت كښې زما په نيزجائزدې اودا ځكه چه دَ شريعت مطهره منع كړې شوې عقود په دوو قسموباندې دى: ① داسې عقوق چه فى نفسه په معصيت باندې مبنى وى نودداسې امورو ارتكاب خو على الطلاق جائزنه دې. ② داسې عقوق چه في نفسه په معصيت باندې مبنى نه وى يعنى في نفسه حرام نه دى ليكن د مفضى إلى المنازعت كيدو دوجې نه دا قضاءً جائزګرځولې شى. لهذا دَ منازعت احتمال نه كيدو په صورت كښې دا جائزكيدل پكاردى. اودا استقراض حيوان مسئله عقود دويم قسم نه ده. ځكه چه فى نفسه په دې كښې هيڅ ګناه نشته اوددې نه ځكه منع كړې شوې ده چه دا د ذوات قيم نه دى او... ابقيه حاشيه په راروانه صفحه...

# ۶-باب: الوکالة فی قضاء الدیون

## قرضه اداکولودپاره وکیل کول

**دَترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دَ دین دَ ادائیگئی دَپارهم وکیل مقررول جائزدی

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله قول**:- حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله فرمائی امام بخاری رحمه الله دې ترجمة الباب سره دَ یوتوهم دفعیه فرمائیلې ده اوهغه دادې چه قضاء دیون کښې توکیل په ظاهره جائزنه دی کیدل پکار خکه چه دَ دین قاعده داده چه کله هم دائن مطالبه اوکړی اومدیون په اداکولوباندې قادروی نوهغه له زر ورکول پکاردی اودَ توکیل په صورت کښې به وخت لګی. امام بخاری رحمه الله دا شبه لرې کړې اوونیلی دی چه دَ قضاء دیون دَپاره په توکیل کولوکښې هیڅ بدیت نشته اودا په هغه روستوکولواو ټال متبول کښې داخل نه دی دَ کوم ممانعت چه په حدیث کښې فرمائیلې شوې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله چه کوم دَ ترجمة الباب غرض بیان کړې دې دا دَعلامه ناصرالدین ابن منیر رحمه الله نه ماخوذ دې.(۱)

**دَ حضرت شیخ الهند رحمه الله قول**:- حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی چونکه سنن ابی داؤد وغیره کښې حضرت سمرة بن جندب رضی الله عنه روایت دې. علی الید ما أخذت (۲) یعنی چاچه یوڅیز واخستو دهغه په ذمه دی چه هغه دې اداکړی. په دې سره په ظاهره دا شبه کیدله چه قرض دارې دې پخپله هغه دیون اداکړی او په دې کښې توکیل صحیح نه دې. نو امام بخاری رحمه الله اوخودل چه په قضاء دیون کښې په توکیل کښې هیڅ مضائقه نشته او علی الید ما أخذت مطلب صرف دادې چه مال قرض ورکونکی ته رسول ضروری دی که هغه پخپله اورسولې شی اوکه دَ وکیل په ذریعه. په دواړو صورتونو کښې مقصود حاصلیږی.(۳) او دویمه خبره داهم ده چه علی الید ما اخذت تعلق خود باب غصب سره دې اودلته دَ غصب مسئله نه شی بیانولې بلکه دلته خو دَ دین مسئله بیانولې شی.

---

.....بقیه حاشیه دتیرمخ| ذوات قیم څیزونه بغیردَ تعیین نه متعیین کیدې نه شی.او دَدې تعین په اشاره سره حاصلیږی لهذا دا څیزونه په ذمه کښې دَ صلاحیت نه لری نود متعین نه کیدو دَ وجې نه مفضی الی المنازعة شي او په اعتبار به قضاء ناجائزګرځولی شي. معلومه شوه چه په دې کښې نهی لذاته نه ده بلکه نهی لغیره ده اودې، علت منازعه دې نوددغه علت دَ انتفاء په صورت کښې دامعامله جائزکیدل پکاردی.

(۱) فتح الباری: ۶۰۹/٤.

(۲) أخرجه الامام أبوداؤد رحمه الله تعالی فی سننه فی کتاب الاجارة باب فی تضمین العاریة رقم: ۳۵۶۱ وأخرجه الامام الترمذی رحمه الله تعالی فی کتاب البیوع باب ماجاء فی أن العاریة مؤداة رقم:۱۲۶۶ والامام ابن ماجة رحمه الله تعالی فی باب العاریة رقم: ۲٤۰۰.

(۳) الابواب والتراجم ص: ۱۷۰.

احدیث باب ۲۱۸۳ (۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَتَقَاضَاهُ، فَأَغْلَظَ، فَهَمَّ بِهِ أَصْحَابُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «دَعُوهُ فَإِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا». ثُمَّ قَالَ «أَعْطُوهُ سِنًّا مِثْلَ سِنِّهِ». قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ لَا نَجِدُ إِلَّا أَمْثَلَ مِنْ سِنِّهِ. فَقَالَ «أَعْطُوهُ فَإِنَّ مِنْ خَيْرِكُمْ أَحْسَنَكُمْ قَضَاءً». [ر: ۲۱۸۲]

**ترجمه**:- یو سړی نبی کریم ﷺ له راغلو اودهغوی نه ئی دخپل قرض غوښتنه اوکړه اوسخت الفاظ ئی اوونیل. د حضورپاك صحابه کرامو ﷺ هغه ته سزا ورکول غوښتل لیکن حضورپاك اوفرمائیل دې پرېږدئی چه وائی د چاچه حق وی هغه داسې خبرې کولې شی. بیاحضورپاك اوفرمائیل ده ته هم د هغه عمر والا اوښ ورکړئی. صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو دهغه عمر والاخونشته دهغې نه د بهترعمروالا اوښ موجود دې. حضورپاك اوفرمائیل هم دغه ورکړئی په تاسوکښې بهترین خلق هم هغه دی چه په ښه طریقه سره قرض اداکړی.

## رجال الحدیث

① **سلیمان بن حرب**:- دا سلیمان بن حرب واثمی بصری رحمه الله دې. (۲)
② **شعبة**:- دا شعبة بن حجاج رحمه الله دې. (۳)
③ **سلمة ب کهیل**:- دا سلمة بن کهیل حضرمی کوفی رحمه الله دې. (۴)
④ **ابوسلمة**:- دا ابوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. (۵)
⑤ **ابوهریره**:- دامشهورصحابی حضرت ابوهریره رضي الله عنه دې. (۶)

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: أعطوه سنا مثل سنه سره ښکاره دې. (۷) یعنی رسول الله ﷺ صحابه کرام ﷺ دخپل دین دادا کولو دپاره وکیل جوړکړلو.

## ۷- باب: إذا وهب شيئًا لوكيل أو شفيع قومٍ جاز

لِقَوْلِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم لِوَفْدِ هَوَازِنَ حِينَ سَأَلُوهُ الْمَغَانِمَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم (نَصِيبِي لَكُمْ)

---

(۱) مرتخريجه فى الباب السابق.
(۲) كشف البارى: ۱۰۵/۲.
(۳) كشف البارى: ۶۷۸/۱.
(۴) كشف البارى كتاب الصوم باب من مات وعليه الصوم.
(۵) كشف البارى: ۳۲۳/۲.
(۶) كشف البارى: ۶۵۹/۱.
(۷) إرشادالسارى: ۲۸۰/۵.

که د یو قول وکیل یا سفارشی ته څه هبه کړې شي نو صحیح دی. څکه چه کوم وخت د هوازن د طرف نه څه خلق راغلي وو او هغوی د نبی کریم ﷺ نه د مال غنیمت واپس کولو درخواست کړې وو نو حضور پاك او فرمائیل کوم چه زما په حصه کښې راغلی دی هغه تاسو واخلئی

**د ترجمة الباب مقصد:**- د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه که یو سړې د یو قوم یا قبیلې د طرف نه څه هبه کول غواړی او د هغه قوم د طرف نه څوك نمائنده وی نو هغه نمائنده د قوم پورې دغه څیز رسولو د پاره وکیل جوړ کړئی نو دا جائزدی او د استدلال په توګه امام بخاری رحمه الله د بنی هوازن د وفد واقعه پیش کړې ده چه هلته عرفاء متعین کړې شوې وو او د هغوی په ذریعه د هغوی مالونه او قیدیان واپس کړې شوی وو.[1]

[حدیث باب ۲۱۸۴][2] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ وَزَعَمَ عُرْوَةُ أَنَّ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ أَخْبَرَاهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَامَ حِينَ جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِينَ، فَسَأَلُوهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «أَحَبُّ الْحَدِيثِ إِلَىَّ أَصْدَقُهُ. فَاخْتَارُوا إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ إِمَّا السَّبْىَ، وَإِمَّا الْمَالَ، وَقَدْ كُنْتُ اسْتَأْنَيْتُ بِهِمْ». وَقَدْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- انْتَظَرَهُمْ بِضْعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً، حِينَ قَفَلَ مِنَ الطَّائِفِ، فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- غَيْرُ رَادٍّ إِلَيْهِمْ إِلاَّ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ قَالُوا فَإِنَّا نَخْتَارُ سَبْيَنَا. فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي الْمُسْلِمِينَ، فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ «أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ إِخْوَانَكُمْ هَؤُلاَءِ قَدْ جَاءُونَا تَائِبِينَ، وَإِنِّي قَدْ رَأَيْتُ أَنْ أَرُدَّ إِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ، فَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يُطَيِّبَ بِذَلِكَ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يَكُونَ عَلَى حَظِّهِ حَتَّى نُعْطِيَهُ إِيَّاهُ مِنْ أَوَّلِ مَا يُفِيءُ اللَّهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ». فَقَالَ النَّاسُ قَدْ طَيَّبْنَا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم-. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «إِنَّا لاَ نَدْرِي مَنْ أَذِنَ مِنْكُمْ فِي ذَلِكَ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ، فَارْجِعُوا حَتَّى يَرْفَعُوا إِلَيْنَا عُرَفَاؤُكُمْ أَمْرَكُمْ». فَرَجَعَ

---

[1]) عمدة القاری:۱۲/۱۶۱.

[2]) وأخرجه البخاری أیضًا فی کتاب العتق باب من ملک من العرب رقیقًا فوهب الخ رقم: ۲۵۳۶، ۲۵۴۰ وفی کتاب الهبة وفضیلها الخ باب من رأة الهبة الغائبة جائزة رقم:۲۵۸۲، ۲۵۸۴ وفی باب إذا وهب جماعة القوم رقم: ۳۱۳۱، ۳۱۳۲ وفی کتاب المغازی باب قول الله تعالی ﴿وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ﴾ الایة رقم:۴۲۱۸، ۴۳۱۶ وفی کتاب الاحکام باب عرفاء للناس رقم: ۷۱۷۶، ۷۱۷۷ وذکره الجامع بین الصحیحین فی أفراد البخاری: ۳/۳۸۲ رقم:۲۸۶۱ وأخرجه أبوداؤد رحمه الله تعالی فی سننه، فی کتاب الجهاد باب فداء الامیر بالمال رقم:۲۶۹۳ والطحاوی رحمه الله تعالی فی شرح مشکل الاثار باب بیان مشکل ماروی عن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم مماکان منع فی سبایا هوازن الخ رقم:۴۵۰۹.

النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاؤُهُمْ، ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-فَأَخْبَرُوهُ أَنَّهُمْ قَدْ طَيَّبُوا وَأَذِنُوا.[۲۴۰۲، ۲۴۴۴، ۲۹۶۳، ۴۰۶۴، ۶۷۵۵]

**ترجمه**:- (مروان بن حکم اومسوربن مخرمه دواړو بیان کړې دې چه دَغزوه حنین نه دَ واپسئی نه پس) کله چه دَ هوازن وفدمسلمان شو دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نورسول الله ﷺ اودریدو. هغوی حضورپاك ته درخواست اوکړو چه زمونږ مال اوقیدیان واپس کړئی. حضورپاك اوفرمائیل ربښتیاخبره زما ډیره خوښه ده تاسو په دوو خبروکښې یوه اختیارکړئی یاقیدیان واپس واخلئی یامال او ماخو(جعرانه) کښې دَهغوی انتظارکړې وو او رسول الله ﷺ چه دَ طائف نه واپس شو.نودَ لسوشپونه زیات انتظار(جعرانه) کښې کړې وو.

کله چه دَهوازن دَ وفدیقین اوشوچه رسول الله ﷺ به هغوی ته په دوو څیزونوکښې یوڅیز واپس کوی نوهغوی عرض اوکړو مونږ ته قیدیان واپس کړئی. نورسول الله ﷺ دَ مسلمانانومخې ته (دَخطبې دپاره) اودریدو. اول ئې چه څنګه غوښتل دَ الله تعالی تعریف ئې بیان کړو بیائې اوفرمائیل امابعد! ستاسو دا رونړه (دَ هوازن خلقو) توبه کړې راغلی دی اوزه مناسب ګنړم چه دَدوی قیدیان واپس کړم اوس تاسو کښې چه څوك په خوشحالئی سره دا غواړی نو هم هغه دې اوکړی اوڅوك چه خپله حصه داسې قایم کول غواړی چه کوم مال غنیمت اول الله تعالی ورکړې دَهغې نه به مونږ دَ هغوی بدله ورکوو نوهغه دې داسې اوکړی. په دې باندې خلقو عرض اوکړو یارسول الله ! مونږ به ستاسو دَ خوشحالئی دپاره دا قیدیان هم داسې ورکړو. حضورپاك اوفرمائیل چه مونږ ته نه ده معلومه چه په تاسوکښې څوم په دې خبره راضی دی اوڅوك نه دی نو(بهتر دادی چه) واپس شئی او ستاسو نقیب (سردار) دې ستاسو دَ طرف نه بیان اوکړی بیاخلق واپس شو اودَهغوی نقیبانو هغوی سره خبرې اترې اوکړې بیا حضورپاك له راغلل او عرض ئې اوکړو چه هغه خلق راضی دی اوهغوی دَخپلو قیدیانو دَ واپس کولو اجازت ورکړو.

## رجال الحديث

① **سعیدبن کثیر**:- داسعیدبن کثیربن عفیر رحمه الله دې.([1])

② **لیث**:- دا لیث بن سعد رحمه الله دې.([2])

③ **عقیل**:- دا عقیل بن خالد بن عقیل رحمه الله دې.([3])

④ **محمد**:- دامحمدبن مسلم ابن شهاب زهری رحمه الله دې.([4])

⑤ **عروة**:- داعروه بن زبیر رحمه الله دې.([5])

---

[1] کشف البارى:۳/ ۲۷٤.
[2] کشف البارى:۱/ ۳۲٤.
[3] کشف البارى:۱/ ۳۲۵، ۳/ ٤۵۵.
[4] کشف البارى:۱/ ۳۲۶.
[5] کشف البارى:۱/ ۲۹۱.

⑥ **مروان** - دا مروان بن حکم رحمه الله دي. (۱)

⑦ **مسور** - دامسوربن مخرمة رحمه الله دي. (۲)

**قوله: وزعم عروة** - علامه کرماني رحمه الله اوعلامه عيني رحمه الله فرمائي چه زعم په معنى دَ قال دي. (۳)

**حل لغات:- الوفد:** دَ وافد جمع ده هغه خلق چه په يوخائې يوښارته لاړشي، ياهغه خلق چه دَ يو مشترکه غرض دَپاره حاکم له لاړشي. مجرد کښې دَضرب نه مستعمل دې. **وَفَدَيَفِدُوَفداً** قاصد جوړيدو سره راتلل. (۴)

**عرفاؤکم:** عرفاء دَ عريف جمع ده په معنى پيژندونکې، دَ قوم دَ معاملاتو خيال ساتونکې، دَخپلو ملګرو پيژندګلو کونکې. نقيب اودا په مرتبه کښې دَ رئيس نه کم وي. (۵)

**دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: إنى أردت أن أرد إليهم سبيهم الحديث** سره ظاهردې. دَ هوازن دَ وفد والا دَخپلو قيديانودَ واپس کولو په سلسله کښې وکيلان اوشفاعت کونکې وو. (۶)

# ۸- باب: إذاوكل رجل أن يعطي شيئًا، ولم يبين كم يعطي، فأعطى على ما يتعارفه الناس

## يوسړى بل سړى ته څه ورکولوسره وکيل کړو اودائې بيان نه کړه چه څومره ورکړې نوهغه د دستور مطابق ورکړه

**دَترجمة الباب مقصد:-** دَامام بخاري رحمه الله مقصددادې چه په توکيل کښې هم په عرف باندې اعتماد کولې شي. که چرې يوسړې خپل وکيل ته دا اووئيل چه فلانکې سړي ته څه ورکړه اوس هغه څه څيز هغه ته ورکړو نودا به کتلې شي چه دَ هغه دا ورکول دَعرف مطابق دي که خلاف. که چرې دعرف مطابق وي نو داسې کولوکښې هيڅ مضائقه نشته لکه چه په حديث باب کښې دي چه حضورپاك حضرت بلال رضي الله عنه ته وئيلي ووچه ته جابرته دَهغه ثمن ورکړه او څه زياتې ورکړه نوهغه د يوقيراط اضافه کړې وه اوس دا يوقيراط خو ښکاره خبره ده چه دَ عرف مطابق وو په دې کښې هيڅ اشکال نشته. (۷)

---

(۱) کشف الباري کتاب الوضوء باب البصاق والمخاط ونحوه في الثواب.
(۲) کشف الباري کتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس.
(۳) عمدة القاري: ۱۹۳/۱۲.
(۴) النهاية: ۸۶۷/۲.
(۵) النهاية: ۱۹۰/۲.
(۶) إرشادالساري:۲۸۲/۵عمدة القاري:۱۹۳/۱۲.
(۷) عمدة القاري:۱۹۵/۱۲. إرشادالساري:۲۸۳/۵.

[حدیث ۲۱۸۵](۱) حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ وَغَيْرِهِ، يَزِيدُ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ، وَلَمْ يُبَلِّغْهُ كُلُّهُمْ رَجُلٌ وَاحِدٌ مِنْهُمْ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ- رضی الله عنهما- قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي سَفَرٍ، فَكُنْتُ عَلَى جَمَلٍ ثَفَالٍ، إِنَّمَا هُوَ فِي آخِرِ الْقَوْمِ، فَمَرَّ بِي النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ «مَنْ هَذَا». قُلْتُ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ «مَا لَكَ». قُلْتُ إِنِّي عَلَى جَمَلٍ ثَفَالٍ. قَالَ «أَمَعَكَ قَضِيبٌ». قُلْتُ نَعَمْ. قَالَ «أَعْطِنِيهِ». فَأَعْطَيْتُهُ فَضَرَبَهُ فَزَجَرَهُ، فَكَانَ مِنْ ذَلِكَ الْمَكَانِ مِنْ أَوَّلِ الْقَوْمِ قَالَ «بِعْنِيهِ». فَقُلْتُ بَلْ هُوَ لَكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «بِعْنِيهِ قَدْ أَخَذْتُهُ بِأَرْبَعَةِ دَنَانِيرَ، وَلَكَ ظَهْرُهُ إِلَى الْمَدِينَةِ». فَلَمَّا دَنَوْنَا مِنَ الْمَدِينَةِ أَخَذْتُ أَرْتَحِلُ. قَالَ «أَيْنَ تُرِيدُ». قُلْتُ تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً قَدْ خَلاَ مِنْهَا. قَالَ «فَهَلاَّ جَارِيَةً تُلاَعِبُهَا وَتُلاَعِبُكَ». قُلْتُ إِنَّ أَبِي تُوُفِّيَ وَتَرَكَ بَنَاتٍ، فَأَرَدْتُ أَنْ أَنْكِحَ امْرَأَةً قَدْ جَرَّبَتْ خَلاَ مِنْهَا. قَالَ «فَذَلِكَ». فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ قَالَ «يَا بِلاَلُ اقْضِهِ وَزِدْهُ». فَأَعْطَاهُ أَرْبَعَةَ دَنَانِيرَ، وَزَادَهُ قِيرَاطًا. قَالَ جَابِرٌ لاَ تُفَارِقُنِي زِيَادَةُ رَسُولِ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم-. فَلَمْ يَكُنِ الْقِيرَاطُ يُفَارِقُ جِرَابَ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. [ر: ۴۳۲]

**ترجمه**:- حضرت جابربن عبدالله ﷠ فرمائی زه په یوسفرکښې حضورپاك سره ووم او زه په یویه رو رفتار والا اوبښ باندې سور ووم چه ډټولو شاته به وو. بیاحضورپاك ماسره تیرشو اوتپوس ئې اوکړو دا څوك دې؟ ما عرض اوکړو جابربن عبدالله. حضورپاك تپوس اوکړو په ته څه شوی دی؟ ما عرض اوکړو زما دااوښ بالکل په مزه دې. حضورپاك اوفرمائیل آیا تاسره لخته شوه؟ ماعرض اوکړو اوجې. حضورپاك اوفرمائیل ماته راکړه نوما ورکړه. پیغمبر ﷺ هغه اووهلو او وئې رټلو اوس چه ډغه ځائې نه روان شو نوډ ټولو نه وړاندې شو. حضورپاك

(۱) وأخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الصلاة باب الصلاة إذا قدم من سفر رقم: ۴۴۳ وفی کتاب البیوع باب شراء الدواب والحمیر رقم: ۲۰۹۷ وفی کتاب الاستقراض باب من اشتری باالدین ولیس عنده ثمنه أو لیس بحضرته رقم:۲۳۸۵ وباب حسن القضاء رقم:۲۳۹۴ وباب الشفاعة فی وضع الدین رقم:۲۴۰۶ وفی کتاب المظالم والغصب باب من عقل بعیره علی البلاط أو باب المسجد رقم:۲۴۷۰ وکتاب الهبة وفضلها باب الهبة المقبوضة وغیر المقبوضة الخ رقم:۲۶۰۳، ۲۶۰۴ وفی کتاب الشروط باب إذا اشترط البائع ظهر الدابة إلی مکان مسمی جاز رقم: ۲۷۱۸ وفی کتاب الجهاد والسیر باب من ضرب دابة غیره فی الغزو رقم: ۲۸۶۱ وباب استئذان الرجل الامام لقوله عزوجل ﴿ اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ ﴾ الایة رقم:۲۹۶۷ وباب الصلاة إذا قدم من السفر رقم: ۳۰۸۷ وباب الطعام عندالقدوم رقم:۳۰۸۹، ۳۰۹۰ وفی کتاب المغازی باب ﴿ اِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتٰنِ ﴾ الایة رقم:۴۰۵۲ وفی کتاب النکاح باب تزویج الثیبات رقم: ۵۰۷۹، ۵۰۸۰ وباب لایطرق أهله لیلاً إذا أطال الغیبة مخافة أن یخوفهم اویلتمس عشراتهم رقم: ۵۲۴۳، ۵۲۴۴ وباب طلب الولد رقم: ۵۲۴۵، ۵۲۴۶ وباب تستحد المغیبة وتمتشط الشعثة رقم: ۵۲۴۷ وأخرجه الترمذی فی سننه فی کتاب النکاح باب ماجاء فی تزویج الابکار رقم: ۱۱۰۰ والنسائی فی سننه فی کتاب النکاح باب نکاح الابکار رقم:۳۲۱۹.

اوفرمائیل دا اوښ په ماخرڅ کړه ماعرض اوکړو یارسول الله هم ستاسو دې. حضورپاك اوفرمائیل نه خرڅ نې کړه ما په څلوردیناربانديې واخستو اوته دمدینې پورې په دې باندې سورلۍ شه. زه چه کله مدینې ته نیزدې اورسیدم نوزه بل طرف ته لاړم. حضورپاك اوفرمائیل چرته ځې؟ ماعرض اوکړو چه ما یوداسې ښځې سره نکاح کړې ده چه دهغې خاوند مړشوې (یعنی کونډه ده). حضورپاك اوفرمائیل چه پیغلې سره دې ولې نکاح نه کوله تابه هغې سره لوبې کولې اوهغې به تاسره لوبې کولې. ما وئیل زما پلار مړشو اوهغه ډیرې لونړه پریخودې نوماارادِه اوکړه چه داسې ښځې سره نکاح کوم چه تجربه کاره وی او کونډه وی حضورپاك اوفرمائیل چه که داخبره وی نو خیر دې. کله چه مونږ مدینې ته اورسیدو نوحضورپاك حضرت بلال ﷛ ته اووئیل اې بلال جابرته قیمت ورکړه او څه زیاتی ورکړه. هغه څلوردینار راکړل او یوقیراط سره زر نې راکړه. حضرت جابر ﷛ فرمائي چه رسول الله ﷺ کوم یوقیراط سره زر زیاتی راکړې وو (کله) زما نه جداکیږی نه همیشه به دا قیراط دحضرت جابر ﷛ په تیله کښې وو.

## رجال الحدیث

① **مکی بن ابراهیم:-** دامکی بن ابراهیم بن بشرتمیمی بلخی رحمه الله دې.[1]

② **عبدالملک:-** دا عبدالملك بن عبدالعزیزبن جریج رحمه الله دې.[2]

③ **عطاء:-** دا عطاء بن ابی رباح رحمه الله دې.[3]

④ **جابر بن عبدالله:-** داجابربن عبدالله بن عمرو بن حرام انصاری ﷛ دې.[4]

**قوله: عن عطاءبن ابی رباح وغیره یزید بعضهم علی بعض الخ:-** یعنی ابن جریج رحمه الله دا روایت د عطاء بن ابی رباح په شان دنورو نه هم نقل کړې دې. اود بعض په حدیث کښې اضافه ده. وړاندې زمونږ په متداوله نسخوکښې دی چه **لم یبلغه کلهم رجل واحد منهم عن جابربن عبدالله.**[5] مطلبّ دادې چه مکمل حدیث ټولونه دې نقل کړې بلکه یوسړی مکمل حدیث نقل کړې دې او تقدیرعبارت به داشی **لم یبلغه ای لم یسقه کلهم بل بلغه وساقه بتمامه رجل واحد منهم** او په بله نسخه کښې دی لم یبلغه کله رجل منهم ددې مطلب به داوی چه حدیث مجموعه مشائخ کلام نه مرکب دې هریو پوره حدیث نه دې نقل کړې.[6] علامه کرمانی رحمه الله فرمائی **قوله: یزیدبعضهم** کښې ضمیر غیرطرف ته راجع دې ځکه چه غیرپه اعتبار دمعنی د جمع دې او

---

[1] کشف الباری:۴۸۱/۳.

[2] کشف الباری کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله.

[3] کشف الباری:۳۹/۴.

[4] کشف الباری کتاب الوضوء باب من لم یرالوضو إلا من المخرجین الخ.

[5] صحیح البخاری:۲۰۹/۱ قدیمی عمدة القاری:۱۹۷/۱۲ وفتح الباری:۶۱۱/۴.

[6] صحیح البخاری:۲۰۹/۱قدیمی عمدة القاری:۱۹۷/۱۲ وفتح الباری:۶۱۱/۴.

لم يبلغه كښې ضمير حديث يا رسول طرف ته راجع دې او رجل دا د كل سره بدل دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه لم يبلغه كښې ضمير قطعى توګه باندې د حديث طرف ته راجع دې ځكه چه حديث په سند متصل سره نقل كړې شوې دې.(١) وړاندې علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه اكثر روايات غيره بالجر سره دى. د دې اعراب خو واضح دى بعض نسخو كښې غيره بالرفع دې. د مبتداء كيدو د وجې او يريد د دې خبر دې او دا هم احتمال دې چه رجل فعل مقدر د ليبلغه فاعل دې بهرصورت دا تراكيب د تكلف او تعسف نه خالى نه دى.(٢)

**د حافظ ابن حجر رحمه الله تنقيد:-** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه تكلف او تعسف د عدم فهم تنيجه ده ګنى د دې كلام معنى داده چه ابن جريج رحمه الله دا حديث د عطاء بن ابى رباح رحمه الله او د هغه نه علاوه د نورو نه روايت كوى او هغه ټول ئى د حضرت جابر رضى الله عنه نه نقل كوى. خو هريو ځان له اوجدا پوره حديث نه دې نقل كړې دې بلكه هريو راوى د حديث يو جزء نقل كړې دې. قوله لم يبلغه كله رجل مطلب دې لم يسقه بتمامه نو دا ئى د ابن جريج رحمه الله د طرف نه د رواة د روايت نقل كولو طريقه بيان كړې ده او دا داسې ده لكه چه امام زهرى رحمه الله حديث افك كښې فرمائى وكل حدثنى طائفة من حديثها لكنه زاد عليه لكه چه امام زهرى رحمه الله فرمائيلى دى چه د مكمل حديث رواة نه چا هم نه دى نقل كړى. بلكه هريو يوه يوه قطعه بيان كړې ده نو اوس په دې كښې كوم يو تكلف او تعسف دې او عجيبه خبره دا ده چه شارح رحمه الله دا مشهور روايت پريخودو د كوم په تركيب كښې چه د هيڅ قسم څه تكلف نه كولې كيږى.(٣)

**حل اللغات:-** **تغال:** د سست رفتار والا اوبن وغيره.(٤)

**جراب:-** د څرمن لوښې يا تيله دكوهى ډولچه، د تورې تيكې د دې جمع أجربة، جرب، جرب ارځى.(٥)

**د حديث ترجمة الباب سره مطابقت:-** د حديث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: يا بلال اقضه وزده فاعطاه أربعة دنانير وزاده قيراط نه ښكاره دې چه حضورپاك حضرت بلال رضى الله عنه ته د ثمن نه څه زياتى وركولو حكم اوكړو د هغه زياتوالى مقدار او اندازه ئى بيان نه كړه او حضرت بلال رضى الله عنه په عرف باندې اعتبار كولو سره هغه ته يو قيراط زيات وركړو.(٦)

---

(١) فتح البارى: ٦١١/٤.
(٢) شرح الكرمانى: ١٣٨/١٠.
(٣) فتح البارى: ٦١٢/٤.
(٤) النهاية: ٢١٢/١.
(٥) معجم الصحاح ص: ١٦٣.
(٦) إرشاد السارى: ٢٨٥/٥.

**قوله:** کنت مع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم فی سفر:- دې نه مراد دَ فتح مکه سفر دې.[1]

**قوله:** قال جابر لا تفارقنی زیادة رسول الله صلی الله علیه وسلم:- یعنی حضرت جابر رضی الله عنه به دحضور پاک سره د زیات عشق اومحبت د وجې نه د حضور پاک ورکړې شوې دا قیراط کله هم دَ ځان نه نه جداکولو تردې چه دَ حره والا مشهور واقعه په ورځ دهغه نه هغه قیراط دَ شام والا واخستلو لکه څنګه چه امام مسلم رحمه الله ددې حدیث په آخره کښې دغه مذکوره زیاتوالې نقل کړې دې.[2]

## ۹- باب: وکالة المرأة الإمام فی النكاح

### دیوې ښځې امام (حاکم) د نکاح وکیل جوړول

**دَترجمة الباب مقصد:-** دلته امام بخاری رحمه الله دابنائی چه ښځه امام دَ خپلې نکاح وکیل جوړولې شی.[3]

[حدیث باب ۲۱۸٦] (٤) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي قَدْ وَهَبْتُ لَكَ مِنْ نَفْسِي . فَقَالَ رَجُلٌ زَوِّجْنِيهَا . قَالَ « قَدْ زَوَّجْنَاكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ » .[٤٧٤١، ٤٧٤٢، ٤٧٩٩، ٤٨٢٩، ٤٨٣٣، ٤٨٣٩، ٤٨٤٢، ٤٨٤٧، ٤٨٥٤، ٤٨٥٥، ٥٥٣٣، ٦٩٨١]

**ترجمه:-** حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم له یوه ښځه راغله وئې وئیل یا

---

[1]) إرشادالساری:٥/٢٨٤.

[2]) عمدة القاری: ١٢/١٩٧.

[3]) عمدة القاری:١٢/١٩٧.

[4]) وأخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی کتاب فضائل القرآن باب خیرکم من تعلم القرآن وعلمه رقم:٥٠٢٩ وباب القراءة عن ظهر القلب رقم: ٥٠٣٠ وفی کتاب النكاح باب تزویج.......... قوله تعالی ﴿ إن یکونوا فقرآء یغنهم الله من فضله ﴾ الایة رقم:٥٠٨٧ وباب إذا کان الولی هوالخاطب رقم: ٥١٣٢ وباب السلطان ولی لقول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم زوجتک بما معک من القرآن رقم: ٥١٣٥ وباب إذا قال الخاطب للولی زوجنی فلانة فقال قد زوجتک بکذا الخ رقم: ٥١٤١ وباب التزوج علی القرآن وبغیرصداق رقم: ٥١٤٩ وباب المهر بالعروض وخاتم من حدید رقم: ٥١٥٠ وفی کتاب اللباس باب خاتم الحدید رقم: ٥٨٧١ وفی کتاب التوحید باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم لا شخص غیر من الله، رقم: ٧٤١٧ وأخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب النكاح باب ندب النظر إلی وجه المرأة وکفیها رقم: ١٤٢٥ والنسائی فی سننه فی کتاب النكاح باب عرض المرأة نفسها علی من ترضی رقم: ٣٢٤٩ وأخرجه مالک رحمه الله فی مؤطئة رقم:٣٢٥٠ وأحمد رحمه الله فی مسنده: ٥/٣٣٠.

رسول الله ﷺ ماخپل ځان تاسوته هبه کړو. يوسړی اوونيل يارسول الله! ددې نکاح ماسره اوکړه. حضورپاک اوفرمائيل چه مونږ دهغه قرآن په بدله کښې کوم چه تاته ياد دې ددې ښځې نکاح تاسره اوکړه.

## رجال الحديث

① **عبدالله بن يوسف:**- داعبدالله بن يوسف تنيسی رحمه الله دې. [1]

② **مالک:**- دا امام دارالهجرة امام مالک رحمه الله دې. [2]

③ **ابوحازم:**- دا ابوحازم سلمة بن دينار رحمه الله دې. [3]

④ **سهل بن سعد:**- دا سهل بن سعد بن مالک ابوالعباس ساعدی رضی الله عنه دې. [4]

**دحديث ترجمة الباب سره مطابقت اودَ علامه داؤدی رحمه الله اشکال:**- علامه داؤدی رحمه الله فرمائی چه په دې حديث کښې دتوکيل چرته ذکر هم نشته. نه حضورپاک ـ دغه ښځې نه اجازت غوښتې اونه دغه ښځې حضورپاک وکيل جوړکړې دې. حضورپاک دهغې نکاح دتوکيل د وجې نه نه ده کړې بلکه ﴿ اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ ﴾ الاية.[5] يعنی نبی سره ئې مينه ده ايمان والاته زيات دځپل ځان نه، دَ وجې نه کړې وه.[6]

**دعلامه عينی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله جواب:**- دا حضرات رحمهم الله فرمائی چه کله دغه ښځې اوونيل قد وهبت لك نفسی نوهغې خپله معامله حضورپاک ته حواله کړه نولکه ددې مطلب داشو چه هغې حضورپاک خپل وکيل جوړکړواو چه وکيل ئې جوړکړو نو حضورپاک دهغې دتوکيل نه پس دَهغې نکاح اوکړه. داحضرات داهم فرمائی چه کله حضورپاک بل سړی سره دهغې نکاح اوکړه اوهغې په دې باندې څه اعتراض اونه کړو نولکه چه عملی توکيل دهغې دَ طرف نه موجود شو.[7]

**قوله:** جاءت امرأة:- دا ښځه څوک وه دَهغې په نوم کښې اختلاف دې. بعض حضرات وائی چه دا خوله بنت حکيم وه اوبعض فرمائی چه ام شريک ازديه وه.[8]

**يونحوی اشکال اودَهغې جواب:- قوله: وهبت لك من نفسی.** زمونږ په نسخه کښې وهبت لك نفسی دَمن بغيردې.[9] په دې صورت دا اشکال واقع کيږی چه من دَ زياتی دَپاره نحويين درې

---

[1] کشف الباری:۲۸۹/۱، ۱۱۳/٤.
[2] کشف الباری:۲۹۰/۱، ۸۰/۲.
[3] کشف الباری کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.
[4] کشف الباری کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.
[5] احزاب:۶.
[6] فتح الباری: ٦۱۲/٤ وعمدة القاری: ۱۹۸/۲.
[7] فتح الباری: ٦۱۲/٤، وعمدة القاری:۱۹۸/۱۲.
[8] فتح الباری: ٦۱۲/٤، وعمدة القاری:۱۹۸/۱۲.
[9] صحيح البخاری: ۳۱۰/۱ قديمی.

شرائط بيان كوى. ① من: نه وړاندې نفى يا نهى يا هل په ذريعه استفهام كيدل ضرورى دى. لكه چه ﴿ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا ﴾ الاية او لايم من أحد او ﴿ فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرَى مِنْ فُطُورٍ ﴾ الاية كښې دى. ② دَدې دَ مجرور نكره كيدل ضرورى دى لكه چه په مذكوره مثالونو كښې دى.

③ بل دَدې فاعل يا مفعول يا مبتداكيدل ضرورى دى. او دلته په صورت مذكوره كښې ړومبى دوه شرطونه مفقوددى.[1]

نوددې جواب به دا وركولې شى چه مذكوره شرائط دَ بصريين په نيزدى بلكه حضرات كوفيين او امام اخفش رحمه الله په نيز دَ من زياتوالى دپاره دَ ړومبو دوشرطونو موجودكيدل ضرورى نه دى لكه چه ﴿ وَلَقَدْ جَاءَكَ مِنْ نَبَإِ الْمُرْسَلِينَ ﴾ او ﴿ يَغْفِرْ لَكُمْ مِنْ ذُنُوبِكُمْ ﴾ او ﴿ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ ﴾ كښې دى.[2]

**تشريح:**- امام بخارى رحمه الله دا روايت څوځايونوكښې نقل كړې دې. لكه چه په تخريج كښې تيرشو. په كتاب النكاح كښې دا روايت په ډيرتفصيل سره دې. هم هلته ددې حديث متعلق نو مباحث فقهيه هم ذكركړې شوى دى.[3]

## ١٠ - باب: إذاوكل رجلا، فترك الوكيل شيئًا فاجازة الموكل فهوجائزوإن أقرضه ألى أجل مسمى جاز

### چه يوې سړې څوك وكيل جوړكړى يا وكيل يوڅيزپريږدى اوس كه چرې مؤكِل ددې اجازت وركړى نوداسې كول صحيح دى او كه چرې د معين ميعادپورې قرض وركړى نوهم جائزدى

**دَترجمة الباب مقصد:**- امام بخارى رحمه الله اول يوه ترجمه قايم كړې وه باب إذا وهب شيئًا لوكيل الخ په هغې كښې خودلى شوى وو چه وكيل دَمؤكل دَ طرف نه قبضه كولې شى اوس په دې ترجمة الباب كښې امام صاحب دا ښائى چه وكيل دَ خپل طرف نه څه پريږدى اومعاف كړى نوآيا دَ وكيل دا پريخودل اومعاف كول صحيح دى كه نه؟ امام بخارى رحمه الله ښائى چه داهم جائزدى. خو شرط په كښې دادې چه روستو مؤكل اجازت وركړى. مثلاً دَ يوسړى په چاباندې دين واجب وو مؤكل خپل وكيل ته اووئيل لاړشه هغه قرضه وصلو كړه. اوس كه مثلاً دَ پنځو زرو روپو قرضه ده وكيل دَقبضه كولودپاره لاړو. مديون ورته قرض اداكوى نو په هغې كښې پنځوس روپئى كمې وې. وكيل كه اوس دا خيال اوكړى چه كه پريږدم ئى نودَ دې ټول دَ ضايع

---

[1]) إرشادالسارى:٥/٢٨٦.

[2]) عمدة القارى:١٢/١٩٨وفتح البارى:٤/٦١٣ وإرشادالسارى:٥/٢٨٦.

[3]) كشف البارى كتاب النكاح باب تزويج المعسر لقوله تعالى: ﴿ إِنْ يَكُونُوا فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ ﴾ (النور:٣٢) ص:١٦٦.

کیدو خطره ده اوکه واخلم نو صرف پنځوس کمې دی اود پنځوسو نقصان دې. مصلحت هم دغه کښې دې چه دا پنځوس پریږدم او باقی وصول کړم نوکه داسې وکیل اوکړی نو جائز دی.
اوښکاره خبره ده چه مؤکل به هم ددې اجازت ورکړی هغه ته هم دا پته ده که د پنځوسو د وجې نې دین نه وو وصول کړې نوټول په ټول به هلاکیدل اودغه شان که وکیل چاته د مقرر مودې پورې قرض ورکړی نوجائزدې په دې شرط چه مؤکل ددې اجازت ورکړی. (۱)
علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه د ترجمة الباب نه داخبره هم مفهوم کیږی که چرې مؤکل د وکیل د مذکوره افعالو اجازت ورنه کړی نودا افعال به ناجائزوی (۲)

[حدیث باب ۲۱۸۷] (۳) وَقَالَ عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ أَبُو عَمْرٍو حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ وَكَّلَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِحِفْظِ زَكَاةِ رَمَضَانَ، فَأَتَانِي آتٍ فَجَعَلَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ، فَأَخَذْتُهُ، وَقُلْتُ وَاللَّهِ لأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - . قَالَ إِنِّي مُحْتَاجٌ، وَعَلَىَّ عِيَالٌ، وَلِي حَاجَةٌ شَدِيدَةٌ. قَالَ فَخَلَّيْتُ عَنْهُ فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «يَا أَبَا هُرَيْرَةَ مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ الْبَارِحَةَ». قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ شَكَا حَاجَةً شَدِيدَةً وَعِيَالاً فَرَحِمْتُهُ، فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ. قَالَ «أَمَا إِنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ وَسَيَعُودُ». فَعَرَفْتُ أَنَّهُ سَيَعُودُ لِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِنَّهُ سَيَعُودُ. فَرَصَدْتُهُ فَجَاءَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ فَأَخَذْتُهُ فَقُلْتُ لأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - . قَالَ دَعْنِي فَإِنِّي مُحْتَاجٌ، وَعَلَىَّ عِيَالٌ لاَ أَعُودُ، فَرَحِمْتُهُ، فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ فَأَصْبَحْتُ، فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «يَا أَبَا هُرَيْرَةَ، مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ شَكَا حَاجَةً شَدِيدَةً وَعِيَالاً، فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ. قَالَ «أَمَا إِنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ وَسَيَعُودُ». فَرَصَدْتُهُ الثَّالِثَةَ فَجَاءَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ، فَأَخَذْتُهُ فَقُلْتُ لأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، وَهَذَا آخِرُ ثَلاَثِ مَرَّاتٍ أَنَّكَ تَزْعُمُ لاَ تَعُودُ ثُمَّ تَعُودُ. قَالَ دَعْنِي أُعَلِّمْكَ كَلِمَاتٍ يَنْفَعُكَ اللَّهُ بِهَا. قُلْتُ مَا هُوَ قَالَ إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ (اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ) حَتَّى تَخْتِمَ الآيَةَ، فَإِنَّكَ لَنْ يَزَالَ عَلَيْكَ مِنَ اللَّهِ حَافِظٌ وَلاَ يَقْرَبَنَّكَ شَيْطَانٌ حَتَّى تُصْبِحَ. فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ فَأَصْبَحْتُ، فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ الْبَارِحَةَ». قُلْتُ يَا

---

(۱) عمدة القاری:۲۰۳/۱۲وفتح الباری ٤/٦١٤ بتفصیل.

(۲)عمدة القاری:۲۰۳/۱۲وفتح الباری ٤/٦١٤.

(۳)وأخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی کتاب بدء الخلق باب صفة ابلیس وجنوده رقم الحدیث: ۳۱۰۱ وفی کتاب فضائل القرآن باب فضل سورة البقرة رقم الحدیث: ٤۷۲۳ وذکره محمد بن فتوح الحمیدی فی الجمع بین الصحیحین البخاری ومسلم من أفراد البخاری:۱۹۵/۳ رقم الحدیث: ۲٥٦۸ وأخرجه النسائی فی عمل الیوم واللیلة: ٤/۲۷۰ وانظر تحفة الاشراف: ۱۰/۳٤٥ رقم: ۱٤٤۸۲.

رَسُولَ اللّٰهِ زَعَمَ أَنَّهُ يُعَلِّمُنِي كَلِمَاتٍ، يَنْفَعُنِي اللّٰهُ بِهَا، فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ. قَالَ «مَا هِيَ». قُلْتُ قَالَ لِي إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ مِنْ أَوَّلِهَا حَتَّى تَخْتِمَ (اللّٰهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ) وَقَالَ لِي لَنْ يَزَالَ عَلَيْكَ مِنَ اللّٰهِ حَافِظٌ وَلاَ يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ حَتَّى تُصْبِحَ، وَكَانُوا أَحْرَصَ شَيْءٍ عَلَى الْخَيْرِ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَمَا إِنَّهُ قَدْ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوبٌ، تَعْلَمُ مَنْ تُخَاطِبُ مُنْذُ ثَلاَثِ لَيَالٍ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ». قَالَ لاَ. قَالَ «ذَاكَ شَيْطَانٌ».[٣١٠١، ٤٧٢٣]

**ترجمه**:- حضرت ابوهريره ﷺ فرمائي رسول الله ﷺ زه د رمضان زكوة (يعنى د صدقه فطر) په حفاظت باندې مقرركړم. بيا يوسړي راغلو اولپې د كولوسره ئى غله واخسته؟ ما هغه اونيولو او ماورته اووئيل چه په خدائي قسم زه به تا رسول الله ﷺ له بوځم. هغه وئيل زه محتاج يم بال بچه داريم او په ډيرسخت تكليف كښې يم. (حضرت ابوهريره ﷺ وائى چه) ما (په هغه رحم كولوسره) هغه پريخودو. كله چه سحرشو حضورپاك تپوس اوكړو اې ابوهريره تيره شپه ستا هغه قيدى څه اوكړل؟ ما عرض اوكړو چه يارسول الله هغه ډيرسخت د محتاجئى او د بال بچ ګيله ئى اوكړه زما په هغه رحم راغلو اوهغه مې پريخودو. حضورپاك اوفرمائيل خبردار هغه تاته دروغ وئيلى اوهغه به بيا راځى نوماد حضورپاك په ارشاد باندې يقين كولوسره چه هغه به بياراځى دهغه په شيش كښې كيناستم (هم هغه شان اوشو) هغه راغلو اولپې د كولوسره ئى غله واخسته. ماهغه اونيولو او ورته مې اووئيل اوس خو به تا ضرور د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضروم. هغه وئيل زه محتاج يم بال بچه داريم بيابه نه راځم بياپرې زما رحم راغلو او پرې مې خودلو. سحر ماته حضورپاك اوفرمائيل اې ابوهريره ستا قيدى څه اوكړل؟ ما عرض اوكړو يارسول الله هغه د سختې محتاجئى او بال بچ ګيله اوكړه نومارحم اوكړو خلاص مې كړو. حضورپاك اوفرمائيل خبردار هغه دروغ وئيلى بيابه راځى. زه په دريم ځل دهغه په سارلوكښې شوم هغه راغلو اود غلې نه ئى لپې ډكې كړې ما هغه اونيولو ورته مې اووئيل اوس خو به دې ضرور رسول الله ﷺ ته بوځم. دا دريم ځل آخرى موقع ده ته وئى چه زه به بيا نه راځم او بيا راځې هغه اووئيل ما پريږده زه به تاته داسې كلمات اوښايم په كوم سره چه به الله تعالى تاله فائده دركړى. ماتپوس اوكړو هغه كوم كلمات دى؟ هغه وئيل چه ته كله اوده كيدو د پاره بسترې له ځې نو ايت الكرسى ﴿ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ﴾ نه تر آخره پورې لوله بيشكه ترسحرپورې به يو حفاظت كونكې د الله تعالى د طرف نه تاسره وى او ترسحره پورې به شيطان تاله نيزدې نه شى راتلې. (دې اوريدوسره) ما هغه پريخودو. كله چه سحر شو نوحضورپاك تپوس اوكړو ستا هغه د شپې قيدى څه اوكړه؟ ما عرض اوكړو يارسول الله هغه وئيل چه زه به تاته داسې كلمات اوښايم په كوم سره چه به الله تعالى تاته فائده دركړى نوما هغه پرې خودو. حضورپاك تپوس اوكړو هغه (كلمات) څه دى؟ ماعرض اوكړو يارسول الله هغه ماته اووئيل چه ته كله بسترې ته ځې نو آيت الكرسى ﴿ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ﴾ تر آخره پورې وايه. هغه اووئيل چه كه تا داسې اوكړل نو د الله تعالى د طرف نه به په تاباندې يو

حفاظت كونكې مقررشى او شيطان به ترسحره پورې تاله نيزدې رانه شى. او صحابه كرام خود خو خبرو د تولونه زيا حريص وو. په دې باندې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل هغه رښتيا وئيلى حالانكه هغه ډير غټ دروغژن دې. اې ابوهريره ته پوهيږې درې شپې تاله څوك راغلې وو؟ ماعرض اوكړو نه. حضورپاك اوفرمائيل هغه شيطان وو.

## رجال الحديث

① **عثمان بن الهيثم**:- دا عثمان بن الهيثم ابوعمرو المؤذن رحمه الله دې.[1]
② **عوف**.- داعوف بن ابى جميله رحمه الله دې.[2]
③ **محمدبن سيرين**:- دامحمدبن سيرين انصارى بصرى رحمه الله دې.[3]
④ **ابوهريره**:-دا مشهورصحابى رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. دَدوى احوال هم ماقبل كښې تيرشوى دى.

**قوله: قال عثمان بن الهيثم..........**:- دلته دَ حديث دَ سياق نه معلوميږى چه داحديث معلق دې. امام بخارى رحمه الله هم دا حديث مختصراً كتاب ابدء الخلق باب صفة أبليس وجنوده كښې اوكتاب فضائل القرآن باب فضل سورة البقرة كښې هم بغيردَ تحديث دَ صراحت نقل كړې دې. او امام نسائې اسماعيلى او ابونعيم رحمهم الله هم دَ عثمان بن هيثم رحمه الله په طريق باندې دا حديث موصولاً ذكركړې دې.[4]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت**:- امام بخارى رحمه الله دَحديث باب نه ترجمة الباب داسې ثابته كړې ده چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه دَ صدقه فطردَ حفاظت وكيل وو اوچه شيطان دَدې نه غله واخسته اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه دَهغه دَ محتاجنې اوبې كسئى واؤريده نوهغه صدقه فطرئى دَهغه نه وانخستله اوهم هغه سره ئى پريخوده. اوبيا دحضورپاك دا قصه اوريدوسره خاموشى اختيارول په منزله دَاجازت دې اوهم دغه ترجمة الباب دې چه كه وكيل څه پريږدى او مؤكل اجازت وركړى نوداسې كول صحيح او جائزدى.[5]

اوس پاتې شو دَترجمة الباب دَ دويم جز اثبات يعنى دَ وكيل چاته قرض وركول نوپه دې سلسله كښې علامه كرمانى رحمه الله فرمائى حضرت ابوهريره رضي الله عنه چه وكيل وو هغه دا غله اوچتونكې شيطان حضورپاك پورې دَدغه قضيه دَ رسولو كوم مهلت وركړو په دې سره دَترجمة الباب دَدويم جز اثبات كيږى.[6]

---

[1]) كشف البارى: ۵۳۵/۲.
[2]) كشف البارى: ۵۲۲/۲.
[3]) كشف البارى: ۵۲٤/۲.
[4]) فتح البارى: ٦١٤/٤ وعمدة القارى: ۲۰٤/۱۲.
[5]) عمدة القارى:۲۰٤/۱۲.
[6]) شرح الكرمانى:۱٤۱/۱۰.

علامه مهلب رحمه الله فرمائی غله چه د صدقه فطر مجموعه وه کله چه شیطان د هغې نه واخسته اوحضرت ابوهریره رضی الله عنه ته ئې اوونیل چه ما پرېږده زه محتاج اومسکین یم اوهغه دې پرېخودو نودهغه داسې پرېخودل داسې دی لکه چه د معلوم مودې پورې قرض ورکول وی اوهغه موده اونیته معلومه په مساکینو باندې د دغه صدقه فطر دتقسیم وخت دې. په دې وجه د دغه حضراتو عادت داوچه هغوی به صدقه فطرد اخترنه یوځو ورځې وړاندې جمع کوله نولکه چه هغه هم د دغه اجل معلوم پورې هغه ته قرضه ورکړه.(۱)

**یواشکال اودهغې جواب:-** دلته اشکال کیږی چه حضورپاک مونځ کولو او یوعفریت من الجن راغلې وو نوحضور پاک خوهغه اونه نیولو چه هسې نه چه د حضرت سلیمان علیه السلام دعا ﴿رَبِّ اغۡفِرۡ لِیۡ وَهَبۡ لِیۡ مُلۡکًا لَّا یَنۡۢبَغِیۡ لِاَحَدٍ مِّنۡۢ بَعۡدِیۡ﴾ خلاف اونه شی اوحضرت ابوهریره رضی الله عنه اونیولو اوهغه سره خوشامد هم اوکړو او بیائی پرېخودو. نوونیلې به شې چه په اصل کښې حضورپاک ته دحضرت رضی الله عنه سلیمان علیه السلام دعا یاده راغلې وه په دې وجه ادبا حضورپاک پرېخودو او حضرت ابوهریره رضی الله عنه ته یاده شوې نه وه په دې وجه هغه اونیولو.

دویمه خبره داهم کیدې شی چه دحضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم په مونځ کښې کوم جن راغلې وو هغه رأس الشیاطین ابلیس وو اودلته حضرت ابوهریره رضی الله عنه سره دهغه داولادنه څوك وړوکې شیطان وو په دې وجه حضرت ابوهریره رضی الله عنه هغه اونیولو اوحضورپاك دحضرت سلیمان علیه السلام د دعاخیال کولوسره هغه پرېخودو.(۲)

**یوبل اشکال اودهغې جواب:-** ددې نه پس وړاندې دا اشکال کیږی چه حضورپاك دا فرمائیلی وو چه هغه به بیا واپس راځی اوهغه تاته دروغ وائی نوحضرت ابوهریره رضی الله عنه بیا په دویمه ورځ او دریمه ورځ هغه ولې پرېخودو. ددې متعلق به وئیلې شی چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه له واقعی هغه نه وو پرېخودل پکار خوهغه داګنړل چه دې ډیر مجبور دې او د مجبورئی د وجې نه هغه بار بار راځی په دې وجه دهغه رحم راغلو او پرې خودو یعنی هغه دروغ د مجبورئی د وجې نه وئیل اویا به داسې وئیلې شی چه هغه دځپل مصیبت او پریشانئی هنګانه داسې جوړه کړه چه د حضورپاك خبره هم حضرت ابوهریره رضی الله عنه ته یاده نه شوه چه حضورپاك دافرمائیلی وو.(۳)

**قوله: آیة الکرسی ﴿اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلۡحَیُّ الۡقَیُّوۡمُ﴾:-** دلته خو صرف د آیت الکرسی ذکر دې خود حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه په روایت کښې د آیت الکرسی او خاتمة سورة البقرة ﴿اٰمَنَ الرَّسُوۡلُ﴾ (البقرة: ۲۸۵) (۴) یعنی آیت الکرسی او سورت بقره د آخیری آیاتونو دواړوذکردې.

**د ایت الکرسی اوسورت بقره د اخری مختصر فضائل:-** په احادیث مبارکه کښې د آیت الکرسی او سورت بقره د آخیری رکوع ډیر زیات فضائل راغلی دی اود دې آیاتونودتلاوت

---

(۱) عمدة القاری: ۱۲/۲۰٤ فتح الباری: ٤/٦١٤.

(۲) إرشادالساری: ۵/۲۹۰.

(۳) الکنز المتواری: ۱۰/۳۸۵.

(٤) عمدة القاری: ۱۲/۲۰٦ وفتح الباری: ٤/٦١٥.

كولو د اهتمام حكم وركړې شوې دې په كوم كښې بعض دادى: ① دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمانيلې دې په سورت بقره كښې يو آيت دې چه د قرآن كريم د ټولو آياتونوسردار دې هغه آيت چه څنګه په يو كوركښې اولوستلې شى اوهلته شيطان وى نو هغه زر اوځى هغه آيت الكرسى ده (١)

② دحضرت ابى بن كعب رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ماته ارشاد فرمانيلې ابوالمنذر! (دا د ابى بن كعب رضي الله عنه كنيت دې) آيا ته پوهيږې چه د كتاب الله كوم آيت ستاسو په نيزد زيات عظمت والا دې؟ ما عرض اوكړو الله اود هغه رسول ﷺ د ټولونه زيات پوهيږى. نبى كريم ﷺ دوه ځل تپوس اوكړو ابوالمنذر! آيا تاسو ته پته ده چه دكتاب الله د ټولو نه عظيم آيت كوم يو دې؟ ما عرض اوكړو ﴿ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ﴾ (آيت الكرسى) حضورپاك زما په سينه لاس اووهلو (لكه چه په دې جواب باندې شاباسې راكړو) او ارشاد ئى اوفرمائيلو ابوالمنذر! ستادې مبارك شى. (٢)

③ په يو روايت كښې دى قسم دې په هغه ذات د چا په قبضه كښې چه زما ځان دې د دې آيت (آيت الكرسى) يوه ژبه او دوه شونډې دى چه د عرش خپې سره د الله تعالى پاكى بيانوى. (٣)

④ حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ارشاد نقل كوى چه دهريوڅيز يوه څوكه وى (چه د ټولو نه اوچته وى) اود قرآن كريم څوكه سورت بقره ده او په دې كښې يوآيت دې چه د قرآن كريم دټولو آياتونوسردار دې اوهغه آيت الكرسى ده. (٤)

⑤ حضرت ابومسعود رضي الله عنه د رسول اكرم ﷺ ارشاد نقل كوى چه كوم سړې د سورت بقره آخرى دوه آياتونه په شپه كښې اولولى نودا دواړه آياتونه به دده دپاره كافى شى. (٥)

⑥ دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې يوځل حضرت جبرائيل عليه السلام رسول الله ﷺ سره ناست وو په دې كښې په آسمان كښې څه چرچر آوازونه اوشو هغه سراوچت كړو وئى وئيل دا دآسمان يوه دروازه كولاوشوه چه د نن نه وړاندې كله هم نه ده كولاوشوې هغه فرښته حاضره شوه او سلام ئى اوكړو او وئى وئيل چه په تاسو دې زيرې وى د هغه دوو انوارو چه تاسو ته دركړې شوى دى اود حضورپاك ﷺ نه اول يو نبى ته نه وو وركړې شوى يو سورت فاتحه او

---

(١) أخرجه الحاكم فى مستدركه وقال: صحيح الاسناد كتاب التفسير من سورة البقرة رقم الحديث: ٣٠٢٦ وسكت عنه الذهبى رحمه الله تعالى فى التلخيص ونقله المنذرى فى الترغيب: ٣٧٠/٢.

(٢) أخرجه مسلم فى باب فضل رسوة الكهف وآية الكرسى رقم: ١٨٨٥.

(٣) أخرجه احمدرحمه الله تعالى فى مسنده ورجاله الصحيح كذا فى مجمع الزوائد: ٣٩/٧.

(٤) أخرجه الترمذى رحمه الله تعالى فى باب ماجاء فى سورت القبره وآية الكرسى رقم الحديث: ٢٨٧٨ وقال الترمذى رحمه الله تعالى : هذا حديث غريب.

(٥) أخرجه الترمذى فى باب ماجاء فى آخر سورة البقرة رقم الحديث: ٢٨٨١ وقال الترمذى هذا حديث حسن صحيح.

بل د سورت بقره آخری دوه آیاتونه. تاسو چه په دې کښې کومه یوه جمله هم لولئ هغه به تاسو ته ملاوېږي. (یعنی د هغې ثواب)[1]

⑤ حضرت نعمان بن بشیر رضي الله عنه د حضورپاك ارشاد نقل کوی د آسمان اوزمکې د پیداکیدو نه دوه زره کاله وړاندې الله تعالی یو کتاب اولیکلو په هغه کتاب کښې دوه آیاتونه نازل کړی په کوم چه الله تعالی سورة بقره ختمه کړې ده. دا آیاتونه چه په کوم کورکښې درې شپې اولوستلې شي شیطان هغې ته نیزدې هم نه شي راتلې.[2]

# ۱۱-باب: إذا باع الوكيل شيئًا فاسدًا، فبيعه مردود

**که وکیل یوڅیزدبیع فاسد په طریقه خرڅ کړی نوهغه بیع به مردود یعنی قابل رد وی.**

**د ترجمة الباب مقصد:** - امام بخاری رحمه الله فرمائی که چرته یو وکیل بائع وی او بیع فاسد کړی نو آیا د هغه د بیع اعتبار به وی او که نه؟ نو امام بخاری رحمه الله فرمائی چه د دې بیع هیڅ اعتبار نشته. د دې نه معلومه شوه چه وکیل د تصرفات صحیحه مجاز دې تصرفات فاسده اختیار هغه ته نشته.[3]

[حدیث ۲۱۸۸] [4] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ - هُوَ ابْنُ سَلَّامٍ - عَنْ يَحْيَى قَالَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَبْدِ الْغَافِرِ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ - رضى الله عنه - قَالَ جَاءَ بِلَالٌ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِتَمْرٍ بَرْنِيٍّ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مِنْ أَيْنَ هَذَا». قَالَ بِلَالٌ كَانَ عِنْدَنَا تَمْرٌ رَدِيٌّ، فَبِعْتُ مِنْهُ صَاعَيْنِ بِصَاعٍ، لِنُطْعِمَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عِنْدَ ذَلِكَ «أَوَّهْ أَوَّهْ عَيْنُ الرِّبَا عَيْنُ الرِّبَا، لَا تَفْعَلْ، وَلَكِنْ إِذَا أَرَدْتَ أَنْ تَشْتَرِيَ فَبِعِ التَّمْرَ بِبَيْعٍ آخَرَ ثُمَّ اشْتَرِهِ».

**ترجمه:** - (حضرت سعید خدری رضي الله عنه فرمائی چه) حضرت بلال رضي الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم له برنی کهجورې (یو اعلی قسم کهجورې) راوړلې راغلو. حضورپاك پښتنه اوکړه چه دا دې د چرته نه راوړې؟ حضرت بلال رضي الله عنه عرض اوکړو ماسره خرابې کهجورې وې ما د هغې دوه صاع ورکړې دا (ښکلې کهجورې) مې یو صاع واخستې دې د پاره چه په حضورپاك باندې اوخوروم. حضورپاك چه دا واورېده نو وئی فرمائیل افسوس اوافسوس دا خو بالکل سود دې بالکل

---

[1] أخرجه مسلم في باب فضل الفاتحة...... رقم الحديث: ۱۸۷۷.

[2] أخرجه الترمذي في باب ماجاء في آخر سورة البقرة رقم الحديث: ۱۸۸۲ وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

[3] الكنز المتواري: ۱۰/۳۸۶.

[4] أخرجه مسلم في كتاب المساقاة باب بيع الطعام مثلاً بمثل رقم: ۱۵۹۴، ۱۵۹۵ وابن حبان في صحيحه في كتاب البيوع ذكر البيان بان بيع الصاع من التمر بالصاعين يكون ربا رقم: ۵۰۲۲ والنسائي في كتاب البيوع باب بيع التمر بالتمر رقم: ۴۵۵۵.

سوددې داسې مه کوئی. که ته بیا کهجورې اخستل غواړې نوخپلې کهجورې خرڅې کړه بیا(بنکلې) کهجورې دهغې (دَ ثمن) بدله کښې واخله.

## رجال الحدیث

① **اسحاق**:- دَاسحاق نه مراد یاخو اسحاق بن ابراهیم حنظلی ابن راهویه دې.[1] لکه چه ابوهیثم رحمه الله تصریح کړې ده او یا اسحاق بن منصور بن بهرام الکوسج رحمه الله دې.[2] لکه چه ابوعلی جیانی رحمه الله فرمائیلی دی.[3]

② **یحیی**:- دا یحییٰ بن صالح الوحاظی رحمه الله دې.[4]

③ **معاویه**:- دا معاویه بن سلام بن ابی سلام الحبشي رحمه الله دې.[5]

④ **یحیی**:- دا یحییٰ بن ابی کثیر الطائی رحمه الله دې.[6]

⑤ **عقبة بن عبدالغافر**:- دا عقبه بن عبدالغافر اددی عوذی رحمه الله دې. دَهغوی کنیت ابونهاردې او دا بصری دې.[7]

**اساتذه کرام**:- هغوی رحمه الله عبدالله بن مغفل مزنی، ابوامامه باهلی، ابوسعیدخدری او ابوعبیدة بن عبدالله بن مسعود رضی الله عنهم[8] نه روایات کړی دی.

**تلامذه کرام**:- دوی نه سلیمان تیمی، عبدالله بن عون، علی بن زید بن جدعان، قتاده، ابوهیثم طن بن کعب، محمد بن سیرین، ابومعدل مرة بن دباب، یحییٰ بن ابی اسحاق حضرمی او یحییٰ بن ابی کثیر[9] وغیره رحمهم الله روایات نقل کړی دی. علامه عجلی او امام نسائی رحمهماالله فرمائی ثقة. اوعلامه ابن حبان هم دَدوی ذکرپه ثقات کښې کړې دې.[10]

**وفات**:- امام احمدبن حنبل رحمه الله یحیی بن قطان نه نقل کوی چه هغوی رحمه الله دَ جماجم والا په معرکې په ورځ ۸۳هجری کښې شهیدشوې.[11]

⑥ **ابوسعیدخدری**:-حضرت ابوسعیدخدری سعدبن مالك بن سنان رضی الله عنه دې. دَدوی تذکره تیره شوې ده.[12]

---

[1] کشف الباری:۴۲۸/۳.

[2] کشف الباری:۴۲۰/۲.

[3] کشف الباری:۲۹۱/۵.

[4] کشف الباری کتاب الصلاة باب إذا کان الثوب ضیقا.

[5] کشف الباری کتاب أبواب الکسوف باب النداء بالصلاة جامعة.

[6] کشف الباری ۲۶۷/۲.

[7] تهذیب الکمال:۲۸/۲۰.

[8] تهذیب الکمال: ۲۸/۲۰.

[9] تهذیب الکمال:۲۸/۲۰.

[10] تهذیب الکمال:۲۸/۲۰.

[11] تهذیب الکمال:۲۸/۲۰ والتاریخ الاوسط: ۱۸۷/۱.

[12] کشف الباری:۸۲/۲

⊙ **بلال ﷺ:** دا حضرت بلال ﷺ مؤذن رسول الله ﷺ دې ددوی تذکره تیره شوې ده.[1]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت باندې یواشکال اودهغې جواب:-** دلته دا اشکال کیږی چه امام بخاری ﷫ چه کوم روایت ذکرکړې دې دهغې نه داخبره نه ثابتیږی چه وکیل بالبیع الفاسد بیع مردود وی. ځکه چه حضرت بلال ﷺ کله حضورپاك له کهجورې راوړې راغلو نوحضورپاك اوفرمائیل دَ چرته نه دې راوړې. حضرت بلال ﷺ اووئیل ما سره ردی کهجورې وې اومادهغې دَ دوو صاع په بدله کښې دا ښکلې کهجورې یوصاع واخستې چه حضورپاك ئې اوخورې. حضورپاك اوفرمائیل داسې نه دی کول پکار نودا حضورپاك چرته هم نه دی ذکر کړې چه دا رد کړه.[2]

ددې جواب دادې چه اصل کښې مسلم شریف کښې دَحضرت ابوسعیدخدری ﷺ په طریق دا واقعه نقل کړې شوې ده او په هغې کښې دی چه هذا الربافردوه لهذا نبی کریم ﷺ هلته صراحةً دَ رد کولوحکم ورکړې دې.[3] اولکه چه امام بخاری ﷫ په دې ترجمة الباب سره دَحدیث باب بعض طرق طرف ته اشاره کړې ده.[4] او دویم جواب دا ورکولې شی چه هم دې روایت سره مدعی ثابتیږی داسې چه کله حضورپاك ﷺ فرمائی اوه اوه! عین الربا الربا لاتفعل یعنی دا خوسوددې داسې مه کوه اوس ښکاره خبره ده چه ددې مطلب دادې چه حضورپاك دا ردکړې دې اودا بیع مردود ده.[5]

## ۱۲ - باب: الوكالة فى الوقف ونفقته، وأن يطعم صديقًا له ويأكل بالمعروف

### دَ وقف په مال کښې اودې په خرچه کښې دوکیل جوړولوحکم اود وکیل د دستور موافق په خپل دوست باندې خوراك كول اوپخپله خوړل

**دَترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری ﷫مقصددادې چه وکالت څنګه په املاك کښې جائزدې اوقاف کښې هم جائزدې اودَ دې په نفقات کښې هم جائزدې. که چرې مؤکل وکیل ته دا اووائی چه ته دَ دې وقف وکیل ئې او خپل دوست ته هم خوراك ورکولې شې او پخپله هم دَعرف مطابق خوړلې شې نودا جائز اوصحیح دی.[6]

---

[1] کشف الباری کتاب العلم باب عظة الامام النساء وتعلیمهن، وکتاب الصلاة باب الصلاة فی الثوب الاحمر.

[2] عمدة القاری: ۲۸/۱۲ وفتح الباری: ۶۱۷/۴.

[3] صحیح مسلم کتاب المساقاة باب بیع الطعام مثلاً بمثل رقم: ۱۵۹۴، ۱۵۹۵.

[4] عمدة القاری: ۲۸/۱۲وفتح الباری: ۶۱۷/۴.

[5] عمدة القاری: ۲۸/۱۲وفتح الباری: ۶۱۷/۴.

[6] عمدة القاری: ۲۱۱/۱۲ ولامع الدراری: ۲۲۵/۶.

احدیث ۲۱۸۹ [۱] حَدَّثَنَا قُتَیْبَةُ بْنُ سَعِیدٍ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ فِی صَدَقَةِ عُمَرَ رضی الله عنه لَیْسَ عَلَى الْوَلِیِّ جُنَاحٌ أَنْ یَأْكُلَ وَیُؤْكِلَ صَدِیقًا {لَهُ} غَیْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا، فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ هُوَ یَلِی صَدَقَةَ عُمَرَ یُهْدِی لِلنَّاسِ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ، كَانَ یَنْزِلُ عَلَیْهِمْ.

**ترجمه:**- حضرت عمرو بن دینار رحمه الله دَحضرت عمر رضی الله عنه دَ صدقې باره کښې اوفرمائیل چه (حضرت عمر رضی الله عنه دَ صدقې په باب کښې کوم وقف نامه لیکلې وه په هغې کښې داسې دی چه) دَ صدقې په متولي باندې هیڅ ګناه نشته چه هغه دې نه خوری او خپل دوست باندې دې خوری لیکن هغه دِ خپل خان دپاره مال جمع نه کړی او حضرت ابن عمر رضی الله عنه دَحضرت عمر رضی الله عنه صدقه متولی وو او هغوی به دَ اهل مکه نه هغه خلقو ته تحفې لیګلې چاسره چه به هغوی رضی الله عنه اوسیدل.

## رجال الحدیث

① **قتیبه:**- داقتیبه بن سیعد رحمه الله دې. [2]

② **سفیان:**- دا سفیان بن عیینه رحمه الله دې. [3]

③ **عمرو:**- داعمرو بن دینار مکی رحمه الله دې. [4]

④ **عمر بن خطاب:**- دَ حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه تذکره تیره شوې ده. [5]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضح دې. [6]

**تشریح:**- دلته امام بخاری رحمه الله مختصراً داحدیث پیش کولوسره دَحضرت عمر رضی الله عنه زمکه وقف کول او دَ حضوراکرم په مشوره سره یوه وقف نامه لیکلو تفصیلی واقعه طرف ته اشاره کړې ده. اودَ دې روایت تخریج امام بخاری رحمه الله په مختلفو ځایونو کښې کړې دې. [7]

دکتاب الشروط اووصایاپه روایت کښې دی چه حضرت عمر رضی الله عنه ته په خیبر کښې یوه زمکه ملاؤ شوه اودَ دغه جائیداد نوم ثمغ وو اویوباغ وونوحضرت عمر رضی الله عنه درسول الله ﷺ په خدمت کښې دَ مشورې دپاره حاضرشو اوعرض ئې اوکړویا رسول الله ! ماته په خیبر کښې یوه

---

[1] أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الشروط باب الشروط فی الوقف رقم:۲۷۳۷ وفی کتاب الوصایا باب وما لوصی أن یعمل فی مال الیتیم وما یاکل منه بقدر عمالته رقم: ۲۷۶۴ وفی باب الوقف کیف بکتب رقم: ۳۷۷۲ وباب الوقف للغنی والفقیر والضیف رقم: ۲۷۷۳ وباب نفقة القیم للوقف رقم:۲۷۷۶ وانفردبه البخاری رحمه الله تعالی انظر تحفة الاشراف: ۴۰/۷ رقم الحدیث: ۷۳۶۰.

[2] کشف الباری: ۱۸۹/۲.

[3] کشف الباری: ۲۲۸/۱، ۱۰۲/۳.

[4] کشف الباری: ۳۰۹/۴.

[5] کشف الباری: ۲۳۹/۱، لامع الدراری:۲۲۵/۶.

[6] عمدة القاری: ۲۱۱/۱۲.

[7] عمدة القاری:۲۱۱/۱۲ ولامع الدراری:۲۲۵/۶.

زمكه ملاؤ ده اوددې نه ماته كله هم ښكلې مال نه دې ملاؤ شوې. اوس تاسو ماته ددې باره كښې څه حكم كونى چه په كومه طريقه دا زه د ثواب ذريعه جوړه كړم. حضورپاك اوفرمائيل چه كه غوارې نواصل خپل خان سره اوساته اوددې منافع صدقه كوه. حضرت عمر رضي الله عنه په دې شرط صدقه (وقف) اوكړه چه اصل زمكه مه خرڅونې اومه نې هبه كونى اونه دې چاته په وراثت كښې ملاؤشي اوفقيران رشته داران غلامان آزادولو دالله تعالى دلارې مجاهدينو دميلمنواومسافرو دپاره وقف ده. اوكوم سړې هم چه ددې متولى وى كه هغه د عرف مطابق ددې نه خوراك كوى يا په خپل دوست باندې خورى نوهيڅ مضائقه نشته په دې شرط چه د ذخيره كولواراده نې نه وى.

# ١٣ - باب: الوكالة في الحدود

## د حد لګولودپاره څوك وكيل جوړول

**دترجمة الباب مقصد او دعلماؤ د اختلاف بيان:** - د امام بخارى رحمه الله دترجمې نه معلوميږى چه اقامة الحدود يعنى په حدقايم كولوكښې وكيل جوړول جائزدى. لهذا كه امام څوك بل سړې د حد قايم كولودپاره مقرركوى اووكيل جوړه وى نوټيك دى. (١)اوس پاتې شوه دامسئله چه پخپله امام له حاضر اوسيدل پكاردى كه نه نوپه دې كښې اختلاف دې. بعض حنابله شافعيه او امام مالك رحمهم الله مسلك دادې چه دامام حاضريدل ضرورى نه دى او امام ابوحنيفه او امام احمد اوبعض شوافع رحمهم الله په نيزدامام حاضريدل ضرورى دى.(٢) امام بخارى رحمه الله دترجمة الباب نه په ظاهره د فريق اول والاحضراتو تائيدكړې دې او په دليل كښې نې حديث باب پيش كړې دې. رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت انس رضي الله عنه ته اوفرمائيل ته دهغه ښځې له ورشه كه چرې هغې د زنا اعتراف اوكړو نوهغه رجم كړه اوحضورپاك پخپله تشريف يونه اوړلو.(٣)
د احنافو د طرف نه ددې دا جواب وركړې كيدې شى چه حضرت انس رضي الله عنه هسې وكيل وو حضورپاك خوهغه لكه چه د حاكم اوعامل په توګه ورليګلې وو لهذا هغه پخپله ذمه وار وو. بعض حضراتو داهم ونيلى دى چه په اصل كښې دلته امام بخارى رحمه الله په اثبات حدودكښې د توكيل جواز بيانوى او په دې كښې هم د علماؤ حضراتو اختلاف دې.
**اثبات حدوداستيفاء حدود (اقامت حدود) كښې د اختلاف نور تفصيل:** - اوس دلته دوه خبرې دى يواثبات حدود او يو استيفاء حدود (اقامت حدود) نو په دې كښې د علماء كرامو داختلاف تفصيل دادې چه حنابله په دې دواړو كښې دتوكيل د جواز قائل دى اودهغوى دليل حديث باب دى. قوله واغديا انيس إلى امرأة هذا، فان اعترفت فارجمها الخ. نوحضورپاك حضرت انيس رضي الله عنه د اثبات حدود زنا او اقامت حد زنا د دواړو وكيل جوړ كړو ليكن د حنابله نه

---

(١) الكنزالمتوارى:٣٩١/٢وشرح ابن بطال:٣٧٢/٦.
(٢) المغنى لابن قدامة مقدسى: ١١٠١/١.
(٣) المغنى لابن قدامة مقدسى: ١١٠١/١.

ابوالخطاب رحمه الله فرمائی چه د اثبات حدودد پاره وکالت صحیح نه دی.(۱)
دامام شافعی رحمه الله رائې داده چه اثبات حدودکښې سواد حد قذف نه توکیل جائزنه دی اودهغوی په نیزدعدم جواز علت دادی چه اثبات حدود دالله تعالی حق دی او مونږ د شبهاتو د وجې نه هم دهغې د ساقط کولو مکلف جوړ کړې شوی یو او په جواز توکیل کښې خو هغه په هرحال کښې نافذ کول دی لهذا داسې کول جائزنه دی او ترکومې چه په اثبات حد قذف کښې د توکیل د جواز تعلق دی نودا حضرات فرمائی چه دا د سړی حق دی نو په دې کښې د نورو مالی معاملاتو په شان توکیل جائزدی.(۲)
او په استیفاء حدودکښې مالکیه شافعیه او حنابله خود توکیل دجواز قائل دی هم ددې حدیث باب د وجې. بل دحضرت بریده رضی الله عنه روایت چه حضورپاک ﷺ حضرت ماعز رضی الله عنه د رجم کولو حکم ورکړو او صحابه رضی الله عنهم هغه سنګسار کړو.(۳)دغه شان حضرت عثمان رضی الله عنه حضرت علی رضی الله عنه په ولید بن عقبه باندې د شرابوڅکلو حد قائمولود پاره وکیل جوړکړو اوهغه حضرت حسن رضی الله عنه وکیل جوړکړو اود هغه په انکارباندې حضرت عبدالله بن جعفر رضی الله عنه وکیل جوړکړې شو بیا هغه په ولیدبن عقبه باندې حدقایم کړو اوحضرت علی رضی الله عنه هغه اوشمیرلې.(۴)
په دې سلسله کښې د احنافو رائې داده چه دمؤکل په عدم موجودګئی کښې حدود اوقصاص وصول کولود پاره وکیل کول دامام ابوحنیفه رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله دواړو په نیزناجائزدې لیکن ګواه پیش کولوسره د حدود او قصاص ثابتولود پاره په وکیل کولوکښې اختلاف دی. یعنی دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزباندې حدوداو قیاس ثابتولو د پاره وکیل کول جائزدی او د امام ابویوسف رحمه الله په نیزناجائزدې اود امام محمد رحمه الله قول مضطرب دی. بعض حضرات فرمائی چه هغوی امام ابوحنیفه رحمه الله سره دی او بعض وئیلی دی چه ابویوسف رحمه الله سره یو اوبعض حضرات دا فرمائی چه د شیخین اختلاف په دې صورت کښې دې کله چه مؤکل په عدالت کښې موجودنه وی خوکه هغه په عدالت کښې موجود وی نو اثبات حدود قیاس دپاره وکیل کول په اتفاق سره جائزدی. ځکه چه د مؤکل په موجودګئی کښې د وکیل کلام د مؤکل طرف ته منتقل کیږی لکه چه مؤکل پخپله خبرې اوکړې اوښکاره خبره ده چه کله مؤکل پخپله خبرې اوکړې نوبه اثبات حدودقصاص کښې هیڅ بدیت نشته.

**د امام ابویوسف رحمه الله دلیل:**- په مسئله مختلف فیهاکښې دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې چه دمؤکل په غیر موجودګئی کښې حدود اوقصاص ثابتولودپاره وکیل او په حقیقت کښې دخپل خان دپاره نائب مقررکول دی او په نائب مقررکولوکښې د یوقسم شبه ده اوداخبره مسلم ده چه په حدود اوقصاص کښې د شبهاتونه هم احتراز کولې شی. لهذا د نیابت د شبې د وجې نه حدود اوقصاص ثابتولودپاره وکیل کول جائزنه دی لکه چه د شبه بدلیت د وجې نه

۱) المغنی لابن قدامة مقدسی: ۱/۱۱۰۱.
۲) الانصاف: ۵/۲۶۰ کشاف القناع: ۳/۴۶۵ مهذب: ۱/۳۵۶.
۳) أخرجه مسلم: ۳/۱۳۲۲.
۴) أخرجه مسلم: ۳/۱۳۳۱، ۱۳۳۲.

شهادت على الشهادت، په حدود اوقصاص كښې نه شى قبلولې اولكه چه د معاف كولو د شبهې د وجې نه د مؤكل په غيرموجودګۍ كښې قصاص وصول كول جائزه نه دى. دغه شان د شبه نيابت د وجې نه حدود اوقصاص ثابت كولو دپاره به وكيل كول ناجائزشى.

**دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل:-** د امام صاحب رحمه الله دليل دادې چه خصومت يعنى مقدمه كول د ثبوت حدود اوقصاص دپاره محض يوشرط دې بغيرد خصومت نه حد اوقصاص ثابت كول ممكن نه دى او خصومت صرف شرط ښكه دې چه د حد نفس وجوب، نفس جنايت طرف ته منسوب كيږى اود جنايت ظهور د نفس شهادت طرف ته، اوخصومت يعنى مقدمه دائركولو طرف ته نه وجوب حد منسوب كيږى او نه ظهور جنايت. لهذا خصومت د ثبوت حد دپاره محض يوشرط شو او شرط محض حقوق نه يوحق دې او په سابق كښې تيرشوى دى. چه په ټولو حقوقو كښې وكيل كول جائز دى لهذا خصومت يعنى حدود اوقصاص ثابتولو دپاره منډه تړه كولو د پاره هم وكيل كول جائزشى. (١)

[حديث ٢١٩٠] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ رضى الله عنهما عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «وَاغْدُ يَا أُنَيْسُ إِلَى امْرَأَةِ هَذَا، فَإِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا». [٢٥٠٦، ٢٥٤٩، ٢٥٧٥، ٦٢٥٨، ٦٤٤٠، ٦٤٤٣، ٦٤٤٤، ٦٤٤٦، ٦٤٥١]

---

(١) الهداية شرح البداية كتاب الوكالة: ٣/١٨٦ بدائع الصنائع: ٦/٢١ – ٢٢ البحرالرائق: ٧/١٤٧ الفتاوى العالمكيرية: ٣/٥٦٤ الموسوعة الفقهية: ٤٥/٣٥ – ٣٦.

(٢) أخرجه البخارى فى كتاب الصلح باب أذا اصطلحوا على صلح جور فالصلح مردود: رقم:٢٦٩٥- ٢٦٩٦ وفى كتاب الشروط باب الشروط التى لاتحل فى الحدود رقم:٢٧٢٤، ٢٧٢٥ وفى كتاب الايمان ولنذور باب كيف كانت يمين النبى صلى الله تعالى عليه وسلم رقم: ٦٦٣٣، ٦٦٣٤ وفى كتاب المحاربين من أهل الكفر والردة باب الاعتراف بالزنى رقم: ٦٨٢٧، ٦٨٢٨ وفى باب البكران يجلدان وينفيان رقم: ٦٨٣١، ٦٨٣٣ وفى باب من أمر غير الامام باقامة الحد غائبًا عنه رقم: ٦٨٣٥ – ٦٨٣٦ وفى باب إذا رمى امرأته أو أمرة غيره بالزنى عندالحاكم والناس الخ رقم: ٦٨٤٢ – ٦٨٤٣ وباب هل يامر الامام رجلاً فيضرب ا الحد غائبًا عنه رقم: ٦٨٥٩ – ٦٨٦٠ وفى كتاب الاحكام باب هل يجوز للحاكم ان يبعث رجلاً وحده للنظر فى الامور رقم: ٧١٩٣ – ٧١٩٤ وفى كتاب أخبارالاحاد باب ماجاء فى اجازة خبرالواحد الصدوق فى الاذان والصلاة والصوم والفرائض والاحكام رقم: ٧٢٧٨، ٧٢٥٩ وفى كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة باب الاقتداء بسنن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم الخ رقم:٧٢٧٨ – ٧٢٧٦ وأخرجه النسائى فى سننه فى كتاب آداب القضاة باب صون النساء عن مجلس الحكم رقم: ٥٤١٠ – ٥٤١١ وأخرجه الترمذى فى جامعه فى أبواب الحدود باب ماجاء فى در الحد عن المعترف إذا رجع رقم:(١٤٢٩ مع قول الترمذى رحمه الله وأخرجه الطحاوى فى شرح معانى الاثار كتاب الحدود باب الاعتراف بالزنا الذى يجب به الحد ماهو (رقم: ٤٤٣٧) والبيهقى فى سننه الكبرى كتاب الحدود باب مايستدل به على شرائط الاحصان رقم: ١٦٧٠١ والامام عبدالرازق فى مصنفه: ٧/٣٠٩ باب البكر رقم: ١٣٣٠٩، ١٣٣١٠.

**ترجمه**:- حضرت زیدبن خالد جهنی او حضرت ابوهریره رضي الله عنه دَنبی کریم ﷺ نه نقل کوی حضوراکرم حضرت انیس بن ضحاك اسلمی رضي الله عنه ته اوفرمائیل اې انیس! ته دَهغه ښځې ته ورشه که چرې هغه دَ زنا اقرار اوکړی نوهغه سنګسار کره.

## رجال الحدیث

⊙ **ابوولید**:- دا ابوولید هشام بن عبدالملك طیالسی رحمه الله دې. [1]
⊙ **لیث**:- دا لیث بن سعد الامام رحمه الله دې. [2]
⊙ **ابن شهاب**:- دا ابن شهاب محمدبن مسلم الزهری رحمه الله دې. [3]
⊙ **عبیدالله**:- داعبیدالله بن عبدالله بن عقبه رحمه الله دې. [4]
⊙ **زیدبن خالد**:- داحضرت زیدبن خالد الجهنی رضي الله عنه دې. [5]
⊙ **ابوهریرة**:- دا مشهورصحابی حضرت ابوهریره رضي الله عنه دې. [6]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: واغدیاانیس إلی امرأة هذا فان اعترفت فارجمها په ذریعه سره واضح دې. دَدې دَپاره دَحضوراکرم حضرت انیس رضي الله عنه ته دَدې خبرې حکم ورکول لکه چه دَحضورپاك دَ طرف نه اقامت حد اختیارته حواله کول وو.

**تشریح**:- دلته داحدیث شریف مختصردې او داحدیث امام بخاری رحمه الله په مختلفوځایونوکښې مختصر او په تفصیل سره نقل کړې دې. [7] کتاب المحاربین منه أهل الکفر والردة په روایت کښې دی چه حضرت ابوهریره رضي الله عنه او حضرت زیدبن خالد رضي الله عنه فرمائی چه مونږ نبی کریم ﷺ سره وو یوصاحب اودریدو وئې وئیل چه زه تاسو ﷺ ته دَالله تعالی واسطه درکوم تاسو زمونږ په مینځ کښې دَالله تعالی دَ کتاب نه فیصله اوکړئی. په دې باندې دهغه خصم (مدمقابل) هم اودریدو اوهغه دَ دغه رومبی نه زیات پوهه وو بیاهغه اووئیل چه واقعی تاسو زمونږ په مینځ کښې په کتاب الله فیصله اوکړئی اودَ خبرو اجازت راکړئی. حضوراکرم ﷺ اوفرمائیل وایه. هغه سړی اووئیل زما ځوئی به دغه سړی سره مزدورئی باندې کارکولو بیا هغه دَده ښځې سره زنااوکړه. ما ده ته دَ هغې په فدیه کښې سل چیلئی او یوخادم ورکړو. بیا ما دَبعض اهل علم حضراتو نه پښتنه اوکړه نوهغوی اووئیل چه زما ځوئی ته به سل کوړې او دَ یوکال دَپاره دَ ښارنه دَ بهرکیدو حد واجب دې حضوراکرم ﷺ په دې

---

[1] کشف الباری: ۲/۳۸، ٤/۱۵۹.
[2] کشف الباری: ۱/ ۳۲٤.
[3] کشف الباری: ۱/۳۲۶.
[4] کشف الباری: ۱/٤۶۶، ۳/۳۷۹.
[5] کشف الباری: ۳/ ٥٤٤.
[6] کشف الباری: ۱/۶٥۹.
[7] عمدة القاری:۱۲/۲۱۲.

باندې اوفرمائیل په هغه ذات باندې قسم دې چا په قبضه کښې چه زما ځان دې زه به ستاسو په مینځ کښې هم په کتاب الله سره فیصله کوم. سل چیلئ او یوخادم به تاته واپس کولې شی او ستاخوئی به سل کوړې وهلې شی او د یوکال دپاره به د ښار نه ویستلې شی. او اې انیس ! سحر هغه ښځې له ورشه که چرې هغې د زنا اعتراف اوکړو نوهغه رجم کړه. نوهغه سحر هغې له ورغلو اوهغې اعتراف اوکړو او هغه دا رجم کړه. دحدیث مبارك متعلقه مسائل باندې بحث د باب په شروع کښې تیرشوې.

[حدیث ۲۱۹۱] (۱) حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِي عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ جِيءَ بِالنُّعَيْمَانِ أَوِابْنِ النُّعَيْمَانِ شَارِبًا، فَأَمَرَرَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- مَنْ كَانَ فِي الْبَيْتِ أَنْ يَضْرِبُوا قَالَ فَكُنْتُ أَنَا فِيمَنْ ضَرَبَهُ، فَضَرَبْنَاهُ بِالنِّعَالِ وَالْجَرِيدِ. [۶۳۹۲، ۶۳۹۳]

**ترجمه**:- حضرت عقبه بن حارث ﷺ فرمائی چه نعمان یا ابن نعیمان د نشې په حالت کښې راوستلې شو نورسول الله ﷺ هغه خلق کوم چه په کورکښې موجود وو حکم ورکړوچه دې اووهئ زه هم هغه خلقوکښې ووم کوموچه دې وهلو نومونږدې په څپلو او د کهجورو په لختو اووهلو.

## رجال الحدیث

① **ابن سلام**:- دا محمدبن سلام بیکندی رحمه الله دې. (۲)
② **عبدالوهاب**:- دا عبدالوهاب ثقفی رحمه الله دې. (۳)
③ **ایوب**:- داایوب بن تیمه کیسان سختیانی رحمه الله دې. (۴)
④ **ابن ابی ملیکه**:- داابن ابی ملیکه عبدالله بن عبیدالله رحمه الله دې. (۵)
⑤ **عقبه**:- دا حضرت عقبه بن حارث رضی الله عنه دې. (۶)

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: فامر من كان في البيت أن يضربوه په ذریعه داسې ثابت دی چه حضوراکرم ﷺ پخپله حد قایم نه کړو بلکه

---

(۱) وأخرجه البخاری رحمه الله تعالى أيضًا فى كتاب الحدود وما يحذر من الحدود باب من أمر بضرب الحد فى البيت رقم: ۶۷۷۴ وباب الضرب بالجريد والنعال رقم:۶۷۷۵ وأخرجه الحاكم رحمه الله تعالى فى مستدركه فى كتاب الحدود رقم: ۸۲۳۸، ۸۲۳۹ والبيهقى فى سننه الكبرى: ۳۹/۲ كتاب الاشربة والحدفيه باب ماجاء فى أقامة الحد فى حال السكر أو حتى يذهب سكره رقم الحديث: ۱۷۹۷۳ وانظر تحفة الاشراف: ۲۳۶/۹ رقم الحديث:۹۹۰۷.

(۲) كشف البارى كتاب السلم باب ا لسلم فى كيل معلوم.

(۳) كشف البارى:۲۹/۲.

(۴) كشف البارى:۲۶/۲.

(۵) كشف البارى:۵۴۸/۲.

(۶) كشف البارى:۵۱۶/۳.

حاضرینو ته ئی اوفرمائیل چه تاسو حد قایم کړئی. او حنفیه اوحنابله داوائی چه حضورپاك خو هلته موجود وو نوچه کله حضورپاك موجود وو اودَ امیر دَ موجودګئی په صورت کښې که نورو خلقو ته داسې حد قایمولودپاره اووئیلې شی نو په دې کښې څه بدیت نشته. دَ امیردپاره دا ضروری نه دی چه هغه دې هم وهل شروع کړی.[1]

**قوله: بالنعیمان، أوابن النعیمان**:- یعنی دَ راوی شك دې چه په چاباندې حد قایم شو هغه حضرت نعیمان وو یا دهغه ځوئی ابن نعیمان وو. علامه عینی رحمه الله او علامه احمدبن اسماعیل کورانی وغیرهما اوعلامه ابن عبدالبر رحمه الله نه نقل کوې چه حضرت نعیمان رضی الله عنه خویونیك صالح سړې وو اوحد خمردَهغه په ځوئی لګولې شوې وو.[2]

**دَحضرت نعیمان بن عمرو بن رفاعه انصاری رضی الله عنه څه تذکره**:- دَحضرت نعیمان بن عمرو رضی الله عنه علق بنومالك بن نجار نه وو. دَغزوه بدر په معرکه کښې دَ شرکت سعادت ابدی هم هغوی ته حاصل دې. بل په نورو غزواتوکښې هم رسول الله صلی الله علیه وسلم سره شریك شوې اوهغوی دَصحابه کرامو رضی الله عنهم په جماعت کښې دَخپلې خوش طبیعتئی او دل لګئی دَ وجې نه مشهور وو.[3]

هم دَدې حکایات ظریفه نه داهم دی چه یوځل حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په تجارتی سفرکښې بصرې ته تشریف یوړو. حضرت نعیمان رضی الله عنه اوحضرت سویبط بن حرمله رضی الله عنه هم هغوی سره وو اودا دواړه حضرات دَاهل بدر نه دی. حضرت سویبط دَ لارې په توښه باندې مشرو. حضرت نعیمان رضی الله عنه هغه ته درخواست اوکړو چه ماله دَخوراك دپاره څه راکړه هغه وئیل نه ترهغې چه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه راشی. حضرت نعیمان رضی الله عنه ورته اووئیل چه ښه ته بیا زه تاته سبق بنایم. هغه بازارته لاړو چرته چه خلقو غلامان اخستل. ده اووئیل اې خلقو که تاسو غواړئی نو زما نه یو عربی النسل غلام واخلئی اودَهغه ژبه اوړده ده کیدې شی چه داسې اووائی چه زه خو آزاد یم نوکه تاسو دَهغه په دې وینا باندې هغه پریخودونکې ئی نو زه په تاسو خپل غلام نه خرڅوم. خلقو اووئیل چه مونږ هغه په دومره مال باندې اخلو. هغه دَغه خلقو سره سودا اوکړه او هغوی ئی خپلې قافلې طرف ته بوتلل اوحضرت سویبط رضی الله عنه طرف ته ئی اشاره اوکړه چه دا ستاسو مطلوب دې. داخلق حضرت سویبط رضی الله عنه ته راغلل او وئی وئیل مونږ ته اخستې ئی هغه اووئیل ده غلط بیانی کړې ده زه خو یوآزاد سړې یم هغه خلقو اووئیل ستا آقا مونږ ته ستا دَ دې عادت باره کښې خودلی وو او رسئی په کښې واچوله روان ئی کړو. په دې وخت کښې حضرت ابوبکر رضی الله عنه تشریف راوړو نودا ټوله قصه هغوی ته واؤرولې شوه نوهغوی دَ دغه خلقو ورکړې شوې مال واپس کړو هغه ئی راخلاص کړو. کله چه دا خلق واپس شو نودا قصه ئی حضورپاك ته واؤروله نوحضورپاك پخپله هم او صحابه کرامو رضی الله عنهم هم په دې واقعه باندې اوخندل.[4]

---

[1] عمدة القاری: ۲۱۳/۱۲ وإرشادالساری: ۲۹۵/۵.

[2] عمدة القاری: ۲۱٤/۱۷ والکنزالجاری: ۳٤/۵.

[3] تاریخ الاسلام: ۱۲۷/٤.

[4] الوافی بالوفیات: ۸۳/۲۷ المعارف: ۳۲۸/۱.

دَ هغوی طبعی ظرافت یوه قصه داهم نقل کړې شوې ده چه یوځل یوبدو رسول الله ﷺ سره ملاویدو له مدینې منورې ته راغلو او خپله اوښه ئې بهر اوتړله په جمات کښې داخل شو بعض صحابه کرامو ﷺ حضرت نعیمان ﷺ ته اووئیل چه ډیرې ورځې اوشوې غوښه مو نه ده خوړلې که ته دا اوښه حلاله کړې نومونږ به دا اوخورو او رسول الله ﷺ خو به دَ اوښې قیمت دغه بدوته ورکوی. نو حضرت نعیمان ﷺ هغه اوښه حلاله کړه اودهغې غوښه ئې تقسیم کړه، بیاچه کله هغه بدو دَ جمات نه بهر راغلو نوهغه خپله سورلی اونه لیدله چغې جوړې کړې اودآثار نه هغه ته پته اولګیده چه دَ هغه اوښه ئې حلاله کړې ده. رسول الله ﷺ ته ئې شکایت اوکړو حضورپاك دَدې باره کښې معلومات کولوسره داړضباعة ته اورسیدو چرته چه نعیمان ﷺ خپل ځان پټ کړې وو او په خپل ځان دپاسه ئې دَ کهجورو پانړې او ښاخونه اچولې وو. نو یوسړې دَ هغه ځائې طرف ته اشاره کولوسره په اوچت آواز اووئیل چه ما هغه نه دې لیدلې یارسول الله! بیارسول الله ﷺ دَهغه ډیری نه حضرت نعیمان ﷺ رااویستلو اودَ هغه مخ د دې ډیری په وښو او پانړو دوړو سره بدل شوې وو. حضورپاك دَهغه نه تپوس اوکړو تا ولې داسې اوکړه.حضرت نعیمان ﷺ اووئیل اې دَالله تعالی پاك او خوږ رسول ﷺ کومو خلقو چه تاسو ته زما ځائې خودلې دې هم هغوی ماته دَداسې کولوحکم راکړې وو او حضورپاك دَهغه دَ مخ نه واښه او ډکی وغیره لرې کول او وئی خندل اودغه بدو ته ئې دَ اوښې تاوان ورکړو.(۱)

## ۱۴- باب: الوكالة في البدن وتعاهدها

### دَ قربانئ په اوښانوکښې اودَې دَ نګرانئ په سلسله کښې وکالت

**دَترجمة الباب مقصد:-** دَ امام بخاری ﷺ مقصددلته دادې که چرې یوسړې دَ خپلوځناوروڅ ساتنې دَپاره څوك سړې وکلې مقرر کړی نودا جائزدی او رسول الله ﷺ هم داسې کړی دی.(۲)

[حدیث ۲۱۹۲](۳) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ قَالَتْ عَائِشَةُ- رضي الله عنها- أَنَا فَتَلْتُ

(۱) الوافي بالوفيات: ۸۳/۲۷.

(۲) عمدة القاری: ۲۱۴/۱۲.

(۳) وأخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی کتاب الحج باب قتل القلائد للبدن والبقر رقم:۲۱۹۲ وبابمن أشعروقلدبذی الحلیفة ثم أحرم رقم: ۱۶۹۶ وباب إشعارالبدن رقم:۱۶۹۹ وباب من قلد القلائد بیده رقم: ۱۷۰۰ وفی کتاب الضاحی باب إذا بعث لیذبح لم یحرم علیه شیئ رقم: ۵۵۶۶ وأخرجه مسلم فی کتاب الحج باب استحباب بعث الهدی إلی الحرم لمن لایرید الذهاب بنفسه واستحباب تقلیده فضل القلائد الخ رقم: ۳۱۸۱ – ۳۱۸۷ وخرجه أبوداؤد فی کتاب المناسک باب من بعث هدیه وأقام رقم: ۱۷۵۷ – ۱۷۵۹ وأخرجه النسائی فی کتاب مناسک الحج باب اشعار الهدی رقم ۲۷۷۵ وباب قتل القلائد رقم: ۲۷۷۴ وباب ما یفتل منه انقلائد رقم: ۳۷۷۹ وباب تقلیدالابل رقم: ۲۷۸۲ وأخرجه ابن ماجه رحمه الله تعالی فی کتاب مناسک باب تقلید البدن رقم:۳۰۹۴وباب إشعار البدن.

قَلاَئِدَ هَدْیِ رَسُولِ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - بِيَدَیَّ، ثُمَّ قَلَّدَهَا رَسُولُ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - بِيَدَيْهِ، ثُمَّ بَعَثَ بِهَا مَعَ أَبِي، فَلَمْ يَحْرُمْ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - شَيْءٌ أَحَلَّهُ اللَّهُ لَهُ حَتَّى نُحِرَ الْهَدْيُ. [ر: ۱۶۰۹]

**ترجمه**:- (حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی) ما دَحضورپاك دَ قربانئي دَ اوښانو هار په خپل لاس باندې جوړ کړې وو بیا رسول الله ﷺ په خپلو لاسونومبارکو هارونه ورواچول بیائی اوښان زما پلار سره مکې مکرمې ته روان کړل خوچه څومره څيزونه دحضورپاك دپاره حلال وو په هغې کښې يوڅيز (دغه قربانئي ليګلو دَ وجې نه) په حضورپاك باندې حرام نه شو تردې چه هغه اوښان حلال کړې شو.

## رجال الحديث

① **اسماعيل بن عبدالله**:- دا اسماعيل بن عبدالله بن ابی اویس رحمه الله دې.[1] اودا دَامام مالك رحمه الله خورئې دې.[2]

② **مالک**:- دا مشهورامام مالك رحمه الله دې.[3]

③ **عبدالله بن ابی بکر**:- دا عبدالله بن ابی بکربن محمدبنعمرو بن حزم انصاری رحمه الله دې.[4]

④ **عمرة بنت عبدالرحمن**:- دا عمرة بنت عبدالرحمن بن سعیدیا سعدبن زرارة انصاریه مدنیه رحمهاالله تعالی ده.[5] اودادَعبدالله بن ابی بکر ترور ده.[6]

⑤ **عائشه**:- اودَ ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها تذکره هم تیره شوې ده.[7]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَ ترجمة الباب دواړو اجزاؤ سره دَحديث مطابقت قوله: ثم بعث بها مع أبي سره ظاهردې. کله چه په ۹هجری کښې حضورپاك دَحج اراده اوکړه اوحضرت عائشه رضي الله عنها دَ حضورپاك دَ قربانئي دَ اوښانو دپاره هارونه جوړول شروع کړه ليکن روستو بیا حضورپاك حضرت ابوبکر رضي الله عنه دَ حج امیر جوړول او ليګلو فيصله اوکړه اوخپل خاروی دَحضرت ابوبکر رضي الله عنه په لاس روان کړل نو ښکاره خبره ده چه هغه دَ دې اوښانو په ساتنه او دَدې په نحر کولوکښې دَرسول الله ﷺ وکيل وو او دويم جزء سره مطابقت داسې دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها حضورپاك وکيله جوړه کړه او هغه دَ حضورپاك نمائنده کيدون سره دَ دغه اوښانو هارونه جوړول اوښکاره خبره ده چه دا خبره دَ اوښانو په تعاهد کښې داخله ده.[8]

---

[1] کشف الباری:۱۱۳/۲.
[2] إرشادالساری:۲۹۵/۵.
[3] کشف الباری:۲۹۰/۱، ۸۰/۲.
[4] کشف الباری کتاب الوضوء باب الوضوء مرتين مرتين.
[5] کشف الباری کتاب الحيض باب عرق الاستحاضة.
[6] إرشادالساری: ۲۹۵/۵.
[7] کشف الباری:۲۹۱/۱.
[8] عمدة القاری:۲۱۴/۱۲ وإرشادالساری:۲۹۵/۵ وفتح الباری:۶۲۱/٤.

# ۱۵ - باب: إذا قال الرجل لوکیله: ضعه حیث أراك الله. وقال الوکیل: قد سمعت ما قلت.

**که څوک خپل وکیل ته داسې اووائي چه ته په کوم کارکښې مناسب ګڼړې دا مال خرچ کړه او وکیل اووائي چه تاسو څه اووئیل ما واؤریده**

**دَترجمة الباب مقصد اودَ فقهاؤ دَاختلاف بیان:-** امام بخاری رحمه الله دَ ترجمة الباب نه دا خودل غواړی چه دَوکالت دَ صحیح کیدودَپاره هم ایجاب اوقبول ضروری دې. لیکن دَتوکیل دَ ایجاب اوقبول دَپاره څه معین لفظ ضروری نه دې. بلکه دَدې ذدې دارومدار په معنی باندې دې. یعنی دَ وکیل جوړولو دَپاره وکلت (ما ته وکیل جوړ کړې) او دَ جوړولو دپاره قبلت (ما وکیل جوړول قبول کړل) وینا کول ضروری نه دی بلکه په هغه ټولو الفاظوسره توکیل صحیح دې کوم چه په اذن او قبولیت باندې دلالت کوی. (۱)لکه چه ترجمة الباب کښې مؤکل چاته وائی ضعه حیث اراك الله نوڅه خاص صیغه دَ توکیل دلته مذکورنه ده مګر توکیل به اوشی. دغه شان وکیل وائی قدسمعت ماقلت نودلته هم دا الفاظ دَعقدپاره مخصوص نه دی مګر مدعی چونکه حاصلیږی لهذا دا جائزدی.

دې نه پس دا اوګڼړئی که چرې داسې توکیل اوکړې شو اوداسې اووئیلې شو چه چرته غواړې خرچ کړه نووکیل ته دَدې په په مصارف باندې دَ خرچ کولواختیاردې. باقی دا چه هغه ئې په خپل ځان باندې هم خرچ کولې شی که نه، نودَ مؤکل دَ اجازت نه بغیربه په خپل ځان باندې دَخرچ کولوګنجائش نه وی. دَ بخاری شریف شراح دلته دا بحث هم فرمائیلې دې که یوسړې چاته مال ورکړی اووائی چه ته داځنګه مناسب ګڼړې خرچ کړه اوحال دادې چه هغه وکیل پخپله هم مسکین دې نوآیا هغه پخپله دَدغه مال نه څه اخستې شی. امام مالك رحمه الله او امام احمد رحمه الله فرمائی چه هغه پخپله دَدغه مال نه څه نه شی اخستې ځکه چه رب المال هغه دا مال نورو فقیرانو ته دَوجوه خیر په کارونو کښې دَ لګولووکیل جوړکړې دې او پخپله هغه ته دَ دغه مال نه دَاخستلو اجازت نشته اوکه چرته رب المال غوښتل نو دې به ئې پخپله دَ مال مالك جوړکړې وې نه چه هغه به ده ته دَخیر په کارکښې دَ خرچ کولو حکم ورکولو. (۲)

اوجمهورفقهاء دا فرمائی چه وکیل دَدغه مال نه په فقراء کښې دَ یوفقیردَ حصې په اندازه اخستې شی ځکه چه رب المال هغه ته دا مال فقیرانوته دَورکولواو دَخیرپه کارکښې دَ لګولو حکم ورکړې دې اوهغه پخپله هم فقیراومسکین دې نوکه هغه پخپله دَدې مال نه څه اخستلی نوبیا هم هغه دَرب المال دَحکم نه تجاوز اوتعدی نه کوی. (۳)

---

(۱) المغنی:۲/۱۱۰۰ الابواب والتراجم ص:۱۷۱.

(۲) المغنی: ۱۱۱۳/۱ شرح ابن بطال: ۶/۳۷۴.

(۳) المغنی:۱۱۱۳/۱ شرح ابن بطال: ۶/۳۷۴.

حديث ٢١٩٣(١) حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ يَحْيَى قَالَ قَرَأْتُ عَلَى مَالِكٍ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رضى الله عنه - يَقُولُ كَانَ أَبُو طَلْحَةَ أَكْثَرَ الأَنْصَارِ بِالْمَدِينَةِ مَالاً، وَكَانَ أَحَبَّ أَمْوَالِهِ إِلَيْهِ بِيْرُحَاءَ وَكَانَتْ مُسْتَقْبِلَةَ الْمَسْجِدِ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَدْخُلُهَا وَيَشْرَبُ مِنْ مَاءٍ فِيهَا طَيِّبٍ فَلَمَّا نَزَلَتْ (لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ) قَامَ أَبُو طَلْحَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى يَقُولُ فِي كِتَابِهِ (لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ) وَإِنَّ أَحَبَّ أَمْوَالِي إِلَيَّ بِيْرُحَاءَ، وَإِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلَّهِ أَرْجُو بِرَّهَا وَذُخْرَهَا عِنْدَ اللَّهِ فَضَعْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ حَيْثُ شِئْتَ، فَقَالَ «بَخٍ، ذَلِكَ مَالٌ رَابِحٌ، ذَلِكَ مَالٌ رَابِحٌ. قَدْ سَمِعْتُ مَا قُلْتَ فِيهَا، وَأَرَى أَنْ تَجْعَلَهَا فِي الأَقْرَبِينَ». قَالَ أَفْعَلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَسَمَهَا أَبُو طَلْحَةَ فِي أَقَارِبِهِ وَبَنِي عَمِّهِ. تَابَعَهُ إِسْمَاعِيلُ عَنْ مَالِكٍ وَقَالَ رَوْحٌ عَنْ مَالِكٍ رَابِحٌ. [ر: ١٣٩٢]

**ترجمه**:- (حضرت انس بن مالك رضی الله عنه) اوفرمائيل چه حضرت ابوطلحه انصارى رضی الله عنه دَمدينې په خلقوكښې دَټولونه مالداروو اوهغه ته په خپلو ټولو مالونوكښې بيرتحاء (باغ) ډيرګران وو اوهغه دَجمات مخې ته وو. حضورپاك به دغه باغ ته تللو اودَهغه ځائى پاكې اوصفا اوبه به ئى څكلې. كله چه دَ سورت عمران دا آيت نازل شو ﴿ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ ﴾ الاية يعنى هيڅ كله به حاصل نه كړې شئى په نيكئى كښې كمال تركومې چه خرچ نه كړئى خپل محبوب څيزنه څه حصه. نو حضرت ابوطلحه رضی الله عنه پاسيدو اودَ حضورپاك په خدمت كښې حاضرشو عرض ئى اوكړو يارسول الله! الله تعالى په خپل كتاب كښې فرمائى چه هيڅ كله به حاصل نه كړې شئى په نيكئى كښې كمال تركومې چه خرچ نه كړئى خپل محبوب څيز نه څه حصه اوما ته په خپلو ټولو مالونوكښې بيرحاء ډير محبوب دې او دادَالله تعالىٰ په لاركښې صدقه ده اوزه دَالله تعالى نه اميد لرم چه دَدې صدقې ثواب اودَالله تعالى په نيزددې دَذخيرې، چه تاسو په كوم كاركښې لګوئى دا اولګوئى. حضرت اوفرمائيل واه واه دامال خو تلونكې دې دا مال خوتلونكې دې اوځه چه تا اووئيل ما واوريده زه دا مناسب ګنړم چه ته دا

(١) وأخرجه البخارى رحمه الله تعالى أيضًا فى كتاب الزكاة باب الزكاة على الاقارب رقم: ١٤٦١ وفى كتاب الوصايا باب إذا وقف أو أوصى لاقاربه ومن الاقارب؟ رقم: ٢٧٥٢١ وباب إذا وقف إرضًا ولم يبين الحدود فهوجائز وكذالک الصدقة رقم: ٢٧٦٩ وفى كتاب التفسير باب لن تنالوالبرحتى تنفقوا مما تحبون - إلى - قوله تعالى به عليم رقم: ٤٥٥٤ وفى كتاب الاشربة باب استعذاب الماء رقم: ٥٦١١ وأخرجه مسلم رحمه الله تعالى فى كتاب الزكاة باب فضل النفقة والصدقة على الاقربين والزوج والاولاد والوالدين ولوكانوا مشركين رقم: ٢٣١٢ – ٢٣١٣ وأخرجه أبوداؤد فى كتاب الزكاة باب فى صلة الرحم رقم:١٦٨٩ وأخرجه النسائى فى كتاب الحباس باب الاحباس كيف يكتب الحبس وذكر الاختلاف على ابن عون الخ رقم: ٣٦٠٤ وانظر تحفة الاشراف رقم: ٢٠٤. ٣١٥.

په خپلو رشته دارنو کښې تقسیم کړې. حضرت ابوطلحه رضي الله عنه عرض اوکړو چه زه هم داسې کوم یارسول الله! نوحضرت ابوطلحه رضي الله عنه هغه باغ په خپلوانو کښې او دَخپل تره په خامنوکښې تقسیم کړو.

## رجال الحدیث

① **یحیی:**- دا یحیی بن یحیی بن بکر بن عبدالرحمن بن یحیی حنظلی ابوزکریا نیسابوری رحمه الله دې. [1]

② **مالک:**- دا مشهور امام مالک رحمه الله دې. [2]

③ **اسحاق بن عبدالله:**- دا اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه رحمه الله دې. [3]

④ **انس:**- دا مشهور صحابی حضرت انس بن مالک رضي الله عنه دې. [4]

**دَ حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَ حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: انها صدقة یارسول الله حیث شئت** یعنی حضرت ابوطلحه رضي الله عنه حضورپاک دَدغه باب دَ صدقه کولو په سلسله کښې وکیل جوړ کړې وو چه چرته ئې غواړې خرچ دې کړې سره دَدې چه حضورپاک دا باغ پخپله تقسیم نه کړو بلکه هم هغه ته ئې حکم ورکړو چه دا په خپلو رشته دارانو کښې تقسیم کړه. [5] اودَدې حدیث نه دا هم معلومیږی چه وکالت بغیردَ قبولیت محقق کیږی نه لکه چه حضورپاک دَهغه خبره اوریدونه پس هغه ته اوفرمائیل **قدسمعت ماقلت فیها وأری أن تجعلها فی الاقربین.** [6]

**قوله: تابعه إسماعیل عن مالك:**- یعنی دا روایت امام مالک رحمه الله نه نقل کولوکښې اسماعیل بن ابی اویس دَ یحیی بن حنظلی رحمه الله متابعت کړې دې. [7]

**قوله: وقال روح عن مالك رابح:** یعنی روح بن عباده رحمه الله دَ امام مالک رحمه الله په ځائې دَ **رائح رابح** په معنی دَ فائده مند اونفع ورکونکې نقل کړې دې. [8]

---

[1]) کشف الباری کتاب الزکاة باب أجر المرأة إذا تصدقت الخ.

[2]) کشف الباری:۱/ ۲۹۰، ۲/ ۸۰.

[3]) کشف الباری:۳/۲۱۳.

[4]) کشف الباری:۲/ ٤.

[5]) عمدة القاری:۱۲/۲۱۵.

[6]) عمدة القاری:۱۲/۲۱۵.

[7]) إرشادالساری: ۵/۲۹۷.

[8]) إرشادالساری:۵/۲۹۷.

# ۱۶-باب: وکالة الامین فی الخزانة ونحوها

## د خزانې وغیره باره کښې امین وکیل کول

**دترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری رحمه الله دافرمائی چه د خزانې دپاره کله ته یوسړی وکیل مقررکړې نوهغه امین کیدل پکاردی. ځکه چه که امین وی نوهغه به د خیانت نه احتراز کوی او خزانه به په موقع اومحل باندې خرچ کوی اوبې موقع اوبې محل به ئې نه خرچ کوی.[1]

[حدیث ۲۱۹۴] (ر) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضي الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «الْخَازِنُ الأَمِينُ الَّذِي يُنْفِقُ - وَرُبَّمَا قَالَ الَّذِي يُعْطِي - مَا أُمِرَ بِهِ كَامِلاً مُوَفَّرًا، طَيِّبٌ نَفْسُهُ، إِلَى الَّذِي أُمِرَ بِهِ، أَحَدُ الْمُتَصَدِّقِينَ». [ر: ۱۳۷۱][2]

**ترجمه:-** (حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه امانتدار خزانچی چه څه خرچ کوی او اکثر به حضورپاك فرمائیل چه څه ورکوې د خپل مالك په حکم باندې پوره په خوشحاله زړه سره نوهغه هم صدقه کونکو کښې شریك دې.

## رجال الحدیث

① **محمدبن العلاء:-** دامحمدبن علاء همدانی کوفی ابوکریب رحمه الله دې.[3]

② **أبواسامه:-** دا ابواسامه حمادبن اسامه لیثی رحمه الله دې.[4]

③ **برید بن عبدالله:-** دا بریدبن عبدالله ابوبردة رحمه الله دې.[5]

④ **أبوبرده:-** دا ابوبرده بن ابی موسی اشعری رحمه الله دې.[6] د ده نوم عامر یا حارث دې.[7]

⑤ **أبوموسی اشعری:-** د حضرت عبدالله بن قیس ابوموسی اشعری رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[8]

---

[1]) عمدة القاری:۱۲/۴۱۵ بتفصیل.

[2]) أخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی کتاب الزکاة باب أجر الخادم إذا تصدق بامر صاحبه غیر مفسدرقم: ۱۴۳۸ وأخرجه أیضًا فی کتاب الاجارة باب استئجارالرجل الصالح رقم: ۲۲۶۰. وأخرجه أبوداؤد رحمه الله تعالی فی کتاب الزکاة باب أجرالخازن رقم: ۱۶۸۴ وأخرجه النسائی فی کتاب الزکاة باب أجرالخازن إذا تصدق باذن مولاه رقم: ۲۵۵۹ وانظر تحفة الاشراف رقم: ۹۰۳۸.

[3]) کشف الباری:۳/۴۱۳.

[4]) کشف الباری:۳/۴۱۴.

[5]) کشف الباری : ۱/ ۶۹۰، ۳/ ۴۱۷.

[6]) کشف الباری:۱/۶۹۰.

[7]) إرشاد الساری:۵/۶۹۷.

[8]) کشف الباری:۱/۶۹۰.

**دحديث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دحديث ترجمة الباب سره مطابقت ظاهردې ځکه چه امانتدار خزانچي هم هغه دې چه دځپل مالك دحكم مطابق خرچ كونكې اوور كونكې وي.[۱]

**براعت اختتام**:- حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي چه حافظ ابن حجر رحمه الله براعت اختتام ذكر نه دې كړې ليكن دَ بنده په نيز چه دَ دقت نظر نه كار واخستې نو په ابو اسامه كښې براعت اختتام طرف ته اشاره كيدې شي ځكه چه په دې كښې دَسام يعنى مرګ طرف ته اشاره ده.[۲] يا داسې هم كيدې شي چه قوله: الذي يعطى منا اخر به الخ كښې دا اشاره موجود ده چه دا دَځپل عموم په وجه ملك الموت ته هم شامل دې چه ځوك الله تعالى دَ خلقو دَ روحونو قبض كولو دَ پاره مقرر كړې دې.[۳]

بسم الله الرحمن الرحيم

# ۴۲- كتاب الزارعة

**زميندارۍ او مزارعة ابواب اوهغه روايات كوم چه په دې باره كښې واردشوي دي.**

حرث وحراثة او زرع و زراعة لغوى معنى زميندارى كولو اويوې چلولوده. او دا بالترتيب باب نصر او فتح نه مستعمل دې.[۴] لكه چه په قرآن كريم كښې دى ﴿ أَفَرَءَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ۝ ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلزَّٰرِعُونَ ۝ ﴾ (واقعه: ۶۳،۶۴) بنه ده ګورئى كوم څه چه تاسو كرئى آيا تاسو دا فصل كوئى يا مونږ يو دَفصل كونكې.

اودَ شريعت په اصطلاح كښې هى عقد على الزرع ببعض الخارج[۵] يعنى دَ پيداوار دَ څه حصې په عوض دَ كرمعامله ته مزارعت وائى. يادساتئي چه هم دغه معامله كه په باغونو يا ونوكښې اوكړې شى نوهغې ته مساقاة وئيلې شى اوكه دَ پيداوارنه علاوه په څه نقدوكښې اوكړې شى نو اجاره يا كراء الارض دې.

**دَ فقهاوُ دَاختلاف بيان**:- امام اوزاعى امام سفيان ثورى سعيدبن مسيب امام ابويوسف امام محمد بن حسن امام احمد بن حنبل داؤد ظاهرى طاؤس او ابن ابى ليلى رحمهم الله په نيز مزارعت اومساقات دواړه جائزدى.[۶] اودَدې حضراتو اصل دليل هغه روايت دې كوم چه اصحاب صحاح نقل كړې دې چه رسول الله ﷺ اهل خيبرسره په نصف پيداوار باندې دَ مزارعت معامله كړې وه.[۷] خو دَ امام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك، امام شافعى ابوثر او ليث

---

[۱] عمدة القارى:۱۲/۲۱۶وإرشاد السارى:۲۹۸/۵.
[۲] الكنز المتوارى:۱۰/۳۹۶ والابواب والتراجم ص:۱۷۱.
[۳] الكنز المتوارى:۱۰/۳۹۶ والابواب والتراجم ص:۱۷۱.
[۴] طلبة الطلبة لنسفى ص: ۳۰٤.
[۵] البحرالرائق: ۸/۱۵۹.
[۶] بداية المجتهد: ۱٤۷/۵والهداية مع نصب الراية: ٤۵۵/٤شرح ابن بطال:۶/۲۱٤.
[۷] سياتى تخريجه فى باب المزارعة بالشطر ونحوه.

وغیرهم رحمهم الله دمزارعت دعدم جواز قائل دی [۱] اودهغوی په نیزداسې کول عقلاً او نقلاً ممنوع دی

**نقلاً** - نقلاً خو په دې وجه چه په حدیث کښې د قفیزالطحان نه منع کړې شوې ده [۲] او مزارعت هم دَدغه قبیل نه دې

**عقلاً** - اوعقلاً په دې وجه چه د دې اجاره بدل مجهول دې اوترکومې پورې چه د حضورپاک ﷺ دخیبریهودو سره معامله کولو تعلق دې نو هغه دجزیه په توګه دې یا د احسان او صلح په طریق د خراج مقاسمه دې نه چه په توګه د مزارعت [۳]

لیکن صاحب هدایه رحمه الله فرمائی چه فتوی صاحبین رحمهما الله په قول باندې دې اودمزارعت طرف د خلقو احتیاج او په دې باندې دامت تعامل د وجې نه قیاس ترک کول مناسب دی لکه چه استصناع په مسئله کښې قیاس پریخودې شوې دې [۴]

**دمزارعت د صحت شرائط** - یادساتئی چه حضرات مجوزین په نیز هم دمزارعت صحت دپاره اته شرطونه دی:

① دزمکې دکرقابل کیدل ریګ منه یاداوبولاندې کیدو دوجې نه د کاشت قابل نه وی.

② عاقدین چه دعقد مزارعت اهل وی مجنون اوپاګل اوصبی لایعقل نه وی اودا شرط ددې عقد خصوصیت نه دې بلکه دهریوعقددپاره ضروری دی.

③ د مزارعت د مودې تعیین وی ځکه چه داعقد دزمکې یا عامل په منافع باندې دې اوهم موده د دې منافع دپاره معیاردې دپاره چه ددې مودې په ذریعه منافع اوپیژنی.

④ چه دتخم اچونکی تعیین شوې وی دې دپاره چه جګړه نه وی اودا معلومه شی چه معقودعلیه څه دې. منافع ارض دې یا منافع عامل که تخم دعامل وی نومطلب به داوی چه هغه به دزمکې منافع حاصلوی اوکه تخم د زمکې دمالك وی نومطلب به دا وی چه هغه به د عامل منافع حاصلوی. بهرحال د معقود علیه د تعیین دپاره دتخم اچونکی صراحت کیدل پکاردی

⑤ دکوم عاقد چه تخم نه وی دهغه حصه معلوم اومتعین وی ځکه چه هغه دخپلې حصې مستحق هم د شرط د وجې نه وی نودهغه حصه معلومیدل ضروری دی خوکه دهغه حصه معلومه نه وی نوبیا د شرط د وجې نه به استحقاق څنګه ثابت شی

⑥ په زمکه کښې د زمکې د مالك څه دخل پاتې نه شی اوهغه زمیندارته حواله کړې شی او د زمیندارد پاره په دې کښې د فصل نه هیڅ یوڅیز منع کونکې نه وی

---

[۱] بداية المجتهد: ۵/۱۷۵ والهداية مع شرحه البناية: ۱۱/۴۷۴.

[۲] قال الحافظ ابن حجر رحمه الله في الدراية في تخريج احاديث الهداية: ۲/۱۹۰ رواه الدارقطني وأبو يعلى والبيهقي رحمهم الله تعالى. وفي إسناده ضعف.

[۳] الهداية مع نصب الراية: ۴/۴۵۴ والبداية: ۵/۱۷۶.

[۴] البناية شرح الهداية للمحدث العيني رحمه الله ۱۱/۴۷۴.

⑦ پیداوارکښې د دواړو حصه کیدل اوچه صرف هم د دغه دواړو وی د بل دریم کس نه وی نوچه کم شرط دا شرط ختم کړی هغه به هم د عقد مفسد کونکې وی.

⑧ د کوم څیز فصل چه مطلوب وی هغه دې معلوم اومتعین وی یعنی چه دا معلومه وی چه په زمکه کښې به څه کرلې شی ځکه چه دلته خو پیداوار اجرت دې او د اجرت جنس معلومیدل شرط دې. بل د دې دپاره هم چه بعض څیزونه د زمکې د پاره نقصانی وی نو د زمکې والاچه په یوڅیزباندې راضی وی او د یوڅیز په کرلوباندې راضی کیږی نه.(١)

# ١-باب: فضل الزرع واغرس إذا أكل منه

وَقَوْلِهِ تَعَالَى: أَفَرَأَيْتُمْ مَا تَحْرُثُونَ. أَأَنْتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ. لَوْنَشَاءُ لَجَعَلْنَاهُ حُطَامًا. / الواقعة: ٦٣ - ٦٥ /.

فصل او د ونولګولو فضیلت کلهچه د هغې نه اوخوړلې شی او د الله تعالی فرمان ښه ده ګورئی نوچه کوم څیز تاسو کرئی آیا تاسو دغه فصل کوئی یا مونږ د دغه فصل کونکې یو.

**د ترجمة الباب مقصد:** د امام بخاری رحمه الله عادت دې چه په شروع کښې فضائل بیانوی او د هغې نه پس مسائل ذکر فرمائی نوهغه ړومبې باب قایم کړې دې. فضل الزرع والغرس یعنی زمینداری کول او ونې لګول هم د فضیلت والاعمل دې. لیکن دې سره امام صاحب رحمه الله دا هم فرمائیلی دی چه کله د دې نه خوراك اوکړې شی یعنی د زمیندارئی نه او چه کومې ونې لګولی دی د هغې نه خلق خوراك اوکړی یا مرغئی وغیره ئی اوخوری نوهغه سړی چه د فصل کرلو والا دې او د ونو لګولووالا دې د صدقه اجر اوثواب ملاویږی. او د حدیث باب نه هم د دې تائید کیږی.

علامه ابن منیرمالکی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله د دې ترجمة الباب په ذریعه دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه زمینداری کول مباح دی اوچرته چه د دې نه ممانعت واردشوې دې لاتتخذوا ضيعة فتركنوا إلى الدنيا. یعنی تاسو جائیداد او فصلونه مه جوړوئی د دې په وجه به تاسو د دنیاطرف ته مائل شئی. نو دا په مخصوص حالاتوکښې دی. کله چه یوسړې په زمیندائی او کرکیله کښې اخته شی او د جهاد او د دین د نورو ضرورتونونه غافل شی او د شریعت په مطالباتوکښې غفلت کوی نو په هغه صورت کښې منع کړې شوې ده. ګنی په زمیندارئی کښې فی نفسه هیڅ خرابی نشته.(٢)

او الله تعالی ارشاد فرمائیلې دې ﴿أَفَرَءَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ۝ ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلزَّٰرِعُونَ ۝﴾ د دې آیت مبارك نه داخبره ثابته شوه چه په کرکیله کښې هیڅ مضائقه نشته ځکه چه کرکیله کول په

---

١) البناية شرح الهداية: ١١/٤٨٢ - ٤٨٤.

٢) فتح الباري: ٥/٥الکوثر الجاری: ٥/٣٧.

شریعت کښې ګناه وه او ناوخوښه عمل وې نوالله تعالی به په مقام امتنان کښې دَدې تذکره نه فرمائیله.[1]

**دکسب دټولونه غوره طریقه:-** اوس پاتې شوه داخبره چه دکسب مختلف طریقې دی لکه تجارت زراعت صنعت وحرفت وغیره نوددې نه کومه یوه طریقه ډیره بهتراوغوره ده.

قاضی ابوالحسن ماوردی رحمه الله فرمائی چه په مکاسب کښې اصل زراعت تجارت اوصنعت اوحرفت دی او په دې کښې دَ امام شافعی رحمه الله اصول ډیر نیزدې او دټولونه غوره تجارت دې اوبیا هغه فرمائی چه زما په نیز راجح زمینداری ده اوددې علت هغه دا پیش کوی چه په دې کښې توکل زیات دې.[2] علامه نووی رحمه الله فرمائی چه دټولونه غوره زراعت، صنعت اوحرفت دې اودَ هغوی دلیل دَ حضرت مقدام رضی الله عنه روایت دې چه **ما اکل أحد طعامًا قط خیرًا من أن یاکل من عمل یده** [3] یعنی دَیوسړی دَپاره دَ دې نه بهترخوراك نشته چه هغه په خپلو لاسونومحنت اوکړی او وئی خوری او وړاندې امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې دواړو کښې بهترزراعت دې چه د دې نفع متعدی ده انسانانو اوخناورو دواړوته شامل ده.[4]

حضرات احناف فرمائی چه په مکاسب کښې دټولونه غوره جهاددې ځکه چه په مدنی ژوند کښې هم دغه په عام توګه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم دَ کسب ذریعه پاتې ده بل په دې کښې اعلاء کلمة الله تعالی دې یعنی جهاد دَ دنیاوی او اخروی منافع ته جامع دې اوددې نه پس افضلیت تجارت ته حاصل دې او بیا زراعت صنعت اوحرفت دې.[5] حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی چه جهاددَ مکاسب نه شمیرل صحیح نه دی هغه خوصرف دَ اعلاء کلمة الله تعالی دَ پاره کولې شی.[6]

[حدیث ۲۱۹۵] [7] **حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ ح وَحَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ -رضى الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا، أَوْ يَزْرَعُ زَرْعًا، فَيَأْكُلُ مِنْهُ طَيْرٌ أَوْ إِنْسَانٌ أَوْ بَهِيمَةٌ، إِلاَّ**

---

[1]) إرشادالساری:۵/۳۰۰.

[2]) لامع الدراری: ۶/۲۳۲.

[3]) أخرجه البخاری فی کتاب البیوع، باب کسب الرجل وعمله بیده رقم:۲۰۷۳.

[4]) عمدة القاری:۱۱/۲۶۵.

[5]) لامع الدراری:۶/۲۳۲وفتح الباری:۴/۳۸۴.

[6]) لامع الدراری: ۶/۲۳۷.

[7]) أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الدب باب رحمة الناس والبهائم رقم: ۶۰۱۲ وأخرجه مسلم فی کتاب المساقاة باب فضل اغرس والزرع رقم:۳۹۵۰ وأخرجه الترمذی رحمه الله تعالی فی کتاب الاحکام باب ماجاء فی فضل الغرس رقم:۱۳۸۷ انظر تحفة الاشراف:۱۴۳۱.

كَانَ لَهُ بِهِ صَدَقَةٌ». وَقَالَ لَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا أَبَانُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -[٥٦٦٦]

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دي چه كوم يومسلمان څه ونه لګوی يا زمينداری کوی بيا په هغې کښې چرته مرغۍ، انسان ځاروې خوراك کوی نو هغه ته به دَ صدقې ثواب ملاويږی

## رجال الحديث

⊙ **قتيبه بن سعيد**:- دا قتيبه بن سعيد ثقفی رحمه الله دې.[1]

⊙ **ابوعوانة**:- دا ابوعوانة الوضاع بن عبدالله اليشكری رحمه الله دې.[2]

⊙ **عبدالرحمن**:- دا عبدالرحمن بن مبارك عيشی طفاوی بصری رحمه الله دې.[3]

⊙ **قتادة**:- دا قتاده بن دعامة رحمه الله دې.[4]

⊙ **انس بن مالک**:- دا حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې.[5]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت ظاهردې.[6]

**اياكافرانوته به هم دَ ثواب فائده رسی؟**:- كه چرې دا اووئيلې شې چه په دې سلسله کښې بعض احاديثو کښې مطلق دَ رجل ذکردې يعنی مامن رجل يغرس فرسا اودغه شان ما من عبدالخ او په دې کښې دَ مسلمان قيدنشته نو په ظاهره دَ مسلمان او کافردواړو ته شامل دې.[7]

نودَدې جواب دا ورکړې شوې دې چه دا روايات مطلقه به په مقيده باندې محمول کولې شی لکه چه حديث باب اوکتب صحاح اکثر روايات په دې دلالت کوی.[8] بل په حديث کښې دَمسلم نه جنس مسلم مراد دې نومسلمانه ښځه هم په دې کښې داخل ده.[9] ياد ساتئی چه ثواب دآخرت خو صرف مسلمان سره مخصوص دې او کافردَدې حقدارنه دی. ځکه چه که څوك کافر صدقه اوکړی يابل دَ څه خيرکاراوکړی نودَهغه دَپاره په آخرت کښې څه اجر نشته او په دنيا کښې دَهغه دَ دغه نيکئی اجر اوبدله ورکولې شی.[10]

---

[1] کشف الباری:٢/١٨٩.

[2] کشف الباری:١/٤٣٤.

[3] کشف الباری:٢/٢١٨.

[4] کشف الباری:٢/٣.

[5] کشف الباری:٢/٤.

[6] عمدة القاری:١٢/٢١٨.

[7] إرشادالساری:٥/٣٠١ وعمدة القاری: ١٢/٢١٩.

[8] إرشادالساری:٥/٣٠١ وعمدة القاری: ١٢/٢١٩.

[9] إرشادالساری:٥/٣٠١.

[10] إرشادالساری:٥/٣٠١.

**دَ تعليق مقصد** - **قوله**: وَقَالَ لَنَا مُسْلِمٌ، حَدَّثَنَا أَبَانُ الخ.....دَ مسلم نه مراد ابن ابراهيم فراهيدي بصري دې او دَ ابان نه مراد ابان بن يزيد عطار دې او دلته امام بخاري رحمه الله متن نه دې ذکرکړې ځکه چه دَدې سند په ذکرکولوسره دَ امام بخاري رحمه الله مقصود دَ حضرت قتاده دَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه دَ سماع صراحت کول دی.

**دَحديث تشريح**: - علامه ابن عربي رحمه الله فرمائي چه داد الله تعالى يوډيرزيات رحم اوکرم دې چه هغه خپلو بنديګانوته داسې اعمال ورعطاکړې دی چه دَهغې ثواب دَمرګ نه پس هم جارې اوساري وی لکه چه په ژوند کښې وو. مثلاً صدقه جاريه کول يا داسې علم نورو ته خودل دَ کوم نه چه روستوهم فائده حاصله شي يا نيك اولاد چه دَهغه دَپاره دعا اوکړې يا څه ونه لګول يا فصل کرل يا دَالله تعالى په لارکښې څوکئي ورکول وغيره.[1]

علامه طيبي رحمه الله دَ محي السنة نه نقل کړې دی چه يوسړې حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه سره خواکې تيريدو اوهغه دَ غوز ونه لګوله. هغه وئيل چه تاته به دَ دغه ونې لګولوڅه فائده وی ځکه چه ته خو يوبوډا سړې ئې اودا ونه خو په دومره دومره کالوکښې ميوه ورکوی. حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه په جواب کښې اوفرمائيل ماته به دَ دې ونې دَ لګولواجر ملاويږی اونور خلق به دَدې نه خوراك کوی داڅومره ښه سودا ده.[2]

ابوالوفاء بغدادي رحمه الله ذکرکړې دی چه انوشروان (بادشاه) يوسړې سره تيريدو چه دَ زيتون ونه ئې لګوله. انوشروان هغه ته اووئيل چه داخوستاسودَ زيتون لګولوزمانه نه ده ځکه چه دا ونه خوهسې هم په ډيره موده کښې ميوه ورکوی. هغه سړی اووئيل چه زمونږ نه وړاندې خلقو ونې کرلې وې نومونږ دَهغې ميوه اوخوړله اوس مونږ هم ونې لګوو دې دَپاره چه زمونږ نه پس راتلونکی خلق دَ هغې ميوه اوخوري. انوشروان دَهغه په جواب سره ډير خوشحاله شو او وئې وئيل "زه" يعنی ته ډيره ښه خبره اوکړه اوچاته چه به هغه"زه" وئيل نوهغه ته به څلور زره درهم ورکولې شو. بيا هغه سړی اووئيل بادشاه سلامت تاسو څنګه زما په ونه لګولو اوبيادَ دې ميوه ورکولو کښې دَ وخت لګيدو دَ وجې تعجب کوې. دې خو ډير زر ميوه اوکړله. انوشروان ته داخبره نوره هم زياته خوښه شوه او هغه اووئيل "زه" بيا هغه سړی ته څلور زره درهم ورکړل. هغه سړی عرض اوکړو بادشاه سلامت هره ونه په کال کښې يوځل ميوه ورکوی او زما دې ونې خو ډير زر دوه ځل ميوه ورکړه. انوشروان اووئيل "زه" هغه ته نور دومره دراهم ورکړې شو. بيا انوشروان بادشاه دې وينا سره روان شو که دې سړی سره مونږ نور اودريدو نوزمونږ خزانې به هم دَده دَپاره کافي نه شی.[3]

---

[1]) إرشادالساري: ٣٠١/٥.

[2]) إرشادالساري:٣٠١/٥.

[3]) إرشادالساري:٣٠١/٥، ٣٠٢.

# ٢-باب: ما يحذر من عواقب الاشتغال بالة الزرع، أو مجاوزة الحد الذى أمر به

## خول چه ویرولې شوې دی د زمیندارئ په سامان کښې ډیر مشغول پاتې کیدل یا د اجازت د حد نه تجاوز کونکو انجام نه

**دترجمة الباب مقصد:** - امام بخاری رحمه الله په دې باب سره په دې روایاتو کښې تطبیق کوی چه په ظاهره متضاد معلومیږی. باب سابق کښې حضرت انس رضی الله عنه روایت کښې دا واردشوی دی چه په کرکولو کښې او باغ لګولو کښې هیڅ دحرج خبره نه ده. کوم څاروی او انسانان چه ددې نه خور هغه به د فصل کرلو والا او باغ لګولو والا دپاره صدقه جوړیږی. خو په دې باب کښې ذکرشوې دحضرت ابو امامه باهلی رضی الله عنه د روایت نه معلومیږی چه هغوی دچا په کور کښې ایوا او د زمیندارئ آلات نه څه څیز اولیدلو نوونی فرمائیل چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم نه ماواوریدلی دی چه په کوم کور کښې داڅیزونه داخل شی په هغه کورکښې به دلت داخلیږی. امام بخاری رحمه الله په دواړو روایتونوکښې تطبیق کولوسره فرمائی چه په اصل کښې په زمیندارئ کولوکښې پخپله څه عیب نشته په دې کښې عیب د خارج یعنی بهر نه داخلیږی اوهغه داسې چه سړې د حدنه تجاوز اوکړی او په دې کښې ځان دومره مشغول کړی چه دحقوق شرعیه نه غافل شی.([1])

امام صاحب رحمه الله دویم صورت د جمع کولو دا پیش کړې دې چه د زمیندارئ په آلاتوکښې د اشتغال انجام ذلت دې مطلب دادې چه د سړی په ذمه باندې سرکاری غوبنتنې لګیدلې وی څه د حکامو د طرف نه خراج یاڅوک د بل څه ټیکس اخستودپاره راځی اوڅوک په کښې څه کوی په دې وجه زراعت ناخوښه شمیرکړې شوې دې.([2])

شمس الائمه امام سرخسی رحمه الله فرمائی چه زمینداری پخپله د ذلت سبب نه جوړیږی بلکه هغه وخت د ذلت سبب جوړیږی چه کله انسان بالکل په دې کښې ورډوب پاتې شی. په داسې صورت کښې داکیږی چه دبنمن غالب راځی او خلق ذلیل اومغلوب کیږی ګنی که په دې کښې داسې ورننوتل نه وی او سړی په شرعی حقوقوکښې هم مستعد اوتکړه وی نو زمینداری بالکل خراب څیزنه دې اوترکومې چه د خراج د اداکولوتعلق دې نود خراج اداکول هیڅ د ذلت خبره نه ده. حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حضرت حسن رحمه الله او قاضی شریح رحمه الله په خراجی زمکه کښې کرکیله کړې ده اوخراج ئې اداکړې دې. که دخراج اداکول څه د ذلت خبره وه نوصحابه کرام تابعینو رضی الله عنهم به دا ولې اختیارول.([3])

---

[1]) لامع الدراری: ٦/٢٣٣ مع تفصیل.

[2]) لامع الدراری: ٦/٢٣٤.

[3]) لامع الدراری: ٦/٢٣٤.

[حدیث ۲۱۹۶] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ یُوسُفَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَالِمٍ الْحِمْصِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ الْأَلْهَانِيُّ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ، قَالَ وَرَأَى سِكَّةً وَشَيْئًا مِنْ آلَةِ الْحَرْثِ، فَقَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلی الله علیه وسلم- يَقُولُ «لَا يَدْخُلُ هَذَا بَيْتَ قَوْمٍ إِلَّا أَدْخَلَهُ اللَّهُ الذُّلَّ».

**ترجمه**- حضرت ابوامامه باهلی رضی الله عنه فرمائی چه کله هغه ایوا او د زمیندارنی څه سامان اولیدلو چه ما حضوریاک صلی الله علیه وسلم داسې ارشاد فرمانیلوسره اوریدلې چه د کوم قوم په کورکښې دا داخل شی الله تعالی به هغه ذلیل اوخوار کړی

## رجال الحدیث

◎ **عبدالله بن یوسف**:- داعبدالله بن یوسف تنیسی رحمه الله دی. (۲)

◎ **عبدالله بن سالم**:- دا عبدالله بن سالم اشعری دحاظی یحصبی حمصی رحمه الله دی. دَدوی کنیت ابویوسف دی. (۳)

**شیوخ**:- هغوی رحمه الله دَ ابراهیم بن سلیمان افطی، ابراهیم بنابی عبلة مقدسی، ازهربن عبدالله حرازی، عبدالملك بن جریج، علی بن ابی طلحة، عمر بن یزیدنصری، علاء بن عتبة یحصبی، محمد بن حمزة بن یوسف، محمدبن زیاد الهانی، محمد بن ولید زبیدی او خپل رور محمد بن سالم اشعری رحمهم الله نه روایات نقل کوی. (۴)

**تلامذه**:- بقیة بن ولید، عبدالله بن یوسف تنیسی، ابوسمر عبدالاعلی بن مسهر غسانی، ابوتاقی عبدالحمیدبن ابراهیم حمصی، عبدالحمیدبن رافع، عبدالسلام بن محمد حضرمی حمصی، ابومغیرة عبدالقدوس بن حجاج خولانی، عمرو بن حارث حمصی، هیثم بن خارجه، یحیی بن حسان تنیسی رحمهم الله دَهغوی رحمه الله نه روایات نقل کوی. (۵)

یحیی بن حسان تنیسی رحمه الله فرمائی **ما رأیت بالشام مثله** (۶) یعنی ما په شام کښې دَهغوی په شان (دَ اوچتې مرتبې) سړې نه دې لیدلې. عبدالله بن یوسف رحمه الله فرمائی چه ما په عقل او مروت کښې دَتولونه لوئی هغوی رحمه الله لیدلی دی. (۷) امام نسائی رحمه الله فرمائی **لیس به باس** (۸)

---

(۱) الحديث المذكور من أفراد البخاری كما قال صاحب الجمع بين الصحيحين: ۴۶۲/۳ رقم الحديث: ۳۰۰۱ وانظر فی جامع الاصول النوع الثامن رقم: ۹۴۶۶.

(۲) كشف الباری: ۲۸۹/۱، ۱۱۳/٤.

(۳) تهذيب الكمال: ۵٤۹/۱٤.

(۴) تهذيب الكمال: ۵٤۹/۱٤.

(۵) تهذيب الكمال: ۵٤۹/۱٤.

(۶) تهذيب الكمال: ۵۵۰/۱٤ تاريخ أبی زرعة دمشقی ص: ۴٤۶، ۷۱۷.

(۷) تهذيب الكمال: ۵۵۰/۱٤.

(۸) تهذيب الكمال: ۵۵۰/۱٤.

ابن حبان رحمه الله دهغوی تذکره په ثقات کښې کړې ده.[1] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ثقة رمی بالنصب.[2]

**وفات**:- ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه دهغوی انتقال ۱۷۹هجری کښې شوې.[3]

◎ **محمدبن زیاد**:- دامحمدبن زیاد الهانی، ابوسفیان حمصی تذکره تیره شوه.[4]

◎ **حضرت ابوامامه باهلی** رضی الله عنه:- دا مشهور صحابی رسول ﷺ صدی بن عجلان بن وهب، ویقال: ابن عمرودې. ددوی کنیت ابوامامه دې. دهغوی تعلق باهله قبیلې سره دې چه ښومعن وسعدی ابنی مالك بن اعصر بن سعد بن قیس عیلان بن مضر دی.[5]

هغوی د نبی کریم ﷺ او عبادة بن صامت، عثمان بن عفان، علی بن ابی طالب، عمار بن یاسر، عمر بن خطاب، عمرو بن عبسة، معاذ بن جبل، ابوالدرداء اوابوعبیدة بن الجراح رضی الله عنهم نه روایات نقل کوی.[6]

**تلامذه**:- ازهربن سعیدحرازی، اسدبن ودعة، ایوب بن سلیمان شامی، حاتم بن حریث طائی، حسان بن عطیه شامی (ولم یسمع منه)[7] حصین بن اسود هلالی، خالدبن معدان، راشدبن سعد مقرائی، رجاء بن حیوة کندی، زید بن ارطاة فزاری، سالم بن ابی جعد، سلیم بن عامر خبائری، سلیمان بن حبیب محاربی، سیار شامی، مولی آل معاویه بنابی سفیان، شدادابوعماردمشقی، شرحبیل بن مسلم خولانی، شریح بن عبدالله حضرزی، شهر بن حوشب، صفوان طائی اصم، ضمرة بن حبیب بن صهیب زبیدی، عبدالله بن یزید بن آدم دمشقی، عبدالاعلی بن هلال سلمی، عبدالرحمن بن سابط جمحی مکی، عبدالرحمن بن میسرة حضرمی، عبدالواحد بن قیس، عبیدالله بن بسر حمصی، عمرو بنعبدالله حضرمی، غیلان بن مغشر، فضال بن جبیر، ویقال: ابن الزبیر، قاسم ابوعبدالرحمن مولی بن امیه، قحافة بن ربیعة، کهیل بن حرملة، لقمان بن عامر، محمدبن زیاد الهانی، محدبن سعد بن زرارة مدنی، مکحول شامی، ابوطلحه نعیم بن زیاد، هیثم بن یزد، ولید بنعبدالرحمن جرشی، یحیی بن ابی کثیر مرسل، یزیدبن حمیر، یزیدبن شریح حضرمی، ابوادریس خولانی، ابوحفص دمشقی، ابوسلام اسود، ابوصالح اشعری ویقال انصاری، ابوطیبة کلاعی، ابوعامرالهانی، ابوالعلاء شامی، ابوغالب راسبی او ابویمان هوزنی رحمهم الله تعالی

---

[1] الثقات لابن حبان: ۳۶/۷ تهذیب الکمال: ۵۵۱/۱۴.
[2] تقریب التهذیب: ۳۹۵/۱.
[3] تهذیب الکمال: ۵۵۱/۱۴.
[4] کشف الباری کتاب الزکاة باب قوالله تعالی ﴿لَا یَسْئَلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا﴾ الخ.
[5] تهذیب الکمال: ۱۵۸/۱۳ التاریخ الکبیر: ۳۲۶/۴.
[6] تهذیب الکمال: ۱۵۹/۱۴.
[7] تهذیب الکمال: ۱۵۹/۱۳.

دَهغوی رضی الله عنه نه روايات نقل کوی (۱)

هم دَ سليم بن عامر رحمه الله نه روايت دې چه يوسړي حضرت ابوامامه رضی الله عنه له راغلو او وئې وئيل اې ابوامامه! ما په خوب کښې اوليدل چه کله هم ته داخليږې نو اوځې پاسې کينې نو فرښتې په تاسو باندې رحمتونه راليږي. حضرت ابوامامه رضی الله عنه اوفرمائيل اې الله ته زمونږ بخښنه اوکړې او اې روره ته مونږ په خپل حال باندې پرېږده او که ته غواړې نو فرښتې به په تا باندې هم رحمتونه راؤليږي اوبيائې دَ قرآن کريم دا آيت تلاوت کړو ﴿ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا ۝ وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ۝ هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ وَمَلَائِكَتُهُ لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ۚ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا ۝ ﴾الاية (۲) يعنی اې ايمان والويادوئی الله تعالی په ډېرويادولوسره پاکی بيانوئی سحر اوماښام هم دَهغه ذوك چه رحمت راليږي په تاسو باندې اودَهغه فرښتې الخ

محمدبن زيات الهانی رحمه الله فرمائی چه ما دَ حضرت ابوامامه رضی الله عنه لاس نيولې دَهغه کورته روان وو نوهغه به هريو مسلمان که هغه به لوئی وو که وړوکې سلام کولوسره به تيريدو اوچه کله دَهغه کورراغلو نوهغه ارشاد اوفرمائيلو اې وراره حضورپاك مونږ ته دَ سلام خورولو حکم راکړې دې. (۳)

هم ددې محمدبن زياد رحمه الله نه روايت دې چه ما اوکتل حضرت ابوامامه رضی الله عنه په جمات کښې يوسړی له لاړو هغه سجده کولو کښې ژړا کوله اودَالله تعالی نه ئی دعاکوله. حضرت ابوامامه رضی الله عنه هغه سړی ته اووئيل انت انت لوکان هذا في بيتك يعنی ته خو هم ته ئی (يعنی ستا لوئی شان دې) که چرې تا دا عمل په خپل کورکښې کولو. (۴)

**وفات:-** حضرت حسن رحمه الله او نصربن مغيره رحمه الله فرمائې چه دَ شام په علاقه کښې دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې حضرت ابوامامه رضی الله عنه دَ ټولو نه په آخره کښې انتقال شوې. (۵) اسماعيل بن عياش رحمه الله او ابواليمان رحمه الله فرمائی چه دَهغوی انتقال ۸۱هجری کښې په دنوه نومې کلی کښې شوې چه دَ حمص نه لس ميله فاصله باندې واقع دې. (۶) خو ابوالحسن مدائنی، يحيی بن بکير، عمرو بن علی، خليفه بن خياط، ابوعبيده قاسم بن سلام وغيره رحمهم الله فرمائی چه دَ هغوی رضی الله عنه انتقال ۸۶هجری کښې شوې. (۷)

**حل لغات:-** سكة: دَ يوې سسپار. (۸)

---

(۱) تهذيب الکمال: ۱۵۹/۱۳، ۱۶۰.

(۲) الاحزاب: ۴۱ – ۴۳.

(۳) تهذيب الکمال: ۱۶۱/۱۳.

(۴) تهذيب الکمال:۱۶۲/۱۳.

(۵) تهذيب الکمال: ۱۶۲/۱۳.

(۶) تهذيب الکمال:۱۳ /۱۶۲ – ۱۶۳ تاريخ ابی زرعة دمشقی ص:۲۳۸، ۲۹۲.

(۷) تهذيب الکمال:۱۶۳/۱۳.

(۸) معجم الصحاح ص: ۵۰۲.

**ترجمة الباب سره مطابقت:**- علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله لایدخل هذا بیت قوم إلا أدخله الذل سره دې چه کله په یوې او پټی وغیره کښې (زیات) مشغول کیدو په نتیجه کښې ذلت اوخواری ده نوسړی له پکاردی چه هغه دې په دې ځیزونو کښې (زیات) ځان غورزولونه ډډه اوکړی. [1]

**قوله:** قال محمد اسم أبی أمامة صدی بن عجلان:- دلته د محمد نه مراد. محمد بن زیات دې چه د حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه روایت نقل کوی [2] او د مستملی په نسخه کښې دی وقال ابوعبدالله - هو البخاري نفسه خو په بله یوه نسخه کښې دا عبارت موجودنه دې [3]

# ۳- باب: اقتناء الکلب للحرث

## دپټی دحفاظت دپاره سپی ساتل

**دترجمة الباب مقصد:**- امام بخاری رحمه الله فرمائی چه د فصل دحفاظت دپاره سپی ساتل جائزدی. په حقیقت کښې هغه دا خبره ثابتول غواړی چه زمینداری کول جائزدی ځکه چه سپی ساتل چه یوممنوع ځیزدې شریعت مطهره د دې اجازت زمیندار ته ورکړې دې نودې نه معلومه شوه چه زمینداری کول هم په درجه اولی جائز اوې صحیح ده. [4]

**د علماؤ داختلاف بیان:**- په احادیث مبارکه کښې د فصل د حفاظت، ښکار او دغه شان د څاروو دحفاظت دپاره هم د سپی ساتلو ذکردې او په دې کښې د چاهم اختلاف نشته حنفیه شوافع مالکیه اوحنابله ټول د جواز قائل دی. [5] البته د کوردحفاظت دپاره د سپی ساتلو څه حکم دې د شوافع په نیز په دې کښې دوه وجې دی یوه اصح الوجهین د جواز ده ځکه چه کله د زمیندارئی او څناورو د حفاظت دپاره د سپی ساتلو اجازت دې اومقصود ددې د مال حفاظت دې نو د کورونو حفاظت هم د مال حفاظت دې په دې کښې به هم اجازت وی. [6] او حنابله دعدم جواز قائل دی. [7] امام مالك رحمه الله فرمائی چه زما داخبره خوښه نه ده چه دحفاظت دپاره سپی اوساتلې شی.

[حدیث ۲۱۹۷] [8] حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي

---

[1] عمدة القاری:۲۲۱/۱۲.
[2] عمدة القاری:۲۲۲/۱۲ وأرشادالساری:۳۰۳/۵.
[3] عمدة القاری:۲۲۲/۱۲ وأرشادالساری:۳۰۳/۵.
[4] فتح الباری:۸/۵.
[5] المغنی لابن قدامة :۹۲۱/۱.
[6] المغنی لابن قدامة مقدسی :۹۲۱/۱.
[7] المغنی لابن قدامة مقدسی:۹۲۱/۱.
[8] أخرجه البخاری أیضاً فی کتاب بدء الخلق باب إذا وقع الذباب فی شراب احدکم الخ رقم:۳۱٤٦ ومسلم فی صحیحه فی کتاب المساقاة باب الامر بقتل الکلاب وبیان نسخه وبیان تحریم اقتضائها إلا لصید رقم:۱۵۷۵ والنسائی فی سننه فی کتاب الصید والذبائح باب الرخصة فی إمساك الکلب للحرث رقم: ۳٤۰۰ واخرجه الترمذی فی الاحکام والفوائد. باب من إمسک کلبا ما ینقص من أجره رقم:۱٤۹۰.

سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «مَنْ أَمْسَكَ كَلْبًا فَإِنَّهُ يَنْقُصُ كُلَّ يَوْمٍ مِنْ عَمَلِهِ قِيرَاطٌ، إِلاَّ كَلْبَ حَرْثٍ أَوْ مَاشِيَةٍ».

**ترجمه**:- حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه حضورپاك ارشاد فرمائيلي دي چاچه سپي اوساتلو دهغه د نيكواعمالو ثواب روزانه يو قيراط كميږي. البته فصل يا رمې د حفاظت دپاره سپي ساتلې شي

## رجال الحديث

① **معاذبن فضالة**:- دا معاذ بن فضاله ابوزيد بصرى رحمه الله دي.[1]

② **هشام**:- داهشام بن ابى عبدالله دستوائى رحمه الله دي.[2]

③ **يحيىٰ بن ابى كثير**:- دا يحيىٰ بن ابى كثيرطائى رحمه الله دي.[3]

④ **ابوسلمه**:- داابوسلمه بن عبدالترحمن بن عوف رحمه الله دي.[4]

⑤ **ابوهريره**:- دامشهورصحابى رسول ﷺ حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي.[5]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دحديث ترجمة الباب سره مناسبت **قوله: إلا كلب حرث** نه ظاهردي.

قَالَ ابْنُ سِيرِينَ وَأَبُو صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «إِلاَّ كَلْبَ غَنَمٍ أَوْ حَرْثٍ أَوْ صَيْدٍ». وَقَالَ أَبُو حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ مَاشِيَةٍ». [٣١٤۶]

يعنى ابن سيرين رحمه الله او ابوصالح رحمه الله دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه اوهغوى د رسول الله ﷺ نه روايت كړي دي چه مګر د چيلو يادَ فصل يا د ښكاردپاره سپي ساتلې شى او ابوحازم رحمه الله، ابوهريره رضي الله عنه نه اوهغه د حضورپاك نه داسې نقل كوى چه مګرد ښكار يا څاروودپاره سپي.

**دتعليقاتو تفصيل**:- تركومې چه دابن سيرين رحمه الله د روايت تعلق دي نوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه **أما رواية ابن سيرين فلم أقف عليها بعد التتبع الطويل**.[6] يعنى زه د ډير لټون اوتحقيق نه پس هم په دې باندې خبر نه شوم. اود ابوصالح روايت ابوالشيخ عبدالله بن محمد اصبهانى په خپل كتاب الترغيب كښې **أعمش عن أبي صالح** او **سهيل بن أبي صالح عن أبيه عن أبي هريرة** په طرق

---

[1] كشف البارى:كتاب الوضوء باب النهى من الاتنجاء باليمين.

[2] كشف البارى:٢/٤٥۶.

[3] كشف البارى:٤/٢۶٧.

[4] كشف البارى:٢/٣٢٣.

[5] كشف البارى:١/۶٥٩.

[6] فتح البارى:٥/٩.

سره موصولاً نقل كړې دي ليكن دَ سهيل په روايت كښې أوحرث نشته.(١)
اودَ ابوحازم روايت هم ابوالشيخ زيد بن أبي أنيسه عن عدى بن ثابت عن أبي حازم په طريق سره موصولاً ذكر كړې دي.(٢)

**دَ يوقيرط اودوو قيراطو والا روايات كښې تطبيق:-** په حديث باب كښې په نيكوكښې دَ يوقيراط دَكمى ذكردې او بعض رواياتوكښې واردشوى دى فانه ينقص من أجره كل يوم قيراطان.(٣) يعنى دَهغه دَ اعمال نامې نه به دوه قيراط نيكيانې روزانه كمولې شى

**اشكال:-** كه چرې اووئيلې شى چه په دې دواړو روايتونوكښې دَ تطبيق څه صورت دې نودَدې مختلف جوابونه وركړې شوى دى: ① دَ مدينې منورې دَ فضيلت دَ وجې نه هلته دوه قيراط كميږى او په نورو خايونوكښې يو.(٤) ② دا په دوه قسمه سپوباندې محمول دى چه په دوى كښې كوم تكليف وركولوپه اعتبارسره زيات سخت دى دَهغې په ساتلوسره په ثواب كښې زيات كمې كولې شى يعنى كه كلب عقور وى نو دوه قيراط به كميږى گنى يو.(٥) ③ دوه قيراط دَ ښارونوپه اعتبارسره دى او يوقيراط دَ كلو په اعتبارسره.(٦)
④ دا دَ دوو مختلفو زمانو په اعتبارسره دى چه اول ئى دَ يوقيراط ثواب دكمى باره كښې ارشاد فرمائيلې اوبيا تغليظًا او تشديداً دوه قيراط ثواب دَ كمى ارشاد فرمائيلې دې او بعضو ددې عكس وئيلې دې.(٧)

**دويم اشكال اودهغې جواب:-** دَ سپى ساتلو په عمل سره چه په اجر كښې كوم كمې كيږى دَهغې په مطلب كښې اختلاف دې چه دا په حقيقت باندې محمول دى كه دا كنايه ده. بعض حضرات خووائى چه واقعةً په عمل كښې كمې كولې شى اوبعض حضرات فرمائى چه دا دَعدم توفيقِ عمل نه كنايه ده اوبعض حضرات داهم فرمائى چه دَ هغه گناه نه كنايه ده چه دَ سپى ساتلودَ وجې نه هغه ساتونكى ته لاحق كيږى.(٨)

**په سپى ساتلوسره په اجركښې دَكمى سبب: يوبل سوال:-** دلته دا سوال پيداكيږى كه حقيقتاً په دې سره دَعمل په اجر كښې كمې او نقصان مراد دې نودَ سپى ساتلودَ وجې نه دانقصان

---

(١) فتح البارى:٥/٩تغليق التعليق: ٢٩٩/٣.
(٢) عمدة القارى:٢٢٤/١٢ تغليق التعليق: ٢٩٩/٣.
(٣) صحيح بخارى كتاب الذبائح والصيد باب من اقتنى كلباليس بكلب صيد أو ماشية الخ رقم:٥١٦٤ سنن النسائى كتاب الصيد والذبائح باب الرخصة فى إمساك الكلب للماشية رقم:٤٢٨٤ جامع الترمذى الاحكام والفوائد باب من أمسك كلبا ما ينقص من أجره رقم:١٤٩٠.
(٤) فتح البارى:٥/٢.
(٥) عمدة القارى:٢٢٣/١٢.
(٦) عمدة القارى:٢٢٣/١٢.
(٧) عمدة القارى:٢٢٣/١٢.
(٨) فتح البارى:١٠/٥.

اوکمې ولې کیږی اوکه چرې مجازی معنی مراد دې نوسوال به داکیږی چه د سپی ساتلود وجې نه دعمل توفیق نه ملاویدلوڅه وجه ده؟

علماء کرامو دخپل خپل فهم او دانش مطابق ددې جوابات ارشاد فرمائیلی دی څکه چه حقیقی وجه هم الله تعالی ته معلومه ده: ① بعض حضرات وائی چه په اصل کښې د سپی ساتلو د وجې نه په کورکښې فرښتې نه راځی او برکت ختمیږی په دې وجه اووئیلې شو چه په اجرکښې کمې واقع کیږی یادا چه ددې وجې نه دعمل توفیق نه ملاویږی.(۱) ② بعض حضراتو وئیلی دی په اصل کښې سپې تیریدونکی خلق خوری غاپی په دې وجه داسې کیږی.(۲) ③ بعض حضراتو دا وئیلی دی چه هغه پلیتې خوری نوکیدې شی چه چرته په لوښی کښې خوله ورکړی او لوښې ناپاك شی اوددې په وجه د سړی عبادات متاثرشی اوهغه ته پته هم اونه لګی.(۳) ④ بعض حضرات فرمائی چه دا په دې وجه دی چه په دې کښې بعض سپی شیطانان وی.(۴)

**دا یویا دوه قیراط دکوم یوعمل نه کمیږی؟**:- ددې نه پس بیا دا سوال پیداکیږی چه دا یو یادوه قیراط کوم یو عمل کښې کمیږی. د اعمال ماضیه نه که د اعمال مستقبله نه. نوددې په جواب کښې بعض حضرات فرمائی چه د مستقبل د اعمالونه داکمې کیږی او بعض وائی یوقیراط دماضی نه او یود مستقبل نه کمولې شی.(۵)

**د قیراط مقدار اود الله تعالی وفوررحمت**:- یوه خبره داده چه په دې روایتونوکښې د یویا دوو قیراطود اجر او ثواب د کمیدلو ذکردې اود جنازې په روایت کښې تیرشوی دی چه څوك د جنازې اتباع کوی او جنازه هم کوی هغه ته دوه قیراط ثواب ملاویږی اوهلته د قیراط تفصیل داحد دغربرابر کړې شوې وو نوآیا دلته هم هغه مقدار مراد دې؟

بعض حضرات فرمائې چه هم هغه د جنازې دباب والا قیراط مراد دې.(۶) اونور حضرات فرمائی چه هلته خود قیراط نه مراد جبل احد اخستې شوې دې څکه چه هغه د من باب الفضل دې اودلته چونکه صورت حال د فضیلت نه دې بلکه دا من باب العقاب دې په دې وجه به دلته د قیراط نه مراد جبل احد نه وی بلکه هم هغه قیراط به مراد وی کوم چه د نصف دانق وی دالله رب العزت کرم اوعنایات چه کله د ثواب او اجر ورکولوپه صورت کښې بنکاره کیږی نوبیاهلته زیاتوالې او اضافه کیږی اوکله چه سزا ورکوی اود عتاب صورت وی نوبیا هلته زیاتې نه کیږی.(۷) ﴿ مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ﴾(۸) یعنی چه څوك راوړی یوه نیکی

---

(۱) إرشادالساري:۵/۳۰٤.
(۲) إرشادالساري:۵/۳۰٤.
(۳) إرشادالساري:۵/۳۰٤.
(۴) إرشادالساري:۵/۳۰٤.
(۵) عمدة القاري:۱۲/۲۲۳ وفتح الباري:۵/۱۰.
(۶) فتح الباري:۵/۱۰.
(۷) فتح الباري:۵/۱۰.
(۸) الانعام:۱۶۰.

نویوه نیکی خودهغه دپاره لس چنده ده او څوک چه راوړی یوه بدی نو سزا به خوری دهغې برابر او په هغوی به ظلم نه کیږی. د دې آیت په تفسیرکښې حضرت عثمانی رحمه الله فرمائی چه دلته دهریونیك اوبد عمل مجازاتو عام قانون اوخودلې شو چه د نیکئی بدله کم نه کم لس چنده او د بدئی د زیات نه زیات دهغې برابر یعنی چاچه یوه نیکی اوکړله نو کم نه کم داسې د لسو نیکو ثواب به ورته ملاویږی اود زیات حد نشته.﴿وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ او څوک چه د یوې بدئی مرتکب شو نو هم هغه شان د یوې بدئی چه څومره سزا مقررده دهغې نه به زیاتیږی نه. که کمې اوکړی یائی بالکل معاف کړی دا اختیاردې نو بیا چه چرته د وفور رحمت دا حالت وی هلته د ظلم څه امکان دی.(۱)

[حديث ۲۱۹۸](۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ خُصَيْفَةَ أَنَّ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ سُفْيَانَ بْنَ أَبِي زُهَيْرٍ - رَجُلاً مِنْ أَزْدِ شَنُوءَةَ - وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا لاَ يُغْنِي عَنْهُ زَرْعًا وَلاَ ضَرْعًا، نَقَصَ كُلَّ يَوْمٍ مِنْ عَمَلِهِ قِيرَاطٌ». قُلْتُ أَنْتَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ إِي وَرَبِّ هَذَا الْمَسْجِدِ. [۳۱۴۷]

**ترجمه**:- حضرت سفیان بن ابی زهیر رضي الله عنه فرمائی ماد رسول الله ﷺ نه اوریدلی حضورپاك فرمائیل چه څوك (بې ضرورته) سپې اوساتی نه د پټی دکاردپاره وی اونه د چیلو دحفاظت دپاره وی نودهغه دعمل ثواب به هره ورځ یوقیراط کمیږی. صائب رحمه الله اووئیل چه ما د سفیان رضي الله عنه نه تپوس اوکړو آیا تا دا تا په خپله د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی هغه اووئیل او ددې جمات په رب قسم.

## رجال الحديث

① **عبدالله بن یوسف**:- دا عبدالله بن یوسف تنیسی رحمه الله دې.(۳)

② **امام مالک**:- دا امام مالك بن انس رحمه الله دې.(۴)

③ **یزید**:- دا یزید بن عبدالله بنخصیفه رحمه الله دې.(۵)

(۱) تفسیرعثمانی ص:۱۹۹.

(۲) أخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی کتاب بدء الخلق باب إذا وقع الذباب فی شراب أحدکم فلیغمسه الخ:رقم: ۳۳۲۵ وأخرجه مسلم فی کتاب المساقاة باب الامر یقتل الکلاب وبیان نسخه وبیان تحریم اقتنائها إلا الصیدأو ماشیة ونحو ذلک رقم: ۴۰۱۲، ۴۰۱۳ وأخرجه النسائی فی کتاب الصید والذبائح باب الرخصة فی إمساک الکلب للماشیة رقم:۴۲۹۶ وأخرجه ابن ماجه فی کتاب الصید باب النهی عن اقتناء الکلب إلا کلب أو حرث أو ماشیة: ۳۲۰۶ تحفة الاشراف: ۴۴۷۶.

(۳) کشف الباری:۱/۲۸۹، ۴/۱۱۳.

(۴) کشف الباری:۱/۲۹۰، ۲/۸۰.

(۵) کشف الباری کتاب الصلاة باب رفع الصوت فی المسجد.

⑤ **سائب** - دا سائب بن یزید کندی رحمه الله دي (١)
⑥ **سفیان** - دا سفیان بن ابی زهیر رضي الله عنه دي (٢)

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت**: - دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: لایغنی عنه زرعًا** الخ سره ظاهر دي (٣)

# ۴- باب: استعمال البقر للحراثة

## دَ زمیندارئی دپاره دَ غوا غوئی نه کار اخستل

**دَترجمة الباب مقصد**: - امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دَ بقر اصل وضع دَحراثت دَپاره دي لهذا دا په کرکبنې استعمالول پکاردی. په روایت کښې دِي چه یوسړي په غوا باندې سور روان وو. غوا دَهغه طرف ته متوجې شوه او وئې وئیل زه څه دَ سورلئی دپاره خو نه یم پیدا زه خو دَ کر دَپاره پیداکړې شوې یم نو اصل وضع دَ غوا سوریدل نه دی بلکه حراثت دي په خلاف دَ اس چه اصل مقصدئی سوریدل دی او هغه دحراثت دَپاره نه دي پیداکړې شوې. (۴)
اوس پاتې شوه داخبره چه کوم څناورد حراثت دَپاره پیداکړې شوي وی هغه په بل کارکښې استعمالول صحیح دی که نه؟ نو په درمختارکښې دی چه په غوئی باندې سوریدل جائزدی. بل حدیث باب په دوو خبروباندې دلالت کوی. ① په غوئی باندې سوریدل جائزکیدل، ځکه چه حضوپاك ﷺ په راکب باندې څه نکیرنه دي فرمائیلې ② دَ غوئی اصل وضع دَحراثت دَپاره دي. (۵) یعنې غوا چه څه اووئیل انما خلقت للحراثة نودَدې مطلب دادې چه دَدې لویه فائده داده چه دا دکردَپاره استعمال کړې شي.

[حدیث ۲۱۹۹] (۶) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « بَيْنَمَا رَجُلٌ رَاكِبٌ

---

(١) کشف الباری کتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس الخ.
(٢) کشف الباری کتاب الفضائل المدینة باب من رغب عن المدینة.
(٣) عمدة القاری:۱۲/۲۲۴.
(٤) لامع الدراری:۶/۲۳۴.
(٥) لامع الدراری:۶/۲۳۴.
(٦) أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب فضائل الصحابة باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم: لوکنت متخذاً خلیلاً رقم: ۳۴۶۳ وأخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله عنهم باب من فضائل أبی بکر رضی الله تعالی عنه رقم:۲۳۸۸وأخرجه ابن حبان فی صحیحه:۱۳/۴۰۵ فی باب المعجزات رقم:۶۴۸۶ وأخرجه الترمذی رحمه الله تعالی فی سننه بعد باب فی مناقب ابی بکرالصدیق رضی الله تعالی عنه.باب رقم: ۳۶۷۶ وأخرجه الامام أحمد رحمه الله تعالی فی مسنده: ۲/۳۸۲ فی مسند أبی هریرة رضی الله تعالی عنه رقم:۸۹۵۰.

عَلَى بَقَرَةٍ اِلْتَفَتَتْ إِلَيْهِ. فَقَالَتْ لَمْ أُخْلَقْ لِهَذَا، خُلِقْتُ لِلْحِرَاثَةِ، قَالَ آمَنْتُ بِهِ أَنَا وَأَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ، وَأَخَذَ الذِّئْبُ شَاةً فَتَبِعَهَا الرَّاعِي، فَقَالَ الذِّئْبُ مَنْ لَهَا يَوْمَ السَّبُعِ، يَوْمَ لَا رَاعِيَ لَهَا غَيْرِي قَالَ آمَنْتُ بِهِ أَنَا وَأَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ» قَالَ أَبُوسَلَمَةَ مَا هُمَا يَوْمَئِذٍ فِي الْقَوْمِ[۳۲۸۴، ۳۲۲۳، ۳۴۶۳، ۳۴۸۷]

**ترجمه:-** «دَحضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دي چه» نبي کريم ﷺ فرمائيلي يوسړي په غوئي سور وونو غوئي ورته مخ راواړولو وئي وئيل زه ددې دپاره نه يم پيداکړې شوي«يعني دَ سورلئي دپاره» زه خودَ زميندارئي دپاره پيداکړې شوې يم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ما په دې ايمان راوړو او ابوبکر اوعمر ﷺ هم په دې ايمان راوړو.

او يوشرمخ يو چيلئي اونيوله نو ګډپه ورپسې شو نو شرمخ هغه ته اووئيل «چه نن خوته دا بچ کوې» په کومه ورځ «چه مدينه اورانه شي» شرمخان او ماتونکي خناور به پاتې شي په هغه ورځ به څوك زما نه سوا دَ چيلوپتولوولاوي. حضورپاك اوفرمائيل ما په دې ايمان راوړو او ابوبکر اوعمر ﷺ هم په دې ايمان راوړو. حضرت ابوسلمه ﷺ وائي چه حال دادې هغه دواړه حضرات په هغه ورځ په مجلس کښې هم موجودنه وو.

## رجال الحديث

① **محمدبن بشار:-** دا محمدبن بشار عبدي بصري بندار ﷺ دې.[1]

②**غندر:-** دا غندرمحمد بن جعفر بصري ﷺ دې.[2]

③**شعبه:-** دا شعبة بن الحجاج ﷺ دې.[3]

④**سعدبن ابراهيم:-** دا سعدبن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف زهري ﷺ دې.[4]

⑤**ابوسلمة:-** دا ابوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف زهري ﷺ دې.[5]

⑥**ابوهريرة:-** دا مشهور صحابي رسول ﷺ حضرت ابوهريره ﷺ دې.[6]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: خلقت للحراثة سره ښکاره دې.[7]

**دَ حضرات شيخين ﷺ فضيلت اوتعلق:-** قوله امنت به انا وأبوبکر وعمر: اوس دلته سوال پيداکيږي چه کله حضرت ابوبکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ موجودنه وو نورسول الله ﷺ دا جمله ولې ارشاد اوفرمائيله. بعض شراح کرام فرمائي چه دَهغوي په قوت ايمان او کمال

---

[1]) کشف الباري: ۲۵۸/۳.

[2]) کشف الباري: ۲۵۰/۲.

[3]) کشف الباري: ۶۷۸/۱.

[4]) کشف الباري کتاب الوضوء باب الرجل يوضئ صاحبه.

[5]) کشف الباري: ۳۲۳/۲.

[6]) کشف الباري: ۶۵۹/۱.

[7]) عمدة القاري: ۲۲۶/۱۲.

ایمان باندې اعتماد کولو سره حضورپاک اوفرمائیل چه زه د کومې خبرې تصدیق کوم یقینا به هغه حضرات هم دهغې تصدیق کونکی وی.[1]

حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی په اصل کښې دحضرات شیخین رضی الله عنهما تگ راتگ او یوځائی کیدل حضورپاک سره دومره زیات وو چه د رسول الله ﷺ په ژبه مبارکه باندې دهغوی حضراتو نومو ورختلې وو اوبې اختیاره د حضورپاک دخلې مبارکې نه دلته دحضرت ابوبکر اوحضرت عمر رضی الله عنهما نوم اووتلو.[2]

**قوله: من لها یوم السبع الخ:-** علامه ابن جوزی رحمه الله فرمائی چه اکثرمحدثینو السبع د سین فتحه او باء ضمه سره ضبط کړې دې.[3] او مطلب دادې چه یو زمانه به داسې راځی چه ددې چیلو د پتیولووالا به زمانه بغیر بل څوك نه وی. اوهم زه به دوی ته دتولونه زیات نیزدې یم بیابه ئی زمانه څوك واخستې شی.

علامه قرطبی رحمه الله فرمائی چه ابن جوزی رحمه الله دحضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع حدیث طرف ته اشاره کول غواړی. کوم چه ابواب فضائل مدینه باب من رغب عن المدینة کښې امام بخاری رحمه الله نقل کړې دې. **تترکون المدینة علی خیر ما کانت لایغساها إلا العوافی - یرید عوافی السباع والطیر - الخ** یعنی حضورپاک اوفرمائیل چه تاسو به مدینه منوره په ښه حال کښې پرېږدئی (بیا به داسې ورانه شی) چه هلته به وحشی ځناور شلونکی او ځیرونکی اوسیږی الخ.[4]

قاضی ابوبکر بن العربی رحمه الله فرمائی چه د سین فتحه او باء ضمه سره تصحیف دې او صحیح د سین فتحه او باء جزم سره دې. او السبع وائی مهمل پریخودو ته اومطلب دادې چه کله دفتنود وجې خلق دا ځناور مهمل پرېږدی نو هغه وخت به څوك هم ددوی خیال ساتونکی نه وی او هم زه به متصرف یم اوچه څه غواړم کوم به.[5]

## ۵: باب: إذا قال: اکفنی مؤونة النخل أوغیره، وتشرکنی فی الثمر

**کله چه (یوباغ والا) چاته اووائی چه ته زما دکهجورو د ونو وغیره خیال ساته اوته به ماسره په میوو کښې شریك ئې**

**دترجمة الباب مقصد:-** کله چه یوسړی چاته دا اووائی چه ته زماد کهجورو د ونوخیال اوساتنه کوه اود نورو څیزونو خیال هم ساته یعنی انگور یا نور باغونه وغیره زه به تا په میووکښې شریك کړم. امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دې کښې هیڅ بدیت نشته.[6]

---

[1] الکوثر الجاری:۵/۴۰. إرشادالساری:۵/۳۰۸.

[2] لامع الدراری: ۶/۲۳۵.

[3] عمدة القاری:۱۲/۲۲۶.

[4] عمدة القاری: ۱۲/۲۲۶.

[5] عمدة القاری:۱۲/۲۲۶.

[6] عمدة القاری:۱۲/۲۲۷.

اوس پاتې شوه داخبره چه دَدې ترجمة الباب مقصودڅه دې؟ نوحضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی په اصل کښې امام بخاری رحمه الله اول دا ثابت کړې وو چه مزارعت جائزدې بلکه په بعض صورتونو کښې هغه دَ فضیلت څیز جوړیږی. مثلاً که دَدې نه څناورو او مرغووغیره ته فائده اورسی او دَدې نه پس نې دا فرمائیلی وو دَدې چه دا کوم مذمت شوې دې هغه په مخصوص حالاتو کښې کړې شوې دې. بیا دَ دې نه پس امام بخاری رحمه الله دا غوخودل چه دَ پټې دَ حفاظت دَپاره سپې ساتلې شی. دَهغې نه پس نې اوفرمائیل چه غوا وغیره هم په دې کښې استعمالولې شی چه هغه مخلوق للحراثه دی. اوس ترقی کولوسره وائی چه سړې هم دَ زمیندارئی دَپاره استعمالولې شی.(۱)

حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی چه دَدې نه علاوه داهم وئیلی شی چه امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه دَ مزارعت دَپاره څه خاص صیغه ضروری نه ده که چرته داسې لفظ اووئیلې شی مثلاً داچه اکفنی امؤونة النخل وتشرکنی فی الثمر نوپه دې سره به هم دَ مزارعت عقد اوشی.(۲) دَدې نه پس دا اوګڼړئی چه دَدې ترجمې تعلق دَمساقاة سره نه دې سره دَدې چه مصنف دَ نخل تصریح کړې ده اودا تصریح ئی دَ روایت باب دَ وجې نه کړې ده. ګنې امام بخاری رحمه الله دلته هم دغه خودنه کول غوښتل چه په مزارعت کښې سړې هم استعمالولې شی. یا دا ئی خودل غوښتل چه دَدې دَپاره څه صیغه مخصوص نه ده لکه چه ذکرشو ځکه چه دَ مساقاة دَپاره امام بخاری رحمه الله وړاندې مستقل ابواب ذکرکوی.

[حدیث ۲۲۰۰](۳) حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رضی الله عنه- قَالَ:

قَالَتِ الأَنْصَارُ لِلنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- اقْسِمْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا النَّخِيلَ. قَالَ «لاَ». فَقَالُوا تَكْفُونَا الْمَئُونَةَ وَنُشْرِكُكُمْ فِي الثَّمَرَةِ. قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا. [۲۵۷۰، ۳۵۷۱]

**ترجمه**:- حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه انصارو دَحضورپاك په خدمت کښې عرض اوکړو چه تاسو داسې اوکړئی چه دَ کهجورو ونې په مونږ کښې او زمونږ (مهاجرین) رونړوکښې تقسیم کړئی. حضورپاك اوفرمائیل نه! نوبیا انصارو مهاجرینوته اووئیل چه داسې اوکړئی چه تاسو په ونوکښې محنت خواری کوئی مونږ به تاسو په میوو کښې شریك کړو هغوی اووئیل مونږ واؤریده او قبول مو کړل.

---

(۱) الابواب والتراجم ص:۱۷۱ بتفصیل.

(۲) الابواب والتراجم ص:۱۷۱ بتفصیل.

(۳) أخرجه البخاری أیضاً فی فضائل أصحاب النبی صلی الله تعالی علیه وسلم باب إخاء النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بین المهاجرین والانصار. وأخرجه النسائی فی سننه، فی المزارعة: ۵۳/۷ ولم یخرجه أحد من أصحاب الکتب السنة سوی البخاری والنسائی انظر جامع الاصول: ۲۸/۱۱ رقم الحدیث: ۸۴۹۹ وتحفة الاشراف: ۱۳۷۳۸/۱۰.

## رجال الحدیث

① **حکم بن نافع**:- داحکم بن نافع الیمان حمصی رحمه الله دی.[۱]

② **شعیب بن دینار**:- دا شعیب بن دینار ابوحمزه حمصی رحمه الله دې.[۲]

③ **ابوالزناد**:- دا ابوالزناد عبدالله بن ذکوان رحمه الله دې.[۳]

④ **أعرج**:- دا اعرج عبدالرحمن بن هرمز رحمه الله دې.[۴]

⑤ **ابوهریره**:- دا ابوهریره رضی الله عنه دې.[۵]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: تکفونا المؤنة ونشر ککم في الثمره سره ظاهردې.[۶]

**قوله: اقسم بیننا وبین إخواننا النخیل الخ**:- حضرات انصار رضی الله عنهم داخبره خکه کړې وه چه دَهجرت په موقع هغوی دا ذمه واری اخستې وه چه کوم صحابه کرام رضی الله عنهم دَمکې مکرمې نه راځی مونږ به هغوی سره پوره پوره رعایت کوو اوډ هغوی به ډیر خیال او لحاظ کوو. اوبیا خو حضورپاك دَهغوی په مینځ کښې مواخاة هم کړې وو نودَدغه مواخاة یعنی ورورلئی هم دا تقاضا وه چه هغوی دوی سره ښه سلوك اوکړی.[۷]

بهرحال حضرات انصارو رضی الله عنهم ته رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارك اوفرمائیل چه نه زه داسې تقسیم نه کوم اوډ حضورپاك مقصد دا وو چه دَهغوی مال محفوظ پاتې شي. بل حضورپاك ته معلومه وه چه ډیر زر به فتوحات اوشی او په مهاجرینو باندې به هم دَ برکتونو دروازې کولاؤ شي. نو حضورپاك په انصارو باندې شفقت فرمائیلو سره داخبره مناسب اونه گنړله چه دَهغوی دَ کهجوروډ باغونونه څه څیزدَهغوی دَملکیت نه اوځی ځکه چه دَهغوی معیشت هم په دې ولاړوو. کله چه انصار په دې خبره پوهه شو نوهغوی دواړه مصلحتونه جمع کول غوښتل یعنی چه دَ حضورپاك دَ حکم امتثال هم اوشی اوډ حضرات مهاجرینو دَ مواخات حق هم اداشی. نوانصار اووئیل چه ښه ده بیا دې حضرات مهاجرین داسې اوکړی چه زمونږ دَ باغونو خیال ساتی باغ له دې اوبه وغیره ورکوی دَهغې صفائی دې کوی نو مونږ به هغوی په میووکښې هغوی سره شریك شو. حضرات مهاجرین اووئیل چه سمعناواطعنا یعنی مونږ منظور کړل.[۸]

---

[۱]) کشف الباری: ۴۷۹/۱.

[۲]) کشف الباری: ۴۸۰/۱.

[۳]) کشف الباری: ۱۰/۲.

[۴]) کشف الباری: ۱۱/۲.

[۵]) کشف الباری: ۶۵۹/۱.

[۶]) عمدة القاریک۲۲۸/۱۲.

[۷]) إرشادالساری:۳۰۸/۵وعمدة القاری:۲۲۸/۱۲.

[۸]) إرشاد الساری: ۳۰۸/۵ وعمدة القاری: ۲۲۸/۱۲.

دلته په ترجمه او تشريح كښې چه كوم تفصيل ذكركړې شوې دې هغې سره د ضميرونو مراجع معلوم شو. چه تكفونا المؤونة او نشركم في الثمرة ويونكى حضرات انصار دى او دَدې نه پس سمعنا واطعنا دَحضرات مهاجرين مقوله ده ځكه چه دَ زمكې او باغ والاهم انصار وو.

**دَحضرت گنگوهى رحمه الله او علامه احمدبن اسماعيل ګكورانى يوه عجيبه اوحيرانونكې توجيه:-**
حضرت گنگوهى رحمه الله او صاحب الكوثر الجارى علامه كورانى رحمه الله دلته يوعجيبه او حيرانونكې توجيه كړې ده فرمائى چه تكفونا المؤونة او نشركم في الثمرة ويونكى مهاجرين دى او سمعنا واطعنا ويونكى انصاردى. نولكه چه اول انصار دَ خپلو زمكو او باغونو مالك مهاجرين دَ جوړولواراده اوكړه نودَدې په جواب كښې حضرات مهاجرين اووئيل مونږ ستاسو دا احسان اومهربانى قبلوو مګر دا چه تاسو دَدې باغونو خيال اوساتنه كوئى نودا حضرات انصار قبول كړل. لكه چه دَ باغونو مالكان مهاجرين جوړشوې وو اودَهغې نه پس هغوى انصارو سره دَ مزارعت معامله اوكړه.[1]

## ٦- باب: قطع الشجر والنخل

دكهجورو يا هرقسم ونې پرې كول اوحضرت انس رضي الله عنه فرمائى چه حضورپاك دكهجورو دَونو كټ كولوحكم وركړو نوهغه ونې پرې كړې شوې.

**دَترجمة الباب مقصد:-** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دَدې ترجمة الباب نه دَ امام بخارى رحمه الله غرض دادې چه كه څه ضرورت يا مصلحت مخې ته شى نو ونې اوكهجورې پرې كولې شى.[2] مثلاً كه چرې داسې موقع راشى چه دښمن شكته كول اويرولو دَپاره ددې نه علاوه بل څه صورت نه وى نودهغوى باغونه دې كټ كړى نوكټ كولې شى. يا دغه شان كه په مينځ كښې باغونه حائل كيږى اودهغې دوجې په دښمن باندې حمله نه شى كيدې نوبيا هم دا باغونه كټ كولوكښې څه بديت نشته يا كه دغه شان څه بل څه مصلحت پيښ شى نود جمهورو دغه مسلك دې.

امام ليث بن سعد امام اوزاعى او ابوثور رحمهم الله فرمائى چه دَ ميوو ونې كټ كول بهرحال ممنوع دى او په روايت كښې چه دَ كومو ونو دَ كټ كولو ذكرراغلې دې دَهغې دوه محمل دى يا خو هغه ونې په غيرميوه دارو ونوبانې محمول دى او يا دا چه هغه ونې دَ دښمن او اسلامى لښكر په مينځ كښې حائل وې اودَهغې دَ وجې اسلامى لښكر دښمن ته نه شو رسيدلې په دې وجه هغه كټ كړې شوې.[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله چه كوم جوابات ارشاد فرمائيلي وو هغه صحيح او ټيك دې. په اصل كښې دَ امام بخارى رحمه الله غرض دوه خبرې دى. اول غرض خو په تفصيل سره تيرشو اودويم

---

[1]) لامع الدرارى: ٢٣١/٦ والكوثر الجارى:٤١/٥.
[2]) فتح البارى:١٣/٥.
[3]) فتح البارى: ١٣/٥.

غرض دادې که زمیندار ته ضرورت پیښ شی نوهغه خپل ونې او کهجورې پرې کولې شی په سنت کښې د دې اصل موجود دې بعض وخت داسې کیږی چه د باغ والا ته دا ضرورت پیښیږی چه هغه زړې ونې کټ کوی په کومو چه ډیره میوه نه راځی اوهغې په ځائی نورې ونې لګوی د دې دپاره چه میوه هم زیاته اونیسی.

**یواشکال اوهغې جواب**:- په دې توجیه سره د بعض علماؤ د دې اشکال جواب هم اوشو چه دا ترجمة الباب ابواب المزارعة کښې ذکرکول مناسب نه وو خکه چه ابواب المزارعة سره د ونو پرې کولو څه تعلق دې.(۱) لیکن ظاهره خبره ده چه کله دا اوونیلې شو چه بعض اوقات داسې کیږی چه سړې مصلحتاً زړې ونې کټ کوی اوهغې په ځائی نوې ونې کری نو په دې صورت کښې ابواب المزارعة سره تعلق بالکل واضح کیږی.

وَقَالَ أَنَسٌ أَمَرَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِالنَّخْلِ فَقُطِعَ. [ر: ۴۱۸]

**د تعلیق تفصیل**:- دا د حضرت انس رضی الله عنه د یو اوږدحدیث جز دې او امام بخاری رحمه الله په کتاب المناقب (۲) کتاب الوصایا (۳) اوکتاب الصلاة (۴) کښې دا موصولاً ذکرکړې دې اودلته مقصوددادې چه کله د مسجد نبوی تعمیر شروع شو نوهلته د کهجورو ونې وې حضورپاک هغه کټ کړې او د جمات په تعمیرکولوکښې ئی استعمال کړې نودا کټ کول هم د ضرورت دخاطره وو. اوترجمة الباب سره د دې تعلیق مطابقت ډیر واضحه دې.

[حدیث ۲۲۰۱] (۵) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ -رضى الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ حَرَّقَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيرِ وَقَطَعَ، وَهِيَ الْبُوَيْرَةُ، وَلَهَا يَقُولُ حَسَّانُ وَهَانَ عَلَى سَرَاةِ بَنِي لُؤَيٍّ حَرِيقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيرٌ. [۲۸۵۸، ۳۸۰۷، ۳۸۰۸، ۴۶۰۲]

**ترجمه**:- حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه حضورپاک د بنی نضیر (یهودیانو) د کهجورو ونې اوسوزولې او پرې ئی کړې او دا ونې بویرة کښې وې اوهم د دې باره کښې حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه ونیلی چه بنی لؤی د سردارانودپاره د بویره خورشوی اور فتح آسانه کړه.

---

(۱) الابواب والتراجم ص: ۱۷۱.

(۲) کتاب المناقب الانصار، باب مقدم النبی صلی الله تعالی علیه وسلم واصحابه المدینة رقم: ۳۹۳۲.

(۳) کتاب الوصایا باب إذا أوقف جماعة أرضا مشاعا فهوجائز رقم: ۲۷۷۱.

(۴) کتاب الصلاة باب هل تنبش قبور مشرکی الجاهلیة ویتخذ مکانها مساجد رقم: ۴۲۸۰.

(۵) أخرجه البخاری أیضًا فی تفسیر سورة الحشر باب قوله تعالی: ﴿ مَا قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّينَةٍ ﴾ الایة رقم: ۴۶۰۲ وفی کتاب الجهاد باب حرق الدور والنخیل رقم: ۲۸۵۷ وفی المغازی باب حدیث بنی النضیر ومخرج رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فی دیة الرجلین رقم: ۳۸۰۴ وأخرجه مسلم فی کتاب الجهاد باب جواز قطع أشجار الکفار وتحریقها رقم: ۷۴۶ وأخرجه الترمذی فی کتاب التفسیر باب من سورة الحشر رقم: ۳۲۹۸ وأخرجه ابوداؤد رحمه الله تعالی فی کتاب الجهاد باب الحرق فی بلاد العدو رقم: ۲۶۱۵.

# رجال الحدیث

① **موسی بن اسماعیل**:- دا موسی بن اسماعیل تبوذکي بصري رحمه الله دي.[1]
② **جویریة**:- دا جویریة بنت اسماء بنت عبید بصري رحمه الله ده.[2]
③ **نافع**:- دا نافع مولی عبدالله بن عمر رضي الله عنه دي.[3]
④ **عبدالله بن عمر**:- دا حضرت عبدالله بن عمر بن خطاب رضي الله عنهما دي.[4]

**حل اللغات**: **هان**: یَهُوْنَ هَوْنًا، هَانَ علیه الشيء ای خَفَّ یعني د یومعاملې نرم کیدل او آسان کیدل.[5]

**سراة**: ج السَّرِیُّ په معنی سردار، صاحب شرف و مروت، سخي. علامه ابن اثیر رحمه الله فرمائي چه سَرِیٌّ جمع سَرَاةٌ د سین فتحه سره خلاف قیاس دي او کله د سین په ضمه سره هم لوستلې شي او د سَرَاةٌ جمع سَرَوَات راځي.[6]

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت ښکاره دي.

**تشریح**:- دا شعر نورو شعرونوسره حافظ ابن حجر رحمه الله نقل کړي دي او دغه شان په دیوان حسان رضي الله عنه کښې هم نقل دي.[7] په دې اشعارو کښې شاعر رسول ﷺ حضرت حسان رضي الله عنه په قریش مکه باندې طنز کړې دې او د بنونضیر او بنو قریظه د یهودیانو بدحالي ئې بیان کړې ده چه هغوی د قریش مکه په غولولو کښې راغلل او د رسول الله ﷺ سره کړې عهدوپیمان ئې مات کړل او د اسلام خلاف کاروایانو کښې مشرکانوسره شو او بیا چه کله په هغوی باندې مصیبت راغلو نوقریش مکه دخپلو وعدو باوجود دهغوی هیڅ امداد اونه کړو.[8]

---

[1] کشف الباري: ١/ ٤٣٣، ٤٧٧/ ٣.
[2] کشف الباري کتاب الغسل باب الجنب یتوضا ثم ینام.
[3] کشف الباري: ٤/ ٦٥١.
[4] کشف الباري: ١/ ٦٣٧.
[5] معجم الصحاح ص: ١١١٣.
[6] النهایة: ١/ ٨٨٤.
[7] فتح الباري: ٧/ ٤١٦ دیوان حسان رضي الله عنه ص: ٢٦٨.
[8] هغه څلورواړه شعرونه سره د ترجمې دلته درج کولې شي:

تَفَاقَدَ مَعشرٌ نَصَروا قریشاً ولیس لهم بِبَلْدَ تهم نصیر

**ترجمه**:- کوموخلقو چه د قریشو امداد اوکړو هغه ټولو یوبل ورك کړل یعني ټول هلاك او ګډوډ شول اوهغوی په ښاریو کښې دهغوی څوك امدادیان پاتې نه شو.

هُمْ اُوْتُوا الکتبَ فضَیَّعُوْهُ فَهُمْ عُمْیٌ مِنَ التَّوْرٰ بُوْرٌ

**ترجمه**:- هغه خلقو ته کتاب ورکړې شو بیا هغوی هغه ضایع کړو نودا خلق د تورات باره کښې رانده دي اوهلاك شوي خلق دي.

کَفَرْتُمْ بِالقُرْاٰنِ وَقَدْ اُتِیْتُمْ بِتَصْدِیْقِ الَّذِی قَالَ النَّذِیْرُ .... [بقیه حاشیه برصفحه آئنده...

## باب

**دَترجمة الباب مقصد:-** دلته امام بخاری رحمه الله بغیردَ ترجمې باب قایم کړې دې اوبیائی دَ حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه روایت نقل کړې دې چه مونږ په اهل مدینه کښې دَټولو نه زیات دکهجورو باغونو والاوو. او دا روایت قطع الشجر والنخل سره هم څه مناسبت نه لری کوم چه دَ رومبی باب ترجمه وه.

**دَعلامه مهلب بنابی صفرة رحمه الله رائې:-** دَعلامه ابن بطال رحمه الله په پوهه کښې چه کله مناسبت رانغلو نوهغه دَخپل استاذ مهلب بن ابی صفرة مالکی رحمه الله نه سوال اوکړو. هغه دَدې دا جواب ورکړو چه په اصل کښې په دې روایت کښې دَ مزارعت ذکردې اوقاعده داده چه مزارعت دَ یومقرر نیټې پورې کیږی اودَ اجل معین تیریدونه پس صاحب دَزمکې ته دا اختیاروی چه هغه زارع اوزمیندار ته دا اووائی خپلې ونې دې زمونږ دَ زمکې نه اوچتې کړه نودغه شان دا روایت دترجمې مطابق کیږی.(۱)

**دَعلامه ابن المنیرمالکی رحمه الله رائې:-** دَعلامه ابن منیر مالکی رحمه الله رائې داده چه امام بخاری رحمه الله خو اول داخودلی ووچه ونې اوکهجورې پرې کولې شی. اوس په دې باب بلاترجمه کښې دحضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه روایت ذکرکولوسره په دې خبره باندې تنبیه فرمائی چه ونې خو په ضرورت کښې پرې کولې شی بغیرضرورت نه نشی پرې کولې. ځکه چه حضورپاك دغه شان مزارعت کولونه په کوم کښې چه خطره وی یعنی یوه حصه دَ زمکې خاوند دَخپل ځان دپاره مقررکړی اودویمه حصه دَ زمیندار دَپاره معین کړی دَدې نه ئې منع فرمائیلې ده. په دې کښې داسې کیږی چه کله یو طرف ته پیداوار کیږی اوکله بل طرف ته پیداوار کیږی بهرحال په دې کښې مخاطره وی اوکله دَ یو اوکله دَ بل دَ نقصانې کیدو اندیښنه وی. په دې وجه حضور پاك دَدې صورت نه منع کړې ده او په دې کښې منفعت موهوم دې نوچه په کوموځیزونوکښې منفعت محقق وی یعنی په ونوکښې نوهغه بغیردَ ضرورت نه څنګه پرې کولې شی.(۲)

**دحضرت شیخ الحدیث رحمه الله رائې:-** حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی چه دا باب رجوع الی الاصل دَقبیل نه دې یعنی دَدې طرف ته رجوع کولودَپاره دا باب راوړلې شوې دې.(۳)

**اشکال:-** په دې باندې دا اشکال کیږی چه دا من باب الرجوع الی الاصل دا څنګه کرځولې شی اول چه څومره ابواب تیرشوی دی په ټولوسره دَمزارعت تعلق بالکل ښکاره او واضحه دې او

---

.....بقیه حاشیه ازصفحه گذشته] **ترجمه:-** تاسو قران سره کفراوکړو حالانکه تاسودَدې ځیز تصدیق درکړې شوې دې کوم چه دَ الله تعالی نذیر یعنی محمدرسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلې.

وَهَانَ عَلٰى سَرَ بَنِی لُؤَیّ حَرِیْقٌ بِالْبُوَیْرَةِ مُسْتَطِیْرٌ

**ترجمه:-** اودَ بنی لؤی په سردارانو باندې آسان شودَمقام بویره سوزول دَ کوم بځری چه به الوتل.

(۱) شرح ابن بطال:۶/۳۸۳.

(۲) فتح الباری:۵/۱۳.

(۳) الابواب والتراجم ص: ۱۷۲.

دَرجوع الی الاصل ضرورت خو هله پیښیږی چه اول څه داسې باب راغلې وی دکوم چه مزارعت سره څه تعلق نه وی اودلته داسې صورت نشته. ددې دپاره هغه ته من باب الرجوع الی الاصل ګرځول مناسب نه دی ځکه چه په ماقبل کښې کوم باب بیان کړې شوی دې هغه ټول دمزارعت په تمهید کښې دی اومطلب دا وو چه داځیزونه دَ زمیندارنی دپاره استعمالولې شی.

احدیث ۲۲۰۲ [۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ قَيْسٍ الْأَنْصَارِيِّ سَمِعَ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ قَالَ كُنَّا أَكْثَرَ أَهْلِ الْمَدِينَةِ مُزْدَرَعًا، كُنَّا نُكْرِي الْأَرْضَ بِالنَّاحِيَةِ مِنْهَا مُسَمًّى لِسَيِّدِ الْأَرْضِ، قَالَ فَمِمَّا يُصَابُ ذَلِكَ وَتَسْلَمُ الْأَرْضُ، وَمِمَّا يُصَابُ الْأَرْضُ وَيَسْلَمُ ذَلِكَ، فَنُهِينَا، وَأَمَّا الذَّهَبُ وَالْوَرِقُ فَلَمْ يَكُنْ يَوْمَئِذٍ.

[۲۲۰۷، ۲۲۱۴، ۲۲۱۸، ۲۲۲۰، ۲۵۷۳، ۳۷۸۹]

**ترجمه:**- حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه اوفرمائیل چه مونږ خلق په اهل مدینه کښې دَ زیاتو پټو یعنی زمکووالاوو مونږ به زمکه په مزارعت ورکوله. حضرت رافع رضی الله عنه اوفرمائیل چه کله کله خوبه داسې کیدل چه دزمکې دَهغه حصې پیداوار به خراب کیدلو اودَ باقی حصې به ښه کیدلو اوکله به دَټولې زمکې پیداوار خراب کیدلو دَهغه حصې به محفوظ پاتې کیدلو په دې وجه مونږ ددې نه منع کړې شو اوترکومې چه دَ سرو زرو اوسپینو زرو تعلق دې (په بدله کښې تیکه ورکولو) نوهغه وخت دَدغې رواج نه وو.

## رجال الحدیث

① **محمد:**- دا محمدبن مقاتل مروزی بغدادی ابوالحسن رح رحمه الله دې. [۲]

② **عبدالله:**- دا عبدالله بن مبارک رحمه الله دې. [۳]

③ **یحیی:**- دا یحیی بن سعیدانصاری رحمه الله دې. [۴]

④ **حنظله بن قیس:**- دا حنظله بن قیس بن عمرو بن حصن بن خلدة بن مخلد بن عامر بن زریق الانصاری الزرقی المدنی رحمه الله دې. [۵]

---

[۱]) أخرجه البخاری أیضًا فی باب مایکره من الشروط فی المزارعة الحدیث: ۲۳۳۲ مختصراً وأخرجه أیضًا فی کتاب الشروط باب الشروط فی المزارعة الحدیث: ۲۷۲۲ مختصراً وأخرجه مسلم فی کتاب البیوع والاجارات باب فی المزارعة الحدیث: ۳۳۹۲، ۳۳۹۳ وأخرجه أبوداؤد فی کتاب البیوع باب ذکر الاحادیث المختلفة فی النهی عن کراء الارض بالثلث والربع واختلاف ألفاظ الناقلین للخبر الحدیث: ۳۹۰۸ – ۳۹۱۱ وأخرجه ابن ماجه فی کتاب الرهون باب الرخصة فی کراء الارض البیضاء بالذهب والفضة الحدیث: ۲۴۵۸ وانظر تحفة الاشراف: ۳۵۵۳.

[۲]) کشف الباری: ۳/۲۰۶.

[۳]) کشف الباری: ۱/۴۶۲.

[۴]) کشف الباری: ۱/۲۳۸، ۲/۳۲۱.

[۵]) تهذیب الکمال: ۷/۴۵۳ طبقات ابن سعد: ۵/۷۳ تاریخ الکبیر: ۳/ الترجمة: ۱۵۵.

**اساتذه کرام:**- هغوی رحمه الله د حضرت رافع بن خدیج، حضرت عبدالله بن زبیر، حضرت عبدالله بن عامر بن کریز قرشی، حضرت عثمان بن عفان، حضرت عمر بن خطاب، حضرت ابوهریره اوحضرت ابوالیسر انصاری رضی الله عنهم نه روایت نقل کوی.[۱]

**تلامذه کرام**- حضرت ربیعة بن ابی عبدالرحمن، ابوحویرث عبدالرحمن بن معاویه زرقی، عثمان بن محمد اخنسی، محمدبن مسلم شهاب زهری، مصعب بن ثابت، عبدالله بن زبیر، یحیی بن سعیدانصاری او شحبیل بن ابی عون پلار ابوعون رحمهم الله دهغوی رحمه الله نه روایات نقل کوی.[۲]

محمدبن سعد رحمه الله د واقدی رحمه الله نه نقل کوی چه هغوی رحمه الله ثقه او قلیل الحدیث دی.[۳] امام زهری رحمه الله فرمائی چه ما په انصارکښې دحنظله بن قیس نه زیات پرهیزګاره او بهترین رائې والا سړې نه دې لیدلې لکه چه هغه یوقریشی ځوان وو.[۴] علامه ابن حبان رحمه الله هم دهغوی رحمه الله تذکره په ثقات کښې کړې ده.[۵]

⑥ **رافع بن خدیج:** حضرت رافع بن خدیج بن رافع بن عدی اوسی رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[۶]

**حل اللغات: مزدرع:** دزمیندارئی ځائی، کشت زار، زَرَعَ(ف) زَرْعًا وازْدَرَعَ، کرل تخم اچول، پټې اړول.[۷]

**ترجمة الباب سره مطابقت:**- بعض حضرات وائی چه دا باب بلاترجمه دې اوکیدې شی چه کاتب دغلطئی نه دا حدیث دلته لیکلې وی.[۸] او باب سابق سره ددې د مناسبت تذکره دترجمة الباب دمقصد په ضمن کښې تیره شوه.

## ۷- باب: المزارعة بالشطر ونحوه

### په نیمه یا کم وزیات باندې دزمیندارئی حکم

**دترجمة الباب مقصد:**-د امام بخاری رحمه الله مقصوددادې که مزارعت د یوجزء معین په بدله کښې اوکړې شی نودې څه حکم دې او په ترجمة الباب کښې شطر قید د روایت مرفوعه رعایت کولوسره لګولې شوې دې.[۹]

---

[۱] تهذیب الکمال:۴۵۳/۷ طبقات ابن سعد:۷۳/۵تاریخ الکبیر:۳/ الترجمة: ۱۵۵.

[۲] تهذیب الکمال:۴۵۳/۷، ۴۵۴.

[۳] طبقات ابن سعد:۷۵/۵.

[۴] تهذیب الکمال:۴۵۴/۷.

[۵] الثقات:۱۶۶/۴.

[۶] کشف الباری کتاب مواقیت الصلاة باب وقت المغرب.

[۷] معجم الصحاح ص:۴۴۹.

[۸] عمدة القاری:۱۳/۱۲.

[۹] عمدة القاری:۲۳۲/۱۲.

**دفقهاؤ اختلاف**:- په مزارعت باندې چه كله زمكه كر له وركولې شى نوددې په جواز اوعدم جواز كښې دفقهاء كرامو اختلاف دې. امام اوزاعى سفيان سعيدبن مسيب طاؤس ابن ابى ليلى امام ابويوسف امام محمد اوامام احمد بن حنبل وغيرهم رحمهم الله داحضرات فرمائى چه جائزدې.[1]

امام ابوحنيفه امام مالك امام شافعى ابوثور او ليث وغيرهم رحمهم الله دعدم جواز قائل دى.[2] ددې حضراتو څه قدرې تفصيل ابواب حرث او مزارعت په شروع كښې تير شو.

**قول راجح**:- ليكن واقعه داده چه په دې مسئله كښې دمجوزين قول ارجح او اقوى دې او داحنافو په نيز هم په دې فتوى ده.[3] او امام بخارى رحمه الله هم دا ثابتوى.

**دعلامه انور شاه كشميرى رحمه الله رائې**:- حضرت مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله هم د جواز قول اختيار كړې دې.[4]

**دعلامه شرنبالى رحمه الله قول**:- اوعلامه شرنبالى رحمه الله چه د خلاصه نه نقل كړى دى چه امام ابوحنيفه رحمه الله د مزارعت په مسائلو كښې كوم تفريعات پيش كړى دى هغه د مجوزينو په قول باندې مبنى دى. ددې دپاره امام اعظم رحمه الله ته دا معلومه وه چه خلق به دهغوى نه پس داخبره نه منى په دې وجه هغوى په تفريعاتو كښې دمجوزينو د مسلك رعايت اوكړو.[5]

ليكن داخبره بهرحال نه شى صحيح كيدې چه امام صاحب رحمه الله خودې مسئله يوه بيانوى او تفريع دې په دويمه مسئله كوى اوهغه هم صرف په دې چه هغه پخپله پيژندلو چه دهغوى خبره به څوك اونه منى.

**د علامه شامى رحمه الله رائې**:- علامه شامى رحمه الله فرمائى چه امام ابوحنيفه رحمه الله خود مزارعت د فساد فيصله اوكړه ليكن دا چه هغوى به د دې ممانعت په سختئى سره نه فرمائيلو او په دې كښې دهغوى په نيز شدت نه وو. دليل ددې دا دې چه امام ابوحنيفه رحمه الله د مزارعت كوم فروعى مسائل بيان كړى دى په هغې كښې ډير مسائل داسې دى چه دامام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله په قول باندې منطبق كيږى.[6]

دا تعليل درومبى تعليل په مقابله كښې زيات بهتردې.

**وَقَالَ قَيْسُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ قَالَ مَا بِالْمَدِينَةِ أَهْلُ بَيْتِ هِجْرَةٍ إِلَّا يَزْرَعُونَ عَلَى الثُّلُثِ وَالرُّبُعِ . وَزَارَعَ عَلِيٌّ وَسَعْدُ بْنُ مَالِكٍ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ وَالْقَاسِمُ وَعُرْوَةُ وَآلُ أَبِي بَكْرٍ وَآلُ عُمَرَ وَآلُ عَلِيٍّ وَابْنُ سِيرِينَ .**

---

[1]) البناية شرح الهداية للمحدث المغنى:۴۷۴/۱۱ وشرح ابن بطال رحمه الله ۳۷۴/۶.

[2]) البناية شرح الهداية للمحدث المغنى:۴۷۴/۱۱ وشرح ابن بطال رحمه الله ۳۷۴/۶.

[3]) الهداية مع نصب الراية:۴۵۶/۴.

[4]) العرف الشذى:۱۰۲/۳.

[5]) حاشية ردالمحتار كتاب المزارعة:۵۸۳/۶.

[6])حاشية ردالمحتار كتاب المزارعة:۵۸۳/۶.

ابوجعفر رحمه الله فرمائى چه په مدينه كښې ديو مهاجر كوره نشى داسې نه وه چه په دريمه يا څلورمه حصه باندې مزارعت نه كوى. اوحضرت على سعدبن مالك عبدالله بن مسعود عمر بن عبدالعزيز قاسم، عروة بن زبير، دحضرت ابوبكر رضي الله عنه خاندان والا اود حضرت عمر رضي الله عنه خاندان والا اودحضرت على رضي الله عنه خاندان والا اوابن سيرين ټولو به مزارعت كولو

**دتعليقات تفصيل:** د قيس بن مسلم رحمه الله داتعليق علامه عبدالرزاق رحمه الله ثورى اخبرنى قيس بن مسلم عن ابى جعفر په طريق سره موصولاً نقل كړې دې [1] اود تعليق مقصود مزارعة بالشطر وغيره اثبات دې.

دحضرت على رضي الله عنه تعليق ابن ابى شيبه رحمه الله موصولاً نقل كړې دې: حدثنا وكيع عن سفيان عن الحارث بن حصيرة عن صخر بن الوليد عن عمرو بن صُليع عن على رضى الله تعالى عنه أنه لم ير بأسًا بالمزارعة على النصف. [2] اود حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او سعدبن مالك رضي الله عنه اثر هم ابن ابى شيبه رحمه الله موصولاً نقل كړې دې: حدثنا أبو الأحوص عن إبراهيم بن مهاجر عن موسى بن طلحة قال: كان سعد وابن مسعود يزارعان الثلث والربع. [3]

دغه شان سعدبن منصور رحمه الله [4] او بيهقى رحمه الله [5] هم دا اثر موصولاً نقل كړې دې. د حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله اثر ابن ابى شيبة رحمه الله موصولاً نقل كړې دې: حدثنا حفص ابن غياث عن يحيى بن سعيد أن عمر بن عبدالعزيز كان أمر بإعطاء الارض بالثلث الربع. [6]

د قاسم بن محمدبن ابى بكر رضي الله عنه اثر عبدالرزاق موصولاً نقل كړې دې: سمعت هشاماً يحدث أرسلنى محمد بن سيرين إلى القاسم بن محمد أساله عن رجل قال لآخر: اعمل فى حائطى هذا ولك الثلث أو الربع، قال لاباس به الخ. [7] دعروة بن زبير رحمه الله اثر ابن ابى شيبه رحمه الله موصولاً نقل كړې دې: حدثنا ابواسامة عن هشام بن عروة قال كان أبى لايرى بكراء الارض باساً. [8]

دآل ابى بكر آل عمر او آل على رضي الله عنهم اثر عبدالرزاق رحمه الله موصولاً نقل كړې دې: حدثنا ابواسامة

---

[1]) مصنف عبدالرزاق كتاب المساقاة باب المزارعة على الربع والثلث رقم:۸/۱۰۰:۱٤٤٧٦.

[2]) فتح البارى:۱۱/۵ وعمدة القارى:۱/۱۶۷.

[3]) فتح البارى:۱۱/۵.

[4]) فتح البارى:۱۱/۵.

[5]) سنن البيهقى كتاب احياء الموات باب اقطاع الحددات:۶/۴۵.

[6]) فتح البارى:۱۱/۵ وعمدة القارى:۱۰/۱۶۷.

[7]) مصنف عبدالرازق:۸/۱۰۰.

[8]) فتح البارى:۱۱/۵ وعمدة القارى:۱۰/۱۶۷.

ووکیع عن عمرو بن عثمان عن أبی جعفر قال سألته عن المزارعة بالثلث والربع قال: أنی نظرت فی آل أبی بکر وآل عمرو آل علی رضی الله عنهم وجدتهم یفعلون ذلك (۱)
او د ابن سیرین رحمه الله اثر سعید بن منصور رحمه الله موصولاً نقل کړې دې (۲) او د دې ټولو تعلیقاتو مقصد هم المزارعة بالشطر اونحوه اثبات دې.

**وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الأَسْوَدِ كُنْتُ أُشَارِكُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ يَزِيدَ فِي الزَّرْعِ. وَعَامَلَ عُمَرُ النَّاسَ عَلَى إِنْ جَاءَ عُمَرُ بِالْبَذْرِ مِنْ عِنْدِهِ فَلَهُ الشَّطْرُ، وَإِنْ جَاءُوا بِالْبَذْرِ فَلَهُمْ كَذَا. وَقَالَ الْحَسَنُ لاَ بَأْسَ أَنْ تَكُونَ الأَرْضُ لأَحَدِهِمَا فَيُنْفِقَانِ جَمِيعًا فَمَا خَرَجَ فَهُوَ بَيْنَهُمَا، وَرَأَى ذَلِكَ الزُّهْرِيُّ. وَقَالَ الْحَسَنُ لاَ بَأْسَ أَنْ يُجْتَنَى الْقُطْنُ عَلَى النِّصْفِ. وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ وَابْنُ سِيرِينَ وَعَطَاءٌ وَالْحَكَمُ وَالزُّهْرِيُّ وَقَتَادَةُ لاَ بَأْسَ أَنْ يُعْطِيَ الثَّوْبَ بِالثُّلُثِ أَوِ الرُّبُعِ وَنَحْوِهِ. وَقَالَ مَعْمَرٌ لاَ بَأْسَ أَنْ تَكُونَ الْمَاشِيَةُ عَلَى الثُّلُثِ وَالرُّبُعِ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى.**

عبدالرحمن بن اسود رحمه الله فرمائی چه زه به د عبدالرحمن بن یزید رحمه الله په فصل کښې شریك ووم او حضرت عمر رضی الله عنه په خلقو باندې په دې شرط مزارعت کولو چه که چرې تخم به د هغوی وو نوهغه به نیم پیداوار اخلی اوکه چرې تخم د خلق وی نو هغه به دومره اخلی اوحضرت حسن رحمه الله اوفرمائیل چه په دې کښې هیڅ حرج نشته چه د یوسړی زمکه وی (د بل محنت) دواړه په دې کښې خرچ اوکړی او پیداوار نیم په نیم تقسیم کړی. او زهری رحمه الله هم دغه اختیار کړی او حسن بصری رحمه الله فرمائیلی که څوك دنصف په شرط باندې مالوچ راغونډ کړی په دې کښې هیڅ حرج نشته او ابراهیم نخعی ابن سیرین عطاء حکم زهری او قتاده رحمهم الله فرمائی چه په دې کښې هیڅ حرج نشته چه په دریمه یا څلورمه وغیره شرط باندې کپړه د جوړولو دپاره ورکړې شی اومعمر رحمه الله فرمائی چه په دې کښې هیڅ قباحت نشته چه څاروې د یو معین مودې پورې په دریمه یا څلورمه حصه کټه باندې ورکړې شی.

**د تعلیقاتو تفصیل:**- د عبدالرحمن بن اسود رحمه الله اثر ابوبکر ابن ابی شیبه رحمه الله موصولاً نقل کړې دې. (۳) د حضرت عمر رضی الله عنه اثر امام بیهقی رحمه الله په خپل کبیر کښې موصولاً نقل کړې دې (۴) اودغه شان ابوبکر ابن ابی شیبه رحمه الله هم دا اثر نقل کړې دې. (۵)

---

(۱) فتح الباری:۱۱/۵ وعمدة القاری:۱۶۷/۱ ورواية عبدالرزاق فی مصنفه، کتاب المساقاة باب المزارعة علی الربع والثلث..... رقم:۸/۱۰۰:۱۴۴۷۷، اخبرنا عبدالرزاق قال أخبرنا ابوسفیان قال أخبرنی عمرو بن عثمان بن موهب قال سمعت ابا جعفر محمدبن علی یقول: آل أبوبکر وآل عمرو آل علی یدفعون اراضیهم، بالثلث والربع. انتهی.

(۲) فتح الباری:۱۱/۵، ۱۲.

(۳) فتح الباری:۱۲/۵ وعمدة القاری:۱۰/۱۶۷.

(۴) الکبیر للبیهقی کتب المزارعة باب من أباح المزارعة بجزء معلوم مشاع:۱۳۵/۶.

(۵) فتح الباری:۱۲/۵ وعمدة القاری:۱۰/۲۶۷.

**یواشکال اودهغې جواب:-** حضرت عمر رضی الله عنه زمیندارانوسره معامله داسې فیصله کړه که چرې تخم حضرت عمر رضی الله عنه درکوی نوبیاخوبه نصف اخلی اوکه چرې تخم زمیندار ورکوی نوبیابه مثلاً اثلاثا تقسیم کیږی دلته دا اشکال کیږی چه کوم صورت دلته بیان کړې شوې دې دا خو دمخاطره شکل دې او په حدیث کښې ددې نه منع کړې شوې ده.[1]

ددې جواب دادې چه دا کوم تخییربین العقدین دې دابه په شروع کښې کیدلو ددې نه پس به بیا په یوصورت باندې اتفاق کیدلومخاطره خو به هله وی چه ترآخره پورې فیصله نه شی.[2]

دحسن بصری رحمه الله قول سعیدبن منصور رحمه الله موصولاً نقل کړې دې.[3] دَ امام زهری رحمه الله رائې عبدالرزاق او ابن ابی شیبه رحمهماالله موصولاً نقل کړې ده.[4] دَحسن بصری رحمه الله دا تعلیق سعیدبن منصور رحمه الله موصولاً ذکرکړې دې.[5]

**قوله: وقال الحسن: لابأس أن یجتنی القطن علی النصف: تشریح:-** یعنی دَ یوسړی د پومبې پټې دې اوس هغه خلقو ته وائی چه تاسو مالوچ راغونډکړئی اوچه څومره مالوچ راجمع شی نیم تاسو واخلئی او نیم به زه واخلم. امام احمد رحمه الله ددې صورت دَ جواز قائل دې اوائمه ثلاثه امام ابوحنیفه، امام مالك او امام شافعی رحمهم الله دَعدم جواز قائل دی اوداحضرات فرمائی په دې صورت کښې اجرت مثل واجب کیږی ځکه چه اجرت مجهول دې بل دا دَ قفیز الطحان په معنې کښې دې کوم منع دې. او حنابله دا په قراض باندې قیاس کوی ځکه چه دا دَ مال په عوض دَ یومعلوم جزء عوض اجاره ده. بس صرف دَ دې مقدار معلوم نه دې.[6] مګر دَ بلخ مشائخودَ ضرورت په وجه دَ جواز فتویٰ ورکړې ده او علامه ابن التین رحمه الله هم دَ امام مالك رحمه الله هم دَجواز فتویٰ نقل کوی.[7]

دَابراهیم نخعی رحمه الله قول ابوبکر اثرم رحمه الله موصولاً نقل کړې دې.[8] ابن دَسیرین عطاء حکم او زهری رحمهم الله اقوال ابن ابی شیبه رحمه الله موصولاً نقل کړی دی.[9] دغه شان دَقتاده رحمه الله قول هغوی بل اثرم رحمه الله هم موصولاً نقل کړې دې.[10]

---

[1]) فتح الباری:۱۶/۵.

[2]) فتح الباری:۱۶/۵.

[3]) فتح الباری:۱۲/۵ وعمدة القاری:۱۶۸/۱۰.

[4]) مصنف عبدالرزاق کتاب المساقاة باب المزارعة علی الثلث والربع رقم:۱٤٤۷۳: ۱۰۰/۸ وفتح الباری:۱۲/۵ وعمدة القاری:۱۶۸/۱۰.

[5]) عمدة القاری:۲۳٤/۱۲.

[6]) إرشادالساری:۵/۳۱۳ وفتح الباری:۱۷/۵ وعمدة القاری:۲۳٤/۱۲.

[7]) فتح الباری:۱۷/۵ وعمدة القاری:۲۳۵/۱۲ ولامع الدراری:۲٤۱/۶.

[8]) فتح الباری:۱۲/۵ وعمدة القاری:۱۶۸/۱۰.

[9]) فتح الباری:۵/۱۲ - ۱۳ وعمدة القاری:۱۶۸/۱۰.

[10]) فتح الباری:۱۳/۵ وعمدة القاری:۱۶۸/۱۰.

**قوله**: وقال ابراهيم وابن سيرين وعطاء والحكم والزهري وقتادة: لابأس أن يعطي الثوب بالثلث، أو الربع ونحوه، **تشريح** - اوددوی دقول مطلب دادی چه يوجولا ته سپنرسی ورکړي شو او ورته ئی اوونيل چه ته دي نه کپړه جوړه کړه په دې کښې دريمه يا څلورمه حصه ستا شوه او باقي به مونږ واخلو په دې کښې هم امام احمد رحمه الله دجوازقائل دی او ائمه ثلاثه منع کوی او فرمائي چه دلته به هم مثل اجرت عامل ته ورکولی شی اوکپړا به ټوله دمالك وی.[1]

دمعمر رحمه الله دا قول عبدالرزاق رحمه الله مصنف کښې موصولاً نقل کړې دی.[2]

**تشريح**: - يوسړي خپله سورلی چاته ورکوی دا واخله او دومره موده ئی په کرايه باندې چلوه او چه کومه ګټه کيږی هغه به زما او ستا په مينځ کښې تقسيميږی دلته هم امام احمد جواز قائل دی اوائمه ثلاثه وائی عامل ته به اجرت مثل ورکولی شی او باقي ګټه به ټوله دمالك وی.[3]

[حديث ۲۲۰۳][4] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ - رضي الله عنهما - أَخْبَرَهُ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - عَامَلَ خَيْبَرَ بِشَطْرِ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا مِنْ ثَمَرٍ أَوْ زَرْعٍ، فَكَانَ يُعْطِي أَزْوَاجَهُ مِائَةَ وَسْقٍ ثَمَانُونَ وَسْقَ تَمْرٍ وَعِشْرُونَ وَسْقَ شَعِيرٍ، فَقَسَمَ عُمَرُ خَيْبَرَ، فَخَيَّرَ أَزْوَاجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يُقْطِعَ لَهُنَّ مِنَ الْمَاءِ وَالأَرْضِ، أَوْ يُمْضِيَ لَهُنَّ، فَمِنْهُنَّ مَنِ اخْتَارَ الأَرْضَ وَمِنْهُنَّ مَنِ اخْتَارَ الْوَسْقَ، وَكَانَتْ عَائِشَةُ اخْتَارَتِ الأَرْضَ. [ر: ۲۱۶۵]

**ترجمه**: - حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د خيبر يهوديانوسره نيم په نيمه په پيداردمزارعت معامله اوکړه. څومره چه ميوه يا غله په هغه زمکه کښې پيدا کيدله حضورپاك به دهغې نه خپلو بيبيانوته سل وسق ورکوله اتيا وسق د کهجورو او شل وسق د اوربشو اوبيا حضرت عمر رضی الله عنه (دخپل خلافت په زمانه کښې يهوديان جلاوطن کړل) دخيبرزمکه ئی تقسيم کړه اود نبی کريم صلی الله علیه وسلم ازواج مطهرات ته ئی اختيار ورکړو که غواړی نوخپله حصه اوبه اوزمکه دې جدا کړی واديخلی يا رومبې والاعمل باقي اوساتی نو په هغوی کښې بعضو زمکه اخستل خوښ کړل او بعضو وسق اوحضرت عائشه رضی الله عنها زمکه اخستل خوښ کړې وو.

[1]) عمدة القاري:۱۲/۲۳۵.
[2]) فتح الباري:۵/۱۷.
[3]) لامع الدراري:۶/۲۳۹.
[4]) انفردبه الامام بخاري رحمه الله انظر تحفة الاشراف:۶/۱۲۳ رقم:۷۸۰۸.

## رجال الحديث

⑩ابراهيم بن منذر:- دا ابراهيم بن منذر حزامى رحمه الله دې.[1]
⑩أنس.- دا انس بن عياض ليثى رحمه الله دې[2]
⑩عبيدالله:- دا عبيدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن خطاب العمرى رحمه الله دې.[3]
⑩نافع:- دا نافع مولى عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې.[4]
⑩عبدالله بن عمر:-دوى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دى.[5]

**حل لغات:-** الوسق: (بالفتح) دَدې اصل معنى خو بوج ده دَدې جمع اوساق او اوسق راځى. دَ ۶۰ صاع دَمقدار دَپاره مستعمل دې اودَ اهل حجاز په نيز ۳۲۰ رطل او اهل عراق په نيز ۴۸۰ رطل برابردې.[6] حضرت مفتى محمدشفيع رحمه الله فرمائي چه وسق په حساب دَمثقال ۵ من يونيم سيردَ ۸۰تولې سير په حساب سره دې او په حساب دَ درهم ۵من پاؤكم ۵ سيره دَ ۸۰تولو سير په حساب سره دې.[7]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: عامل خيبر بشطر ما يخرج منها من تمر أو زرع په ذريعه سره واضح دې.[8] داحديث شريف دَ مزارعت اومساقاة دَمجوزين مستدل دې او احنافو اونورو حضراتو دَطرف نه دَدې جوابات ابواب الحرث والمزارعة په شروع كښې تيرشوى.

**قوله: (عامل خيبر)**:- دلته مضاف محذوف دې يعنى اهل خيبر دې. قوله تعالى: ﴿ وَاسْـَٔلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ كُنَّا فِيْهَا وَالْعِيْرَ الَّتِيْٓ اَقْبَلْنَا فِيْهَا ۭ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴾ (يوسف: ۸۲) په شان دې.[9]

## ۸-باب: إذا لم يشترط السنين فى المزارعة

### كه په مزارعت كښې د كالونو دمقدار شرط اونه كړى (نوځه حكم دې؟)

**دَترجمة الباب مقصد اودَفقهاؤ اختلاف:-** امام بخارى رحمه الله فرمائى كه چرې دَمزارعت معامله اوكړې شى اوهلته دَمودې څه ذكرنه وى نه نفياً اونه اثباتاً نوآيا دامزارعت به صحيح شى؟

---

[1]) كشف البارى:۵۸/۳.
[2]) كشف البارى كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت.
[3]) كشف البارى كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت.
[4]) كشف البارى: ۶۵۱/۴.
[5]) كشف البارى:۶۳۷/۱.
[6]) النهاية:۸۴۹/۲.
[7]) اوزان شرعية ص:۴۲.
[8]) عمدة القارى: ۲۳۵/۱۲.
[9]) عمدة القارى:۲۳۵/۱۲.

داؤد ظاهری او امام احمد بن حنبل رحمهما الله دَخپل مشهور قول مطابق فرمائی چه داسې کول جائز دی او په دې کښې هیڅ خرابي نشته. دَهغوی په نیز مزارعة دَعقود جائزه نه دې ترکومې پورې چه روان وی نو رواندې وی اوکله چه زړه غواړی نوختم دې کړی.[1] لیکن دَجمهور فقهاؤ په نیزدا دَعقود لازمه نه دی په دې کښې دَمیعاد تعیین ضروری دې اودَ هغه مودې پورې دا چلول لازمی دی. امام مالک امام شافعی او امام ثوری رحمهم الله ددې قائل دی.[2] حضرات احناف فرمائی که میعاد بیان نه کړې شو نودَ یو کرنه پس به معامله ختمه شی.[3]

اګرچه دَقیاس تقاضاهم دغه ده چه دا صحیح نه دی ځکه چه دادَ بعض خارج په بدله کښې په اجاره باندې اخستل دی اوبیا مجهول میعادسره اجاره صحیح نه وی لهذا دا هم جائزکیدې نه دې پکار لیکن استحساناً دَخلقو دَتعامل دَوجې دا جائزګرځولې شوې ده او دا معامله به دَرومبی کر پورې وی.[4]

ابوثور رحمه الله فرمائی که میعاد مقررنه کړې شو نوتریوکال پورې به دا معامله روانه وی دې نه پس به ختمه شی.[5]

**په دوو تراجم کښې په فرق باندې تنبیه:**-امام بخاری رحمه الله خو یوه ترجمه دا منعقدکړې ده او یوه ترجمه ئی وړاندې منعقدکړې ده. باب إذا قال رب الارض أقرك ما أقرك الله ولم يذكر اجلا معلوما فهما على تراضيهما، په دې دواړو ترجموکښې څه فرق دې؟

دَدې جواب ادې چه امام بخاری رحمه الله خودَدې ترجمې نه داخودل غواړی چه مزارعت من غير ذكر الاجل جائزدې او په راتلونکې ترجمه کښې امام بخاری داخودل غواړی چه که په مزارعت خودَاجل ذکر اوکړې شی اوهغه اجل غیرمعلوم اومجهول وی نو په دې صورت کښې به مزارعت جائز وی. أقرك ماأقرك الله ترکومې چه الله تبارك وتعالی تا قایم ساتی مونږ به هم قایم یو. په دې کښې دَ اجل یعنی میعاد ذکر راغلو ولې دَدې څه تحدید اوتعیین اونه شو نوامام بخاری رحمه الله هلته ښائی که چرې مزارعة من غیرذکر الاجل المعلوم وی نوهغه هم صحیح وی اودلته دا ښائی چه دَ مزارعة من غیرذکر الاجل څه حکم دې.[6]

.....

---

[1] المغنی:۵/۵۶۸ کتاب المساقاة فصل المساقاة والمزارعة من القعود الجائزة نیل الاوطار:۶/۹ کتاب المساقاة والمزارعة. عمدة القاری:۱۲/۱۶۸.

[2] حواله بالا.

[3] بدائع الصنائع:۵/۲۶۲ کتاب المزارعة باب مایرجع إلی مدة المزارعة.

[4] حواله بالا.

[5] عمدة القاری:۱۲/۲۳۱.

[6] فتح الباری:۵/۱۴مع تفصیل.

[حدیث ۲۲۰۴] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - قَالَ عَامَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - خَيْبَرَ بِشَطْرِ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا مِنْ ثَمَرٍ أَوْ زَرْعٍ.

**ترجمه**:- حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ خیبر یهودیانوسره په نیم پیداوار که هغه به میوه وه او که غله مزارعت اوکړو.

## رجال الحدیث

**مسدد**:- دامسدد بن مسرهد رحمه الله دی. (۲)

**یحیی بن سعید**:- دا یحیی بن سعید القطان رحمه الله دی. (۳)

**عبیدالله**:- دا عبیدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن خطاب العمری رحمه الله دی. (۴)

**نافع**:- دا نافع رحمه الله مولی عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دی. (۵)

**ابن عمر**:- اودَ حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما تذکره هم تیره شوې ده. (۶)

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې. ځکه چه په دې کښې دَمیعاد مقررولو څه قید نشته. علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی دَدې حدیث په یوطریق کښې هم دَمعلوم مودې څه قید نه دې وارد شوې. (۷)

## باب

**دَباب مقصد**:- دلته امام بخاری رحمه الله داباب بغیردَترجمې ذکرکړې دې. دَدې تیرشوی باب سره دَمناسبت باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله فرمائی چه داد تیرباب دَپاره په منزله دَ فصل دې ځکه چه کله دَمزارعت دا شکل جائزدې چه دَزمکې والابه دَزمکې دَپیداوار نه یومعین جزء دَ زارع نه اخستې شی نوزمکه دَ دراهم دنانیر اونقود په عوض کښې په کرایه ورکول به په طریقه اولی جائزوی. (۸)

---

(۱) وأخرجه مسلم فی کتاب المساقاة باب المساقاة والمعاملة بجزء من الثمر والزروع رقم:۱۵۵ والترمذی فی باب ما ذکر فی المزارعة رقم:۱۳۸۳ والطحاوی فی شرح معانی الاثار کتاب المزارعة والمساقاة رقم:۵۵۰۶ وأبوداؤد فی باب فی المساقاة رقم:۳۴۱۰ والدارمی فی سننه فی باب ان النبی صلی الله تعالی علیه وسلم عامل خیبر رقم:۲۶۱۴ واحمد فی مسنده:۲۸۹/۸ رقم:۴۶۶۳ و۲۵۶/۸ رقم:۴۷۳۲.

(۲) کشف الباری:۲/۲، ۵۸۸/۴.

(۳) کشف الباری:۲/۲.

(۴) کشف الباری کتاب الوضوء باب التبرز فی البیوت.

(۵) کشف الباری:۶۵۱/۴.

(۶) کشف الباری:۶۳۷/۱.

(۷) إرشادالساری:۳۱۵/۵.

(۸) فتح الباری:۱۹/۵وعمدة القاری:۲۳۸/۱۲ وإرشاد الساری:۳۱۵/۵.

[حديث ٢٢٠٥] (١) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو قُلْتُ لِطَاوُسٍ لَوْ تَرَكْتَ الْمُخَابَرَةَ فَإِنَّهُمْ يَزْعُمُونَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى عَنْهُ. قَالَ أَيْ عَمْرُو، إِنِّي أُعْطِيهِمْ وَأُغْنِيهِمْ، وَإِنَّ أَعْلَمَهُمْ أَخْبَرَنِي - يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهما - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - لَمْ يَنْهَ عَنْهُ، وَلَكِنْ قَالَ «أَنْ يَمْنَحَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهِ خَرْجًا مَعْلُومًا». [٢٢١٧، ٢٢٣٠، ٢٤٩١]

**ترجمه**:-حضرت عمرو بن دينار رحمه الله فرمائى چه ما طاؤس رحمه الله ته اووئيل ته زمكه په تقسيم وركول پريږده (نوبهترده) څكه چه خلق وائى حضورپاك د تقسيم نه منع فرمائيلې. طاؤس رحمه الله اووئيل اې عمرو! زه خلقو ته زمكه وركوم اوهغوى سره امدادكوم او په صحابه كرامو كښې چه لوئى عالمان وو يعنى حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ماته وئيلى ووچه حضورپاك د تقسيم نه منع نه ده فرمائيلې البته دائې فرمائيلى چه په تاسو كښې څوك خپل رور ته مفت زمكه وركړى نوداد هغې نه بهترده چه د هغې محصول واخلى.

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله**:- داعلى بن عبدالله بن جعفرابن المدينى رحمه الله دې. (٢)

② **سفيان**:- داسفيان بن عيينه رحمه الله دې. (٣)

③ **عمرو**:-دا عمرو بن دينارمكى رحمه الله دې. (٤)

④ **طاؤس**:- داطاؤس بن كيسان بن اليمانى الجندى الحميرى رحمه الله دې. (٥)

⑤ **ابن عباس** :- اودحضرت ابن عباس رضي الله عنهما تذكره هم تيره شوې ده. (٦)

---

(١) وأخرجه الامام مسلم رحمه الله تعالى فى صحيحه فى كتاب البيوع باب الارض تمنح رقم:١٥١ والامام أبوجعفر الحطاوى رحمه الله تعالى فى شرح معانى الاثار فى كتاب المزارعة والمساقاة رقم:٥٩٣٨ وأبوعوانة فى مسنده:٣٢٧/٣ باب ذكر الاخبار المسحة مؤاجرة الارض البيضاء بالذهب والفضة الخ رقم:٥١٧٦ والبيهقى رحمه الله تعالى فى سننه الكبرى فى كتاب المزارعة باب من أباح المزارة بجزء رقم:١٢٧٣، والبغوى رحمه الله تعالى فى شرح السنة: ٢٥٦/٨ رقم:٢١٨٠ وأبوداؤد فى سننه فى كتاب البيوع باب فى المزارعة رقم:٣٣٨٩ والترمذى رحمه الله تعالى فى جامعه فى كتاب الاحكام من رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم باب من المزارعة رقم:١٣٨٥ والنسائى رحمه الله تعالى فى سننه فى كتاب الايمان والنذور باب ذكر الاجارت المختلفة فى النهى عن كراه الارض رقم: ٣٨٧٣ وابن ماجه رحمه الله تعالى فى سننه فى كتاب الاحكام باب الرخصة فى كراه الارض البيضاء رقم:٣٤٥٦.

(٢) كشف البارى:٢٩٧/١.

(٣) كشف البارى:١٠٢/٣،٢٣٨/١.

(٤) كشف البارى: ٣٠٩/٤.

(٥) كشف البارى كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين الخ..

(٦) كشف البارى:٤٣٥/١، ٢٠٥/٢.

**حل لغات**: المخابرة: بعض حضرات فرمائى چه دا دخيبرنه ماخوذ دې ځكه چه حضورپاك دخيبروالاسره دمزارعت معامله كړې وه په دې وجه مزارعت ته مخابرة اوونيلې شو.[1] او بعض حضرات فرمائى چه دا د خبار يعنى نرمه زمكې نه ماخوذ دې چونكه دمزارعت دمعاملې تعلق زمكې سره دې په دې وجه دې ته مخابرة وئيلې شوى دى.[2]

**مزارعة او مخابرة كښې فرق**:- د بعض خلقو رائې ده چه په دې دواړو كښې هيڅ فرق نشته خوبعض حضرات وائى چه په مزارعت كښې تخم دمالك دطرف نه وى اومخابرة كښې تخم دعامل اوزميندارد طرف نه وى.[3]

**د فقهاؤ د اختلاف بيان**:- اوس چه دا دواړه صورتونه جائزدى كه نه يا يوجائزدې اوبل ناجائز. امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى چه دواړه جائزدى يعنى كه تخم د زمكې د مالك د طرف نه وې نو هم جائزدى ځكه چه دا يوداسې عقددې چه عامل اومالك دزمكې دواړه ددې نماء يعنى د دې پيداوار كښې شريك دى. لهذا ضرورى دى چه هغه ددې دواړونه د يوكس د طرف نه وى لكه چه عقد مساقاة اوعقد مضاربت كښې كيږى. اوهم دغه مسلك دامام شافعى ابن سيرين رحمه الله اواسحاق رحمه الله دې.[4]

اوكه چرې تخم د عامل د طرف نه وى نوهم جائزدى ځكه چه حضورپاك د خيبر والاته زمكه په دې توګه وركړې وه. نو لكه چه حضورپاك زمكه د زميندارد پاره وركړې وه بغيرد هغې د تفصيل چه تخم به څوك اچوى. نو اوس چه عامل يا رب الارض كوم هم تخم واچوى نو جائزبه وى. اوهم دغه مسلك دامام ابويوسف رحمه الله او د محدثينود يوجماعت دې.[5] اوبعض حضرات فرمائى چه نه مخابرة جائزده اونه مزارعة اوس سوال دادې چه په كومو آثاروكښې د تقسيم ذكرراغلې دې اود مزارعت جواز معلوميږى نود هغې محمل به څه وى؟

نوددې جوابات د ابواب الحرث والمزارعة په شروع كښې تيرشوى. البته د شوافع په نيز چونكه مساقاة جائزدې او د دې په ضمن كښې مزارعت هم جائزدې نوهغوى دا روايات په مساقاة باندې محمول كوى. البته په شوافع كښې امام نووى رحمه الله رائې داده چه مزارعت اومساقاة مستقلاً دواړه جائزدى.[6]

---

[1]) النهاية: ۱/۴۶۶.

[2]) حواله بالا.

[3]) عمدة القارى: ۱۲/۲۳۹.

[4]) المغنى لابن قدامة: ۵/۲۴۴.

[5]) المغنى لابن قدامة: ۵/۲۴۵.

[6]) الصحيح لمسلم مع شرحه الكامل للنووى: ۲/۱۴ قديمى.

د ګرانوطالبانود نورې فائدې دپاره اود آسانتى دپاره دعقد مزارعت مختلف صورتونوكښې د احنافو مذهب (مفتى به) تفصيل درج كولې شى. مزارعت په بنيادى توګه باندې په څلورو عناصروباندې مشتمل دې: ① زمكه ② تخم ③ د كرآله كه مشين وى اوكه څناور ④ دتقسيم كونكى عمل. ددې څلورو وارو په لحاظ د مزارعت مختلف صورتونه وى... ابقيه حاشيه برصفحه آئنده...

دامام بیهقی رحمه الله په شان امام نووی رحمه الله هم په ډیرو مسائلو کښې دامام شافعی رحمه الله مخالفت کوی

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:-** دا باب چونکه دباب سابق دپاره په منزله د فصل دې نوحدیث باب سابق سره مطابقت قوله: (خیرله من أن یاخذ علیه خرجا معلوما) نه ښکاره دې دغه شان په هغه باب یکښې د عامل دپاره یوه معلومه حصه متعین کولو تذکره وه اودلته دی چه که دزمکې مالك پیدا اوارد عامل دپاره پریږدی نودا دهغه په حق کښې ډیره بهتره ده. (۱)

## ۹-باب: المزارعة مع الیهود

### یهودیانوسره مزارعة معامله کول

**دترجمة الباب مقصد:-** دلته امام بخاری رحمه الله دا ښائی چه که چرې یهودیانوسره یا نورو ذمیانوسره هم د مزارعت معامله اوکړې شي نو جائزدی. په دې معامله کښې اتحادملل ضروری نه دې چه مسلمان دې مسلمان سره د مزارعت معامله کوی. (۲)

---

.....بقیه ازصفحه گذشته] په کوم کښې چه بعض جائز دی او بعض ناجائز. صاحب بدائع الصنائع علامه کاسانی رحمه الله دا صورتونه په تفصیل سره بیان کړې دی. دا صورتونه مختصراً د ذیل جدول کښې بیان کړې شوی دی:

| نمبرشمار | دزمکې دمالك د طرف نه | د تقسیم کونکی طرف نه | حکم |
|---|---|---|---|
| ۱ | زمکه، تخم، دکرآله | عمل | جائزدی |
| ۲ | زمکه | دکرآله تخم عمل | جائزدی |
| ۳ | زمکه تخم | عمل دکرآله | جائزدی |
| ۴ | زمکه دکرآله | تخم عمل | په ظاهرروایت کښې ناجائزدی اود امام ابویوسف رحمه الله په نیزجائزدی. |
| ۵ | زمکه عمل | تخم دکرآله | په ظاهرروایت کښې ناجائزدی اود امام ابویوسف رحمه الله په نیزجائزدی. |
| ۶ | زمکه عمل دکرآله | تخم | په ظاهرروایت کښې ناجائزدی اود امام ابویوسف رحمه الله په نیزجائزدی. |

**دتفصیل دپاره اوګورئی بدائع الصنائع:۸/۲۷۱، ۲۷۲القاموس الفقهی:۵/۸۴.**

(۱) عمدة القاری:۱۲/۲۳۸.

(۲) إرشادالساری:۵/۳۱۷.

احديث ۲۲۰۶ [(۱) حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ- رضى الله عنهما- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- أَعْطَى خَيْبَرَ الْيَهُودَ عَلَى أَنْ يَعْمَلُوهَا وَيَزْرَعُوهَا، وَلَهُمْ شَطْرُ مَا خَرَجَ مِنْهَا. [ر: ۲۱۶۵]

**ترجمه**:- دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه روايت دې چه حضورپاك دَ خيبر (زمكه) يهوديانوته حواله كړه په دې شرط چه هلته زمكه اړونى اوكركونى اوچه كوم پيداوارى دَهغې نيم اخلئى.

## رجال الحديث

**ابن مقاتل**:- دا محمد بن مقاتل مزوزى بغدادى ابوالحسن رحمه الله دې.[2]

**عبدالله**:- دا عبدالله بن مبارك رحمه الله دې.[3]

**عبيدالله**:- داعبيدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمربن خطاب العمرى رحمه الله دې.[4]

**نافع**:- دا نافع مولى عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې.[5]

**ابن عمر**:- حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما احوال هم تيرشوى دى.[6]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت ښكاره دې.

# ۱۰- باب: مايكره من الشروط فى المزارعة

### په مزارعت كښې كوم شرطونه لګول مكروه دى.

**دَترجمة الباب مقصد**:- امام بخارى رحمه الله په دې ترجمة الباب سره داخودل غواړى چه دَحضرت رافع رضي الله عنه وغيره په روايت كښې چه دَ كوم مزارعت نه منع كړې شوې ده هغه يومخصوص صورت وو او په هغې كښې به مخاطره وه. داسې چه عقدبه په داسې شرط باندې مشتمل وه. په كوم كښې چه به جهالت وو اوهغه به مودى الى الغرر وو. په دې وجه هغه ناجائز اوګرځولې

---

[1] وأخرجه البخارى رحمه الله تعالى أيضًا فى باب المزارعة بالشطر ونحوه رقم:۲۳۲۸ وباب إذا لم يشترط السنين فى المزارعة رقم:۲۳۲۹ وفى الاجارة باب إستاجر ارضًا فمات احدهما رقم:۲۲۸۵ وفى الشركة باب مشاركة الذى والمشركين فى المزارعة رقم:۲۴۹۹ وفى الشروط فى المعاملة رقم:۲۸۲۰ وأخرجه مسلم فى كتاب المساقاة والمزارعة رقم:۳۹۳۶، ۳۹۳۷ وأبوداؤد رحمه الله تعالى فى البيوع رقم:۳۴۰۸، ۳۴۰۹ والترمذى رحمه الله تعالى فى الاحكام باب ماذكرفى المزارعة رقم:۱۳۸۳ والنسائى فى المزارعة باب اختلاف الالفاظ المأثورة فى المزارعة رقم:۹۳۹

[2] كشف البارى:۲۰۶/۳.

[3] كشف البارى:۴۶۲/۱.

[4] كشف البارى كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت.

[5] كشف البارى:۶۵۱/۴.

[6] كشف البارى:۶۳۷/۱.

شو دمزارعت هرصورت ناجائزنه دي.(۱)

[حدیث ۲۲۰۷](۲) حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ يَحْيَى سَمِعَ حَنْظَلَةَ الزُّرَقِيَّ عَنْ رَافِعٍ -رضي الله عنه- قَالَ كُنَّا أَكْثَرَ أَهْلِ الْمَدِينَةِ حَقْلاً، وَكَانَ أَحَدُنَا يُكْرِي أَرْضَهُ، فَيَقُولُ هَذِهِ الْقِطْعَةُ لِي وَهَذِهِ لَكَ، فَرُبَّمَا أَخْرَجَتْ ذِهِ وَلَمْ تُخْرِجْ ذِهِ، فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-. [ر: ۲۲۰۲]

**ترجمه**:- حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه فرمائی چه مونږ تولوبه دمدینې والانه ډیره زمینداری کوله او په مونږ کښې به چاچپله زمکه په کرایه ورکوله او وئیل به ئې چه دزمکې دا حصه به زه اخلم اودابه ته اخلې. بیابه کله داسې کیدله چه په هغه حصه کښې به پیداوار وو او په هغه حصه کښې به پیداوارنه وو په دې وجه حضورپاك صلی الله علیه وسلم ددې نه منع اوفرمائیله.

## رجال الحدیث

**صدقة بن الفضل**:-داصدقة بن الفضل، ابوالفضل مروزی رحمه الله دي.(۳)

**ابن عیینه**:- دا سفیان ابن عیینه رحمه الله دي.(۴)

**یحیی**:- دایحیی بن سعید انصاری رحمه الله دي.(۵)

**حنظلة**:- دا حنظلة بن قیس الزرقی رحمه الله دي. ددوی تفصیلی احوال باب قطع الشجر والنخل الخ نه پس والاباب (بدون الترجمة) کښې تیرشوی دی.

**رافع**:- دا رافع بن خدیج رضی الله عنه دي.(۶)

**حل لغات**:- **حقلا**: أی الزرع فصل، دکرقابله زمکه، کولاؤ میدان جمع حقول راځی. د باب ضرب نه مستعمل دي په معنی دکر، زمینداری کول اوهم ددې نه محاقلة ده.(۷)

---

(۱) فتح الباری:۱۹/۵.

(۲) وأخرجه مسلم فی البیوع باب کراء الارض بالذهب الورق رقم:۴۰۳۵ وأبوعوانة فی مستخرجه باب ذکر الاخبار المبیحة مؤجرة الارض البیضاء بالذهب والفضة رقم:۴۰۲۴، ۴۲۰۶ والبیهقی رحمه الله تعالی فی سننه الکبری کتاب المزارعة باب بیان المنهی عنه وأنه مقصور علی کراء الارض الخ رقم:۱۱۵۰۲ والطحاوی فی شرح معانی الاثار کتاب المزارعة والمساقاة رقم:۵۹۳۵.

(۳) کشف الباری کتاب السلم باب السلم فی وزن معلوم.

(۴) کشف الباری:۲۳۸/۱، ۱۰۲/۳.

(۵) کشف الباری:۲۳۸/۱، ۳۲۱/۲.

(۶) کشف الباری کتاب مواقیت الصلاة باب وقت المغرب.

(۷) النهایة لابن الثیر رحمه الله تعالی:۴۰۷/۱.

**دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: (فيقول: هذه القطعة لى وهذه لك)** سره واضح دې. دا يقينًا داسې شرط دې چه مفضى الى النزاع دې.[1]

## ۱۱-باب: إذا زرع بمال قوم بغير إذنهم، وكان فى ذلك صلاح لهم

**كه د يوقوم مال بغيرد تپوس نه په زميندارئى كښې اولګولې شى او په هغې كښې د دغه قوم فلاح اوفائده وى**

**دَترجمة الباب مقصد:-**

**دَعلامه ابن المنير المالكى رحمه الله قول:** علامه ابن منير رحمه الله فرمائى چه دَ امام بخارى رحمه الله مقصود دَدې ترجمة الباب نه دادې كه يوسړې دَچامال يا غله وغيره دَدې دَپاره كرى چه ضايع نه شى نودَدې كركونكى والا دَ نيت دَ اخلاص دَ وجې به په ده باندې ګناه نه راځى اودَ هغه دا كرل به جائزګرځولې شى. اوس پاتې شوه داخبره چه په ده به ضمان راځى كه نه نوابن منير رحمه الله فرمائى چه سره دَده دَ نيك نيتئى دَبل غله بغيردَ اجازت نه كرل رافع للضمان به نه وى بلكه په ده به ضمان راځى.[2]

مګرپه دې كښې اشكل دادې چه امام بخارى رحمه الله هم دَدې دريوحضراتو حديث دلته نقل كړې دې چه غاركښې بند شوى وو اوبيا دَخپل نيك اعمالو واسطه وركولوسره دَالله تعالى نه دعاكړې وه. دلته بغيردَ اجازت نه كر كونكى باندې دَ ضمان هيڅ تذكره نشته په دې وجه دَ ابن منير رحمه الله دابيان مشكوك كيږى.

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله قول:-** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى امام بخارى رحمه الله په دې ترجمة الباب سره دا خودل غواړى كه يوسړى دَ چاغله بغيردَ اجازت نه دَ اصلاح په نيت اوكرله نوهغه به دَ

---

[1]) عمدة القارى:۱۲/۲٤۰.

**دَ مزارعت دَ بعض مزيدشروط فائده بيان:-** ① هرهغه شرط كوم چه شيوع ختم كړى مفسدمزارعت به وى. مثلاً تخم والا اووئيل چه زه به په رومبى پيداواركښې دَخپل تخم په اندازه باندې اخلم اوباقى پيداواربه په دواړو كښې برابر تقسيميږى نودا شرط مفسدمزارعت دې. ځكه چه كه پيداوار دَتخم نه زيات اوشو نو دَتخم په اندازه شركت ختم شو چه مفسددې او كه چرې دَتخم نه زيات پيداوار اونه شى نوشركت به بالكل ختم شى اوداهم مفسدمزارعت دې. (البداية مع شرحه البناية: ۱۱/٤۹۰) ② دغه شان كه چرې دا شرط اولګولې شى چه يوته به غله اوبل ته به بوس ملاويږى نو په دې صورت كښې هم شركت ثابت نه دې لهذا مزارعت فاسددې. (حواله بالا) ③ دغه شان كه دواړو داشرط اوكړو چه بوس به نيم نيم اوغله به په دې دوو كښې دَ يو وى نوداشرط هم فاسد دې او عقدمزارعت به فاسد كړى ځكه چه اصل مقصودخو غله ده نه چه بوس او په صورت مذكوره كښې په غله كښې شركت ثابت نه دې. (حواله بالا).

[2]) المتوارى ص:۲٦۱.

چاوې ددې زمیندارئی نه حاصلیدونکی دغه غله د زارع وی یاچه کوم مالك وو دهغه به وی.(١)

**د فقهاؤ د اختلاف بیان:**-په دې مذکوره مسئله کښې د فقهاؤ اختلاف دې د کوم تفصیل چه کتاب الاجارة، باب من استاجر اجیراً فترك أجرة فعمل فیه المستاجر فزاد الخ کښې تیر شوې.

[حدیث ٢٢٠٨](٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَبُو ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ -رضي الله عنهما- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «بَيْنَمَا ثَلاَثَةُ نَفَرٍ يَمْشُونَ أَخَذَهُمُ الْمَطَرُ، فَأَوَوْا إِلَى غَارٍ فِي جَبَلٍ، فَانْحَطَّتْ عَلَى فَمِ غَارِهِمْ صَخْرَةٌ مِنَ الْجَبَلِ فَانْطَبَقَتْ عَلَيْهِمْ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ انْظُرُوا أَعْمَالاً عَمِلْتُمُوهَا صَالِحَةً لِلَّهِ فَادْعُوا اللَّهَ بِهَا لَعَلَّهُ يُفَرِّجُهَا عَنْكُمْ. قَالَ أَحَدُهُمُ اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانَ لِي وَالِدَانِ شَيْخَانِ كَبِيرَانِ، وَلِي صِبْيَةٌ صِغَارٌ كُنْتُ أَرْعَى عَلَيْهِمْ، فَإِذَا رُحْتُ عَلَيْهِمْ حَلَبْتُ، فَبَدَأْتُ بِوَالِدَىَّ أَسْقِيهِمَا قَبْلَ بَنِيَّ، وَإِنِّي اسْتَأْخَرْتُ ذَاتَ يَوْمٍ فَلَمْ آتِ حَتَّى أَمْسَيْتُ، فَوَجَدْتُهُمَا نَامَا، فَحَلَبْتُ كَمَا كُنْتُ أَحْلُبُ، فَقُمْتُ عِنْدَ رُءُوسِهِمَا، أَكْرَهُ أَنْ أُوقِظَهُمَا، وَأَكْرَهُ أَنْ أَسْقِيَ الصِّبْيَةَ، وَالصِّبْيَةُ يَتَضَاغَوْنَ عِنْدَ قَدَمَىَّ، حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ، فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُهُ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ لَنَا فُرْجَةً نَرَى مِنْهَا السَّمَاءَ. فَفَرَجَ اللَّهُ فَرَأَوُا السَّمَاءَ. وَقَالَ الآخَرُ اللَّهُمَّ إِنَّهَا كَانَتْ لِي بِنْتُ عَمٍّ أَحْبَبْتُهَا كَأَشَدِّ مَا يُحِبُّ الرِّجَالُ النِّسَاءَ، فَطَلَبْتُ مِنْهَا فَأَبَتْ حَتَّى أَتَيْتُهَا بِمِائَةِ دِينَارٍ، فَبَغَيْتُ حَتَّى جَمَعْتُهَا، فَلَمَّا وَقَعْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا قَالَتْ يَا عَبْدَ اللَّهِ اتَّقِ اللَّهَ، وَلاَ تَفْتَحِ الْخَاتَمَ إِلاَّ بِحَقِّهِ، فَقُمْتُ، فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُهُ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ عَنَّا فُرْجَةً. فَفَرَجَ. وَقَالَ الثَّالِثُ اللَّهُمَّ إِنِّي اسْتَأْجَرْتُ أَجِيرًا بِفَرَقِ أَرُزٍّ، فَلَمَّا قَضَى عَمَلَهُ قَالَ أَعْطِنِي حَقِّي. فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ، فَرَغِبَ عَنْهُ، فَلَمْ أَزَلْ أَزْرَعُهُ حَتَّى جَمَعْتُ مِنْهُ بَقَرًا وَرَاعِيهَا فَجَاءَنِي فَقَالَ اتَّقِ اللَّهَ. فَقُلْتُ اذْهَبْ إِلَى ذَلِكَ الْبَقَرِ وَرُعَاتِهَا فَخُذْ. فَقَالَ اتَّقِ اللَّهَ وَلاَ تَسْتَهْزِئْ بِي فَقُلْتُ إِنِّي لاَ أَسْتَهْزِئُ بِكَ فَخُذْ. فَأَخَذَهُ، فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ مَا بَقِيَ، فَفَرَجَ اللَّهُ».

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَقَالَ ابْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ فَسَعَيْتُ. [ر: ٢١٠٢]

**ترجمه:**- حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوی چه یوځل درې کسان په سفر

---

١) فتح البارى:٥/٢٠.

٢) وأخرجه البخارى أيضًا فى باب إذا اشترى شيئًا لغيره بغير إذنه فرض رقم:٢١٠٢ وفى باب إجابة دعاء من بروالديه رقم:٥٥١٧ وأخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء التوبة والا ستغفار باب قصة اصحاب الغار رقم:٢٧٤٣ وأبوعوانة فى مسنده باب ذكرالخبرالدال على الاباحة لمتولى الخ رقم:٥٥٤٩ وبزارفى مسنده: ٢٣٩/٢ رقم:٥٦٧١ والبيهقى رحمه الله تعالى فى شعب الايمان فى الوالدين رقم:٧٤٦٨

روان وو باران هغوی راګیر کړل نو هغوی د یوغر په ډډ کښې ورننوتل. د هغوی داخلیدوسره یولوئی کاڼړې د غرنه راؤخوئیدو او د غار غله ئی بنده کړه. هغوی یوبل ته اووئیل چه خپل خپل نیك اعمال یاد کړئی چه تاسو د الله تعالی د پاره کړی وی اود الله تعالی نه د هغې په ذریعه دعااوکړئی کیدې شی چه الله تعالی دا آفت تاسو نه اخواکړی.

په دوی کښې یواووئیل زما مورپلار بوډاګان وو اوزما بچی هم واړه واړه وو. ما د هغوی د پاره څاروی څرول کله چه به ماښام کورته راتلم نو پئې به مې لشل اود خپلو بچونه وړاندې به مې مور پلارته ورکول. یوه ورځ په ما ناوخته شو زه د شپې کورته راننلم کله چه راغلم اومې کتل چه مور پلار مې اوده دی. ماپئی اولشل لکه څنګه چه به مې لشل او پئی په لاس د هغوی سر ته ولاړ ووم. ما هغوی راپاسول خوښ نه کړل او اول مې په خپلو بچویاندې څکل هم مناسب نه ګنړل. هغوی زما خپو کښې شور کولو ترسحرپورې هم دغه حال وو. یا الله تاته پته ده چه دا کار ما ستاد رضاد پاره کړې وی نو داکاڼړې لږ شان اخواکړې چه مونږ آسمان اولیدې شو هغه کاڼړې لږ شان اخوا شواو هغوی ته آسمان ښکاره شو.

هغه بل کس اووئیل یا الله زما یوه د تره لور وه هغې سره ما ډیرمحبت کولو لکه څومره چه د سړو ښځوسره وی. ما د هغې نه (د خراب کار) مطالبه اوکړه هغې اونه منل. تردې چه ماهغې ته سل دیناره ورکول. ماد هغې فکرکولواوسل دیناره مې راجمع کړل. کله چه زه (د خراب کار د پاره) د هغې د خپو په مینځ کښې کیناستم نوهغې اووئیل اې د الله بنده د الله تعالی نه اوویرېږه اوزما پیغلتوب ناحقه مه ضایع کوه زه (اوویریدم) پاسیدم تاته پته ده چه دغه کارما ستاد رضا د پاره اوکړو نوته داکاڼړې لږ شان نور هم اخواکړه نو هغه نور هم اخواشو.

دریم اووئیل یا الله ما یوسړې په مزدورئی ساتلې وود یوفرق اوریژو په بدله کښې. کله چه هغه خپل کارختم کړو مزدوری اوغوښتله ما ورکوله نوهغه وانخستله. ما په هغې زمینداری اوکړه او په هغې مې غواګانې غویان او څرونکی راجمع کړل بیا هغه مزدور راغلو وئی وئیل د الله تعالی نه اوویرېږه ماوئیل چه ورځه دغه غواګانې غویان او څرونکی ټول ستا دی اوره. هغه وئیل د الله تعالی نه اوویرېږه ماسره ټوقې مه کوه ما اووئیل زه تاسره ټوقې نه کوم دغه ټول واخله هغه واخستل. تاته پته ده چه ما داکارستاد رضاد پاره کړې دې نودا باقی کاڼړې هم اخواکړه نوالله تعالی هغه اخواکړو.

امام بخاری رحمه الله فرمائی چه عقبه رحمه الله نه د نافع رحمه الله نه (په ځائی د فَبَغَیْتُ) فَسَعَیْتُ روایت کړې دې.

## رجال الحدیث

**ابراهیم بن منذر:-** دا ابراهیم بن منذر حماسی رحمه الله دې.[1]

**ابوضمرة:-** دا انس بن عیاض لیثی رحمه الله دې.[2]

**موسیٰ بن عقبة:-** داموسیٰ بن عقبه اسدی مدنی رحمه الله دې.[3]

---

[1] کشف الباری:۳/۵۸.

[2] کشف الباری کتاب الوضوء باب التبرز فی البیوت.

[3] کشف الباری کتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء.

**نافع**: - انافع رحمه الله مولی عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. [۱]

**عبدالله بن عمر**: - اود حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما احوال هم تیرشوی دی. [۲]

**حل لغات**: - **فرق**: د مدینې منورې د معروف اندازې نوم وو د دې جمع أفراق راځی. [۳] بعض حضرات فرمائی چه یو فرق د ۳۶ رطل وی. [۴] اود بعض حضراتو په نیزد دریو صاع برابردې. [۵] او علامه قتبی رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه یوفرق هغه مکیال دې چه په کوم چه ۱۶ رطل راځائی شی. [۶]

**أرز**: اوریژې (د همزه او راء په ضمه سره) او یولغت رُزّ د راء په ضمه سره بغیرد همزه نه دې.

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت**: - د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې توګه باندې دې چه مستاجر د اجیرد پاره یواجرت متعین کړې وو خوچه کله اجیر اعراض اوکړو نو مستاجرد هغه په اجرت کښې داسې تصرف اوکړو چه د اجیر په فلاح او صلاح باندې مشتمل وو نوکه د هغه تصرف کول ناجائزوې نودابه معصیت شمیرلې شو اوهغه مستاجر به د دغه عمل په توګه وسیله د الله تعالی په مخکښې نه پیش کوله. [۷]

**قوله: (بفرق أرز) باندې یواشکال اود هغې جواب**: - دلته یواشکال دا پیداکیږی چه حدیث باب کښې فرق أرز ذکر دې. او په کتاب البیوع باب إذا اشتری شیئًا لغیره بغیرإذنه فرضی کښې کوم روایت تیرشوې دې په هغې کښې فرق ذرة ذکردې.

**جواب**: - په دې دواړو روایتونوکښې د تطبیق وجه داده چه اجرت په دغه دواړو صنفونوباندې مشتمل وو. [۸] یا دوه اجیران وو د یواجرت په أرز باندې مشتمل وو اود دویم په ذرة باندې. [۹] یا خو ارز او ذرة دواړه د غلې اقسام متقاربه نه دی لهذا د یوبه بل باندې اطلاق اوکړې شو. [۱۰]

---

[۱]) کشف الباری: ۶۵۱/٤.

[۲]) کشف الباری: ۶۳۷/۱.

[۳]) طلبة الطلبة للنسفی ص: ۹۶، عمدة القاری: ۲٤۲/۱۲.

[٤]) حواله بالا.

[۵]) إرشادالساری: ۳۲۰/۵.

[۶]) طلبة الطلبة للنسفی ص: ۹۶، عمدة القاری: ۳۲۰/۱۲.

[۷]) طلبة الطلبة للنسفی ص: ۲۱۸.

[۸]) عمدة القاری: ۲٤۲/۱۲.

[۹]) حواله بالا.

[۱۰]) فتح الباری: ۲۰/۵.

**قوله:** (قال ابوعبدالله الخ) - دَاسماعيل بن عقبة رحمه الله دا تعليق امام بخارى رحمه الله كتاب الادب باب إجارة دعاء من بروالديه كښې موصولاً ذكر كړې دې. (۱)

دَدې حديث په فوائد باندې تفصيلى بحث كتاب الاجارة باب من استاجر اجيراً فترك أجره فعمل فيه المستاجر فزاد الخ كښې تيرشوې دې.

## ۱۲ - باب: أوقاف أصحاب النبي ﷺ، وأرض الخراج، ومزارعتهم ومعاملتهم

وَقَالَ النَّبِيُّ لِعُمَرَ: (تَصَدَّقْ بِأَصْلِهِ لاَ يُبَاعُ، وَلَكِنْ يُنْفَقُ ثَمَرُهُ) فَتَصَدَّقَ بِهِ [ر: ۲۶۱۳]

دَ صحابه كرام رضي الله عنهم اوقاف اوخراج زمكې اودهغې دَمزارعت او معاملاتوبيان اوحضورپاك حضرت عمر رضي الله عنه ته فرمائيلي وو چه اصل زمكه وقف كړه چه دا څوك خرڅه نه كړې شى البته دَدې ميوې دې خورى حضرت عمر رضي الله عنه هم داسې اوكړه.

**دَترجمة الباب مقصد:** - په دې ترجمة الباب سره دَامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه څنګه املاك خاصه په مزارعت باندې وركولې شى دغه شان وقف شوې زمكې او دَخراج زمكې هم په مزارعت وركولې شى (۲)

او مؤلف رحمه الله دَاوقاف اصحاب نبى رضي الله عنهم تصريح څكه كړې ده چه دَ ټولونه وړاندې حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم وقف كړې وو يعنى حضرت عمر رضي الله عنه وقف كړې وو نوچه كوم حكم دَهغوى دَوقف دې هم هغه حكم دَټولو صحابه كرامو رضي الله عنهم دَ اوقاف دې. (۳)

امام بخارى رحمه الله دَ اوقاف دَ زمكې مزارعت مسئله دَحضرت عمر رضي الله عنه متعلقه روايت سره ثابته كړې ده او دَ خراج زمكه په مزارعت باندې وركولو مسئله **قوله: (لولا آخر المسلمين ما فتحت قرية الخ)** سره ثابته كړې ده. (۴)

رسول الله ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته اوفرمائيل **تصدق باصله لايباع** مطلب دادې چه ته دغه زمكه صدقه كړه يعنى وقف ئى كړه بيابه داخرڅولې نه شى اودَ دې ميوې به خرچ كولې شى ليكن دَ اول نه تر آخره پورې په دې كښې دا تصريح نشته چه كر به وقف كونكې كوى يا په بل باندې به كولې شى. لهذا دَدې په عموم كښې هغه صورت هم داخل دې چه كله واقف پخپله كراوكړى اوهغه صورت هم داخل دې چه په بل باندې كر اوكړې شى.

---

(۱) إرشادالسارى:۳۲۱/۵.

(۲) عمدة القارى:۲۴۳/۱۲.

(۳) حواله بالا.

(۴) عمدة القارى:۲۴۳/۱۲ فتح البارى:۲۱/۵.

**قوله:** (وقال النبي صلى الله تعالى عليه وسلم لعمر رضى الله تعالى عنه: تصدق بأصله لايباع ولكن ينفق ثمره فتصدق به): دا تعليق امام بخارى رحمه الله كتاب الوصايا باب قول الله تعالى ﴿ وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى ﴾ (النساء: ۶) كښې موصولاً ذكر كړې دې.[1]

[حديث ۲۲۰۹] (۲) حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ عُمَرُ -رضى الله عنه- لَوْلاَ آخِرُ الْمُسْلِمِينَ مَا فُتِحَتْ قَرْيَةٌ إِلاَّ قَسَمْتُهَا بَيْنَ أَهْلِهَا كَمَا قَسَمَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- خَيْبَرَ.[۲۹۵۷، ۳۹۹۴، ۳۹۹۵]

**ترجمه:** حضرت عمر رضي الله عنه فرمائى كه ماته دآخرې زمانې دَدې مسلمانانو خيال نه وو نوچه كوم كلې مې هم فتح كولو هغه به مې په فتح كونكوكښې تقسيم كولو لكه چه حضور پاك خيبر تقسيم كړې وو.

## رجال الحديث

**صدقة:** دا صدقه بن فضل مروزى رحمه الله دې.[3]

**عبدالرحمن:** دا عبدالرحمن بن مهدى بن حسان، ابوسعيد ازدى بصرى رحمه الله دې.[4]

**مالک:** دا معروف امام مالك بن بن انس بن مالك بن ابى عامر، ابوعبدالله مدنى رحمه الله دې.[5]

**زيدبن اسلم:** دا زيدبن اسلم قرشى مدنى رحمه الله دې.[6]

**عن أبيه:** دا اسلم عدوى مولى عمر بن خطاب رحمه الله دې.[7]

**عمر** رضي الله عنه: داحضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه دې. دَدوى تذكره وړاندې تيره شوې ده.[8]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت:** علامه عينى رحمه الله فرمائى دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت داسې دې چه حضرت عمر رضي الله عنه فتح شوې زمكې نه وې تقسيم كړې بلكه هلته

---

[1] حواله بالا.

[2] أخرجه البخارى رحمه الله تعالى أيضًا فى كتاب الجهاد باب الغنيمة لمن شهدالوقعة رقم:۳۱۲۵ وفى باب غزوة خيبر رقم:۴۲۳۶ وأخرجه أبوداؤد فى سننه فى كتاب الجهاد باب ماجاء فى حكم أرض خيبر رقم:۳۰۲۲ والامام أحمدفى مسنده: ۴۰/۱ فى مندعمر بن خطاب رضى الله تعالى عنه رقم: ۲۸۴ والبيهقى فى معرفة السنن والاثار:۲۳۹/۹ رقم:۴۲۲۳.

[3] كشف البارى كتاب السلم باب السلم فى وزن معلوم.

[4] كشف البارى كتاب الصلاة بب فضل استقبال القبلة يستقبل باطراف رجله الخ.

[5] كشف البارى: ۲۹۰/۱، ۸۰/۲.

[6] كشف البارى: ۲۰۳/۲.

[7] كشف البارى كتاب الزكاة باب هل يشترى الرجل صدقته الخ..

[8] كشف البارى:۲۳۹/۱، ۴۷۴/۲.

اوسيدونكوذميانو باندې خراج مقرركولوسره هغوی سره دمزارعت معامله كړې وه.[1]

**تشريح**: حضرت عمر رضی الله عنه داخبره هغه وخت اوفرمائيله چه كله شام فتح شوې وو اوفاتحين شام دحضرت عمر رضی الله عنه نه مطالبه كړې وه چه دنورو غنائمو په شان تاسو داهم تقسيم كړئ. نوحضرت عمر رضی الله عنه دامطالبه اونه منله. په دې مطالبه كونكوكښې حضرت بلال رضی الله عنه هم شامل وو دحضرت عمر رضی الله عنه رائې داوه چه صرف غنائم منقوله تقسيم كړئ اوكوم غنائم چه غيرمنقوله دی هغه مه تقسيم كوئ بلكه په خپل حال ئې پرېږدئ. چه كله حضرت بلال وغيره رضی الله عنهم ډير اصراراوكړو نوحضرت عمر رضی الله عنه ارشاد اوفرمائيلو: اللهم! اكفنی بلالاً وأصحاب بلال د دې واقعه راوی نافع مولی ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه فما حال الحول عليهم حتی ماتوا جميعًا يعنی اوس لا يو كال هم تيرشوې نه ووچه حضرت بلال رضی الله عنه اودهغه ملګری وفات شو.[2]

علامه بيهقي رحمه الله فرمائی چه حضرت عمر رضی الله عنه دا دعا څكه فرمائيلې وه چه دهغوی د زمكې د تقسيم نه د انكار سبب مصلحت عامه وو اودهغوې مخې ته دعوامو فلاح اوبهبود وو اوهغه حضراتو د خپلو مستدلاتو پيش نظر ددې مخالفت كولو اود حضرت عمر رضی الله عنه خيال وو كه چرې داحضرات هم دهغوی دمصلحت رائې باندې پوهه شی اودهغه موافقت اوكړی نودهغوی نور ملګری به هم دهغوی متابعت اوكړی.[3]

**قوله**: (كما قسم النبی صلی الله تعالی عليه وسلم خيبر):- يادساتئی رسول الله صلی الله عليه وسلم څه زمكې خو تقسيم كړې وې خو څه ئې باقی پاتې كړې وې اويهوديانوته ئې هغه زمكې دخراج په وجه وركړې وې. اويهوديانوبه په دغه خراجی زمكوكښې كركيله كوله اودهغوی نه به ئې دغه خراج نيم پيداوار په شكل كښې وصول كولو. دكوم تفصيل چه په روستوابواب كښې تيرشو.

**په مفتوحه زمكوكښې د فقهاؤ اختلاف**:- اوس دلته يوه مسئله ده چه په مفتوحه زمكوكښې څه حكم دې؟ آيا هغه به تقسيم كولې شی كه هغه موقوف وی؟ امام مالك رحمه الله فرمائی چه فتح كيدو سره زمكه وقف كيږی لهذا ددې تقسيم به نه كيږی اود دې زمكو امدن به دمسلمانانو په مصالح كښې خرچ كولې شی. مثلاً د فوج وظائف د پولونو جوړول د جماتونوجوړول وغيره.

خوكه امام يووخت د دغه زمكوپه تقسيم كښې مصلحت ګڼړی نوتقسيم كولې به شی.[4] امام شافعی رحمه الله فرمائی كه دنورو غنائمو په شان ددې تقسيم هم لازمی وی[3] اوكه چرې غانمين دهغې په وقف باندې راضی شی نوبيابه تقسيم كولې نه شی اوزمكه به وقف شی.[5] حافظ

---

[1]) عمدة القاری:۲۴۴/۱۲.

[2]) مختصر تاريخ دمشق:۸۵/۱ ذكرحكم الارضين وما جاء فيه.

[3]) حواله بالا وشرح البخاری لابن بطال رحمه الله ۲۸۰/۵.

[4]) فتح الباری:۲۲/۵ بداية المجتهد ص:۳۶۶ الفصل الخامس.

[5]) حواله بالا.

ابن حجر رحمه الله او قسطلانی رحمه الله او امام ابوحنیفه رحمه الله صاحبین او سفیان ثوری رحمهم الله مسلك دا نقل کړی دی چه امام ته اختیاردی که غواړی نو تقسیم دی کړی اوکه غواړی وقف دی کړی.[1]

علامه احمدبن اسماعیل کورانی رحمه الله او امام ابوحنیفه او امام احمدبن حنبل رحمهما الله مسلك دانقل کړی دی چه دا زمکې فتح کیدو سره وقف شی اوبیا دامام اختیاردی چه هغه دا په غانمین کښې تقسیم کړی یا په دې باندې خراج مقرر کړی.[2]

## ۱۳-باب: من أحیا أرضا مواتًا

وَرَأَى ذَلِكَ عَلِيٌّ فِي أَرْضِ الْخَرَابِ بِالْكُوفَةِ مَوَاتٌ. وَقَالَ عُمَرُ مَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيِّتَةً فَهِيَ لَهُ. وَيُرْوَى عَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَقَالَ «فِي غَيْرِ حَقِّ مُسْلِمٍ، وَلَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ فِيهِ حَقٌّ. أَوَيُرْوَى فِيهِ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

غیرآباد (شاړه) زمکه چه څوك آباده کړی او حضرت علی رضی الله عنه دکوفې په شاړه زمکه کښې دا حکم ورکړو اوحضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل څوك چه شاړې زمکې آبادې کړی هغه دهغه کیږی. اود حضرت عمرو بن عوف رضی الله عنه نه هم دغه شان مروی دی هغوی اوفرمائیل چه د حضورپاك نه دومره (مضمون) زیاتی (نقل) دی په دې شرط چه هغه د یو مسلمان ملك نه وی اود یوظالم په زمکه کښې هیڅ حق نشته. اودحضرت حابر رضی الله عنه په روایت کښې هم د رسول الله ﷺ نه هم دغه شان روایت دی.

**حل لغات: موات:** هغه غیرآباد اوشاړه زمکه په کومه کښې چه کله هم یا په ډیره موده کښې زمینداری نه وی شوې او په څه بل عمارت باندې آباده شوې نه وی اودهغې څوك مالك نه وی.[3]

**دترجمة الباب مقصداود فقهاؤ اختلاف:** امام بخاری رحمه الله د دې ځائی نه د احیاء او موات مسئله بیانوی. موات هغه زمکې ته وائی چه شاړه وی اودهغې آبادئی ته په حیات سره تشبیه ورکړې شوه ځکه چه ترك عمارت د فقدحیات مشابه دی.[4]

امام بخاری رحمه الله دحضرت علی رضی الله عنه چه کوم اثرنقل کړی دی دهغې نه معلومیږی چه موات هغه زمکې ته وائی چه خرابه او شاړه وی. امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه موات هغه زمکه ده چه د چا ملکیت نه وی اودې سره دعوام الناس مرافق تړلې نه وی.[5] یعنی دښاروالا دانتفاع دې سره تعلق نه وی هلته دهغوی د څرن ځایونه عیدګاه وغیره نه وی.

---

[1] إرشادالساری:۳۶/۷ فتح الباری:۲۲/۵.
[2] الکوثر الجاری:۴۸/۵.
[3] النهایة:۶۸۸/۲طلبة الطلبة:۳۱۳.
[4] فتح الباری:۲۲/۶.
[5] عمدة القاری:۲۴۴/۱۲.

احیاء موات دادې چه یوسړې لاړشی دغه زمکه راګیره کړی او بیا هغه اوبه کړی او په کښې کر اوکړی. په احیاء موات سره به دا سړې دَدغه زمکې مالك شی یابه په دې کښې دَامام دَ اجازت ضرور وی په دې کښې دَ فقهاء کرامو درې اقوال دی. امام شافعی، امام احمد امام ابویوسف او امام محمد رحمهم الله فرمائی چه صرف په احیاء موات سره به هغه مالك شی دَامام دَاجازت ضرورت نشته (۱) امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائی چه بغیردَ امام دَاجازت نه به هغه مالك نه شی. (۲) امام مالك رحمه الله فرمائی که چرې هغه زمکه ښاریې سره نیزدې وی نودَامام اجازت ضروری دې اوکه چرې لرې وی نو دَامام دَاجازت ضرورت نشته په نیزدې اولرې کښې هغه دا فرق کړې دې چه کومې زمکې دَ عیدګاه او چراګاه په توګه یادَ بل څه مصلحت دَ وجې نه په کار راویستې شی نوهغه نیزدې دی اوکوم ځائی کښې چه دَهغوی څناور وغیره نه شی تللې او هغوی ته ددې زمکې دَ استعمال یووخت هم ضرورت نه وی نوهغې ته لرې وائی (۳)

امام بخاری رحمه الله چه کوم آثار او روایات پیش کړی دی دَهغې نه معلومیږی چه هغه په دې مسئله کښې دَ امام شافعی امام احمد اوصاحبین رحمهم الله دَ قول موافقت کړې دې. دَ فریق اول یعنی جمهور مستدل دَ رسول الله ﷺ ارشاد دې. من أحيا أرضاميتة فهى له (۴) څوك چه شاړه زمکه آباده کړی هغه هم دَهغه کیږی دغه شان دَ باب مذکور نور روایات هم دَهغوی مستدلات کښې شامل دی.

اودَ فریق ثانی مستدل دَحضرت صعب بن جثامه رضی الله عنه نه نقل شوې دَحضور پاك دا ارشاد مبارك دې. لاحمى (۵) إلا لله ولرسوله (۶) یعنی حمی دَالله تعالی اودَهغه دَ رسول ﷺ حق دې لهذا که یوسړې دَ یوې زمکې حمی واحیاء کول غواړی نوهغه له دَامام نه اجازت اخستل پکاردی. بل دَامام صاحب رحمه الله دلیل داهم دې چه دا زمکه هم دَ نور مال غنیمت په شان ده او

---

(۱) شرح ابن بطال:۶/۳۹۰عمدة القاری:۱۲/۲۴۵ فتح الباری:۵/۲۲.

(۲) حواله مذکوره.

(۳) حواله مذکوره.

(۴) أخرجه البیهقی فی سننه بلفظ عادی الارض الحدیث ورواه ابن حجررحمه الله تعالی فی تلخیص الخبیر:۳/۶۳ وسیاتی تخرجه تفصیلاً.

(۵) حمی: دَحمی اصل په عربوکښې دا وو چه کله به دَهغوی څوك لوئی سردار په یوځائی کښې ډیره اچوله نودَهغوی یوسپې به جرته اوچت ځائی ته اوختلو او څپاربه ئی اوکړو نوچه ترکوم ځائی پورې به دَهغه آواز رسیدلو هغه زمکه سره دَ ټولو طرفونو دهغه حمی یادیدله او په هغې کښې به دَهغه نه علاوه دَ بل چا څاروی نه شو څریدلې.(نیل الاوطار:۵/۳۳۱)

(۶) أخرجه البخاری رحمه الله تعالی فی کتاب الجهاد باب أهل الدار یبیتون فیصاب الوالدان والدراری رقم:۱۷۴۵ ومسلم رحمه الله تعالی فی الجهاد باب جواز قتل النساء فی البیات من غیر تعمد رقم:۱۵۷۰ والترمذی رحمه الله تعالی فی السیر باب ماجاء فی النهی عن قتل النساء والصبیان رقم:۱۵۷۰ وأبوداؤد رحمه الله تعالی فی الجهاد باب فی قتل النساء رقم:۲۶۷۲ وانظر جامع الاصول:۲/۷۳۲، ۷۳۳ رقم:۱۲۳۲.

په مال غنيمت كښې هيڅ ته داحق حاصل نه وى چه هغه دې سره بغيرد امام داجازت نه مختص شى لكه چه په ټولو غنيمتونو كښې كيږى. لانه مغنوم، لوصوله إلى يد المسلمين بإيجاف الخيل والركاب، فليس لاحد أن يختص به بدون إذن الامام كما فى سائر الغنائم. [1]

يوبل روايت بعض فقهاء د احنافو پيش كوى چه ليس للمرء إلا ماطابت نفس إمامه به امام طبرانى رحمه الله دحضرت معاذ بن جبل رضى الله عنه نه ددې تخريج كړې دې ليكن ددې سند ډيرزيات كمزورې دې. [2]

اوكوموحضراتو چه تفصيل كړې دې لكه امام مالك رحمه الله نودهغوى مخې ته غالبًا داخبره ده چه احاديث مذكوره په اراضى قريبه باندې محمول دى او په كومورواياتو كښې چه على الاطلاق من أحيا أرضا ميتة فهى له فرمائيلې شوى دى هغه په إراضى بعيدباندې محمول دى.

احناف حضرات دا وئيلى شى چه روايات دواړه قسم دى بعض مطلق او په بعض كښې دامام د اجازت قيد وارد شوې دې نودواړه به جمع كولې شى او وئيلې به شى چه كه څوك په أجازت د امام احياء موات كوى نوهغه به د دغه زمكې مالك شى اوڅوك چه بغيرد اذن امام احياء موات كوى هغه به مالك نه وى.

**دتعليقاتو تفصيل:-** د حضرت على رضى الله عنه د قول ماخوذ شراح حديث نه دې ذكركړې. [3] دحضرت عمر رضى الله عنه قول امام مالك رحمه الله عن ابن شهاب عن سالم عن أبيه په طريق سره موصولاً ذكركړې دې. [4] اودغه شان عبيدبن سلام هم كتاب الاموال كښې په خپل سندسره موصولاً ذكركړې دې. [5]

حضرت عمرو بن عوف مزنى رضى الله عنه حديث اسحاق بن راهويه طبرانى ابن عدى او بيهقى رحمهم الله د كثير بن عبدالله عن أبيه عن جده په طريق سره موصولاً ذكركړې دې. [6]

---

[1]) الهداية شرح بداية المبتدى:۲۵۳/۷.

[2]) ذكره الزيلعى رحمه الله تعالى فى نصب الراية:۲۹۰/٤ وقال: رواه الطبرانى وفيه ضعف من حديث معاذ وفى البناية:۳۳۱/۱۱ الاولى أن يستدل لابى حنيفه رحمه الله تعالى بما أخرجه أبويوسف رحمه الله تعالى فى كتابه المسمى بالخراج عن ليث عن طاؤس قال: قال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم عادى الارض لله ولرسوله ثم لكم من بعدى، فمن أحيا أرضًا فهى له وليس للمتحجر حق بعد ثلاث سنين.

[3]) فتح البارى:۲۲/۵ عمدة القارى: ۲٤۵/۱۲ إرشاالسارى:۳۲۳/۵ لامع الدرارى:۲٤۹/٦.

[4]) تغليق التعليق:۳۰۸/۳ فتح البارى:۲۳/۵ عمدة القارى:۲٤۵/۱۲.

[5]) عمدة القارى:۲٤۵/۱۲.

[6]) تغليق التعليق:۳۰۹/۳ السنن لكبير:٤۷/٦ كتاب إحياء الموات باب مايكون إحياء ما يرجى فيه من الاجر. عمدةالقارى:۲٤۵/۱۲.

**قوله: ويروى عن عمرو ابن عوف رضى الله تعالى عنه عن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم:-** زمونږ په متداول نسخو كښې خو دا عبارت داسې دې[1] دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه ابن بطال رحمه الله په نسخه كښې هم دې[2] يعنى په دې كښې دحضرت عمر رضي الله عنه دَ روايت څه تذكره نشته دې. ليكن دَ نورو شراح په نسخو كښې دا عبارت داسې دې چه ويروى عن عمر وابن عوف عن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم.[3] يعنى په دې كښې دحضرت عمر رضي الله عنه دَروايت تذكره هم ده. او وابن عوف كښې واوعاطفه دې.[4]

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه بعض نسخو كښې عمرو بن عوف دې يعنى دَ عين فتحه او ميم په سكون سره او بعض نسخو كښې عمر دې يعنى عمربن خطاب رضي الله عنه او وابن عوف نه مراد عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دې. نوكه اووئيلې شى چه دحضرت عمر رضي الله عنه دَ روايت تذكره خو په دې ترجمة الباب كښې تيره شوې نو اوس دَ مكرر ذكركولو څه فائده؟ نو جواب به وركولې شى چه په دې كښې بعض فوائد دى مثلاً هغه تعليق دَتصحيح په صيغه سره وو او تمريض صيغې سره دې او هغه تعليق بغيردَ زياتى وو اودا زياتوالې الفاظ سره دې. بل تعليق سابق غيرمرفوع وو او تعليق مذكوره مرفوع دې ليكن دَدې ټولو فوائدو باوجود اول قول صحيح دې.[5] (يعنى عمرو، دَعين فتحه او ميم سكون سره). علامه عينى رحمه الله فرمائى چه مراد عمر بن خطاب رضي الله عنه دې (بغيرواو نه).[6] هم عمروبن عوف دې اوچه كومو بعضو نسخو كښې عمر وابن عوف راغلې دې دا تصحيف دې.[7]

اوعلامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه صحيح عمرو بن عوف دې دَعين فتحه اوميم سكون سره او حافظ ابن حجر رحمه الله هم دغه فرمائى اوددوى دَخبرې تائيد دامام ترمذى رحمه الله په قول سره هم كيږى. وفى الباب عن جابرو عمرو بن عوف المزنى جد كثير وسمرة.[8] اودَ ابن عوف نه عبدالرحمن بن عوف مراد اخستل صحيح نه دى لكه چه علامه عينى رحمه الله هم وئيلى دى.[9] ياد ساتئى چه دلته دَ ابن عوف نه مراد عمرو ابن عوف مزنى دې نه چه عمرو بن عوف انصارى بدرى رضي الله عنه

---

[1] صحيح البخارى:١/٣١٤قديمى.

[2] فتح البارى:٥/٢٣دارالكتب العلمية، شرح ابن بطال رحمه الله ١/٣٩٠ دارالكتب العلمية بيروت.

[3] إرشادالسارى:٥/٣٢٣عمدة القارى:١٢/٢٤٦شرح الكرمانى:١٠/١٥٩.

[4] المصدرالسابق.

[5] شرح الكرمانى رحمه الله ١٠/١٥٩.

[6] عمدة القارى:١٢/٢٤٦.

[7] فتح البارى:٥/٢٣.

[8] إرشادالسارى:٥/٣٢٣.

[9] المصدرالسابق.

دڅلور روایت چه به وړاندې په جزیه وغیره کښې راځی.( [1] ) او د هغوی هم دا یو روایت امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې نقل کړې دې.( [2] )

**حضرت عمرو بن عوف مزنی رضی الله عنه نوم اونسب:-** عمرو بن عوف بن زید بن ملحة ابن عمرو بن بکر بن أغرك بن عثمان بن عمرو بن أد بن طابخة المزنی.( [3] )

**کنیت اونسب:-** د هغوی کنیت ابو عبدالله دې مزنی مزینة طرف ته د نسبت د وجې نه دې کوم چه عثمان بن عمرو ام ولد وو.( [4] ) هغوی رضی الله عنه قدیم الاسلام دې.( [5] ) هغوی رضی الله عنه د مدینې منورې اوسیدل اختیار کړی او د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه زمانه ئې لیدلې ده او هم د هغوی د ولایت په زمانه کښې وفات شوې.( [6] )

**روایات:-** دوی د حضور پاك صلی الله علیه وسلم نه روایات نقل کوی او بعض روایتونه ئې د حضرت بلال بن حارث رضی الله عنه نه هم نقل کړی دی.( [7] )

او د هغوی روایات **کثیر بن عبدالله، عن ابیه عن جده** په طریق سره نقل کوی او کثیر رحمه الله ضعیف الحدیث دې.( [8] )امام بخاری رحمه الله په صحیح بخاری کښې د کثیر بن عبدالله روایت استشهاداً نقل کړې دې اوامام ابوداؤد رحمه الله امام ترمذی اوامام ابن ماجه رحمه الله هم د هغوی روایات نقل کړی دی.( [9] ) د حضرت جابر بن عبدالله تعلیق امام احمد رحمه الله اوامام ترمذی رحمه الله موصولاً ذکر کړی دی.( [10] )

**قوله: وقال: فی غیر حق مسلم الخ:-** یعنی حضرت عمرو بن عوف مزنی رضی الله عنه په دې روایت کښې دا زیاتې نقل کړې دې په دې شرط چه هغه د یو مسلمان ملك نه وی او د یو ظالم په دې زمکه کښې څه حق نه وی. عرق ظالم موصوف صفت او اضافت دواړه شان لوستلې شوې دې.( [11] ) د موصوف صفت سره لوستلو کښې دوه صورتونه دی: ړومبې صورت دا چه عرق نه وړاندې ذی مضاف محذوف اومنلې شی او اووئیلې شی لیس لذی عرقٍ ظالمٍ فیه حق یعنی د

---

[1]) فتح الباری:۲۳/۵.

[2])المصدر السابق.

[3]) تهذیب ا لکمال:۱۷٤/۲۲.

[4]) المصدرالسابق.

[5]) المصدرالسابق.

[6]) معرفة الصحابة: ٤۰۲/۳.

[7]) تهذیب الکمال:۱۷۵/۲۲.

[8]) المصدرالسابق.

[9]) المصدرالسابق.

[10]) تغلیق العلیق:۳۰۸/۳فتح الباری:۲۳/۵ – ۲٤ عمدة القاری:۲٤۶/۱۲.

[11]) إرشادالساری:۳۲٤/۵ فتح الباری:۲۳/۵عمدة القاری:۲٤۶/۱۲.

یوې داونې چه دَ ظالم وی په دې کښې هیڅ حق نشته.[1] او دویم صورت داکیدې شی چه لیس لعرقٍ ذی ظلمٍ حق یعنی دَ داسې ونې څه حق نشته چه دَ ظلم والاوی یعنی چه هغه په ظالمانه توګه سره هلته لګولې شوی وی.[2] اضافت سره دَلوستلو صورت دادې چه لیس لعرق ظالمٍ فیه حق دې وخت کښې به دَ عرق نه مراد زمکه وی اومطلب دادې چه دَظالم دَ زمکې په دې کښې هیڅ حق نشته.[3] امام مالک امام شافعی زهری او ابن فارس وغیره رحمهم الله قول اول اختیارکړې دې.[4]

[حدیث ۲۲۱۰][5] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضی الله عنها - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ أَعْمَرَ أَرْضًا لَيْسَتْ لأَحَدٍ فَهْوَ أَحَقُّ».
قَالَ عُرْوَةُ قَضَى بِهِ عُمَرُ - رضی الله عنه - فِي خِلاَفَتِهِ.

**ترجمه:-** دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه حضورپاک ﷺ فرمائیلی چه کوم سړې یوه داسې زمکه آباده کړی چه دَ چاملکیت نه وی هغه دَهغې زیات حقداردې. عروه رحمه الله وائی چه حضرت عمر رضی الله عنه په خپل دورخلافت کښې هم دَدې مطابق فیصله کړې وه.

## رجال الحدیث

**یحیی بن بکیر:-** دایحیی بن عبدالله بن بکیر مخزومی مصری رحمه الله دې.[6]
**اللیث:-** دا امام لیث بن سعد رحمه الله دې.[7]
**عبیدالله بن أبی جعفر:-** دا عبیدالله بن ابی جعفر یسارااموی قرشی مصری رحمه الله دې.[8]
**محمدبن عبدالرحمن:-** دامحمدبن عبدالرحمن بن نوفل ابوالاسود رحمه الله دې.[9]
**عروة:-** دا عروة بن زبیربن العوام رحمه الله دې.[10]
**عائشة:-** اودَ ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها تذکره هم تیره شوې ده.[11]

---

[1] المصدرالسابق.
[2] المصدرالسابق.
[3] المصدرالسابق.
[4] المصدرالسابق.
[5] انفردبه البخاری رحمه الله انظر جامع الاصول:۱/۳۴۷ الکتاب السادس فی أحیاء الموات رقم الحدیث: ۱۳۰.
[6] کشف الباری:۱/۳۲۳.
[7] کشف الباری:۱/ ۳۲٤.
[8] کشف الباری کتاب الغسل باب الجنب یتوضا ثم ینام..
[9] کشف الباری کتاب الغسل باب الجنب یتوضا ثم ینام.
[10] کشف الباری:۱/۲۹۱.
[11] کشف الباری:۱/۲۹۱.

**قوله: من أعمر أرضاً:-** دا لفظ أعمر دباب افعال ثلاثى مزيدفيه نه دى. په معنى آبادول. قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه دا لفظ رواة بخارى داسې ضبط کړې دې ليکن صواب عَمر دې يعنى ثلاثى مجرد دې لکه چه دالله تعالى ارشاد دې. ﴿وَعَمَرُوْهَا أَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوْهَا﴾ (الروم: ۹) [۱]

ابن بطال رحمه الله فرمائى چه رواة بخارى أعمر نقل کړې دې ليکن ماته د لغت په کتابونو کښې داسې نه دې ملاؤشوې لهذا داهم احتمال دې چه په اصل کښې من اعتمرأرضا وى او تائې افتعال د اصل نه پريوتلې وى. [۲] علامه عينى رحمه الله فرمائى چه ددې کلام هيڅ حاجت نشته بياپخپله په دې کښې دغلطئى احتمال دې ځکه چه صاحب العين يعنى علامه خليل ابن احمد رحمه الله ذکرکړې دې چه أعمرت الارض په کلام عرب کښې مستعمل دې اوداسې وئيلې شى أعمرالله بك منزلك نومعلومه شوه چه د رواة بخارى نقل کول صحيح دى او من أعمرأرضاً نه مراد د زمکې احياء ده. [۳]

**قوله: قال عروة: قضى به عمر رضي الله عنه فى خلافته:-** يعنى عروة بن زبير بن العوام رحمه الله هم په دغه مذکوره سندسره فرمائى چه حضرت عمر رضي الله عنه به دخپل خلافت په زمانه کښې هم ددې مطابق فيصله کوله اودا اثرمرسل دې چه حضرت عروه هم دحضرت عمر رضي الله عنه دخلافت په زمانه کښې پيداشوې وو. [۴]

**دحديث ترجمة الباب سره مطابقت:-** دحديث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت ظاهردې. داحديث د فريق اول يعنى امام شافعى امام ابويوسف او امام محمد رحمهم الله مستدل دې چه د زمکې د احياء يعنى آبادولودپاره دامام د اجازت ضرورت نشته که زمکه لرې وى اوکه نيزدې. [۵] د نورو حضراتو په دلائل باندې بحث په شروع کښې تيرشوې دې.

## باب

**دترجمة الباب مقصد:-** داباب بغيردترجمې دې اوداباب د سابق دپاره د فصل په شان دې. [۶]

[حديث ۲۲۱۱] [۷] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ

---

[۱] عمدة القارى:۱۲/۲۴۷إرشادالسارى:۳۲۵/۵.

[۲] شرح ابن بطال:۳۹۲/۶.

[۳] عمدة القارى:۲۴۷/۱۲.

[۴] إرشادالسارى:۳۲۵/۵.

[۵] عمدة القارى:۲۴۷/۱۲.

[۶] إرشادالسارى:۳۲۶/۵.

[۷] أخرجه البخارى رحمه الله تعالى أيضاً فى الحج باب قول النبى صلى الله تعالى عليه وسلم العقيق واد مبارك رقم:۱۵۳۵ وفى الاعتصام باب ماذكرالنبى صلى الله تعالى عليه وسلم وحض على اتفاق أهل العلم الخ رقم:۷۳۴۳ ومسلم رحمه الله تعالى فى الحج باب التعريس بذى الحليفة الخ رقم:۱۳۴۶ والنسائى: ۱۲۶/۵ فى الحج باب التعريس بذى الحليفة وانظر حامع الاصول: ۳۳۹/۹ رقم: ۶۹۷.

بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ - رضي الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أُرِيَ وَهُوَ فِي مُعَرَّسِهِ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ فِي بَطْنِ الْوَادِي، فَقِيلَ لَهُ إِنَّكَ بِبَطْحَاءَ مُبَارَكَةٍ. فَقَالَ مُوسَى وَقَدْ أَنَاخَ بِنَا سَالِمٌ بِالْمُنَاخِ الَّذِي كَانَ عَبْدُ اللَّهِ يُنِيخُ بِهِ، يَتَحَرَّى مُعَرَّسَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَهُوَ أَسْفَلُ مِنَ الْمَسْجِدِ الَّذِي بِبَطْنِ الْوَادِي بَيْنَهُ وَبَيْنَ الطَّرِيقِ وَسَطٌ مِنْ ذَلِكَ. [: ١٤٦٢]

**ترجمه**:- دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه حضورپاك كله دَ شپې (مكې مكرمې ته دَتلو په وخت) په ذوالحليفه كښې يوه ناله كښې وركوزشوې وو نورسول الله ﷺ ته په خوب كښې اووئيلې شو چه تاسو دَ بركت والا په ميدان كښې ئى. حضرت موسى بن عقبه رحمه الله اوونيل چه حضرت سالم رحمه الله مونږ سره هم هلته اوښ كينولو كوم ځائى چه به حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما اوښ كينولو. هغه به هم دَدغه ځائى اراده كوله كوم ځائى چه رسول الله ﷺ مبارك كوزشوې وو. دَهغه جمات لاندې كوم چه ښكته په ناله كښې وو په هغې كښې اودَ لارې په مينځ كښې.

## رجال الحديث

**قتيبة**:- داقتيبه بن سعيد ثقفى رحمه الله دې.[1]

**اسماعيل بن جعفر**:- دااسماعيل بن جعفر انصارى زرقى مدينى رحمه الله دې.[2]

**موسىٰ بن عقبه**:- داموسىٰ بن عقبه اسدى مدينى رحمه الله دې.[3]

**سالم بن عبدالله**:- داحضرت سالم بن عبدالله بن عمر بن خطاب رحمه الله دې.[4]

**عن أبيه**:- دا مشهورصحابى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې.[5]

**حل لغات**:- **معرسه**: بضم الميم وفتح العين المهملة وتشديد الراء المفتوحة عرس تعريسًا نه مفعول دې. په معنى په سفركښې آخره شپه كښې دآرام دَ پاره كوزيدل. او **معرس: موضع التعريس**[6] **وقال صاحب النهاية رحمه الله تعالى: وبه سمى معرس ذى الحليفة، عرس بن النبى صلى الله تعالىٰ عليه وسلم فيه الصبح ثم رحل.**[7]

---

[1] كشف البارى:٢/١٨٩.

[2] كشف البارى:١/٢٧١.

[3] كشف البارى كتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء.

[4] كشف البارى:٢/١٢٨.

[5] كشف البارى:١/٦٣٧.

[6] النهاية:٢/١٨١.

[7] المصدر السابق

**بالمناخ:** بضم المیم، أناخ إناخۃ نه مفعول دې په معنی د اوښ کینولوځائی.[1]

**تشریح:** - د دې حدیث مبارك تشریح کتاب الحج باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم العقیق وادمبارك کښې تیره شوې ده.

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت:** - دا باب خو بغیر د ترجمې دې اوس پاتې شوه د باب سابق سره د حدیث مذکوره سره مطابقت نو په دې سلسله کښې علامه مهلب بن صفرة رحمه الله فرمائی د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې لکه څنګه چه ارض موات د هغه سړی ملکیت جوړیږی څوك چه هغه آباده کړي. دغه شان نبی کریم ﷺ ذوالحلیفه کښې بطن وادئی کښې قیام اوفرمائیلو اوهغه زمکه د چا مملوك نه وه. نو د رسول الله ﷺ هلته قیام کولو اومونځ اداکولو سره هغه د حضوریاك د پاره معرس اومناخ جوړه شوه دغه شان که څوك د غیرمملوك زمکې احیاء کوی نوهغه به د دغې مالك جوړشی.[2]

بیا پخپله هم هغه اعتراض کړې دې په اصل کښې خو به حضوریاك بعض وخت د نورو خلقو په زمکه کښې هم ورکوزیدو اوهلته به ئی مونځ هم کولو لکه چه د حضرت انس بن مالك رضی الله عنه او حضرت عتبان بن مالك رضی الله عنه وغیره کورته حضوریاك تشریف اوړلې وو او هلته ئی مونځ هم کړې وو. بیا د حضوریاك د نزول کولو اومونځ کولوسره د هغوی منزل اومناخ جوړیدل به څنګه صحیح وی؟[3]

د دې یوسیدا ساده جواب دادې چه منزل اومناخ هله جوړیږی کله چه څه مانع نه وی اود بل چامالك کیدل دامانع دی لهذا هلته به دا معرس او منزل نه شی تسلیم کولې. اودلته بطن وادی ذی الحلیفة کښې چونکه دازکه د چامالك نه وو په دې وجه دلته څوك مانع نه وو.

**د علامه ابن المنیر مالکی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله قول:** - علامه ابن المنیر مالکی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله د دې حدیث مبارك په ذریعه داخودل غواړی چه صرف په یوځائی کښې کوزیدلواو هلته شپه تیرولوسره هغه زمکه مملوك نه جوړیږی او په یوځائی کښې کوزیدل او شپه تیرول د احیاء موات په باب کښې داخل نه دی احیاء موات خو به هله کیږی چه کله څوك د دې زمکې احاطه اوکړی.[4]

داهم کیدې شی چه امام بخاری رحمه الله په دې خبره باندې تنبیه ورکوی چه نبی کریم ﷺ چرته نزول فرمائیلې سره د دې چه هغه د احیاء موات په حکم کښې داخله ده لیکن د حضوریاك د تعریس د وجې نه هغه زمکې سره د رسول الله ﷺ سره خصوصیت اوشو او اوس هغه د عامة المسلمین منافع او حقوق سره متعلق شوه لهذا اوس یوسړی ته به د احیاء حق حاصل نه وی

---

[1]) معجم الصحاح: ۱۰۷۶.

[2]) فتح الباری: ۲۵/۵.

[3]) المصدر السابق.

[4]) المتواری علی تراجم البخاری رحمه الله ۲۶۳ بتفصیل. فتح الباری: ۲۵/۵.

لكه چه دمنى زمكه ده رسول الله ﷺ هلته قيام فرمائيلې دې اومناسك حج ئې اداكړى دى نوهغه زمكه سره ددې چه موات هم وى نوكه يوسړې دهغې احياء اوكړى نودهغې مالك نه شى جوړيدې. (١)

**دعلامه عينى رحمه الله رائې:** -علامه عينى رحمه الله د دې حضراتو رائې ردكړې ده اوهغه فرمائى چه د مذكوره حديث په ذريعه امام بخارى رحمه الله ددې خبرې طرف ته اشاره فرمائيلې ده چه ذوالحليفه سره ددې چه غيرآباد خائى دې ليكن څوك د احياء د وجې نه ددې خائى مالك نه شى جوړيدې خكه چه دې سره دعامو خلقو منافع متعلق دى او هرسړې ددې نه نفع حاصلولې شى او دلته كوزيدې شى لهذا د احياء موات په ذريعه محى عام خلق ددغه زمكې نه نه شى بندولې

وجه دخول هذا الحديث فى هذا الباب من حيث أنه أشار به إلى أن ذالحليفة لايملك بالاحياء لما فيه من منع الناس النزول فيه، وأن الموات يجوز الانتفاع به، وأنه غيرمملوك لاحد، وهذاالمقدار كافٍ فى وجه المطابقة، وقد تكلم المهلب فيه بما لا يجدى، ورد عليه ابن بطال بمالا ينفع، وجاء آخر نصر المهلب فى ذلك، والكل لايشفى العليل ولايروى الغليل، فلذلك تركناه. (٢)

[حديث ۲۲۱۲] (٣) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبُ بْنُ إِسْحَاقَ عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ -رضى الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «اللَّيْلَةَ أَتَانِي آتٍ مِنْ رَبِّي وَهُوَ بِالْعَقِيقِ أَنْ صَلِّ فِي هَذَا الْوَادِي الْمُبَارَكِ وَقُلْ عُمْرَةٌ فِي حَجَّةٍ». [ر: ١٤٦١]

**ترجمه:** - دحضرت عمر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه نن شپه يو راتلونكې (فرښته) زما د پروردګارد طرف نه ماله راغله. هغه وخت رسو ل الله ﷺ په عقيق كښې وو. دغه (فرښتې) اووئيل تاسو په دې مباركه وادئى كښې مونځ اوكړئى او اوفرمايئى چه په حج اوعمره كښې شريك شو.

## رجال الحديث

**اسحاق بن ابراهيم:** - دا اسحاق بن ابراهيم راهويه حنظلى رحمه الله دې. (٤)

(١) المصدر السابق.

(٢) عمدة القارى: ۱۲/۲۵۰.

(٣) أخرجه البخارى أيضًا فى الحج، باب قول النبى صلى الله تعالى عليه وسلم: العقيق واد مبارك، رقم: ١٥٣٤ وفى الاعتصام باب ما ذكر النبى صلى الله تعالى عليه وسلم وحض على اتفاق أهل العلم الخ رقم: ٧٣٤٣ وأبوداؤد رحمه الله تعالى فى المناسك باب فى الاقران، وانظر جامع الاصول: ٩/٣٤٠ رقم: ٦٩٧٢

(٤) كشف البارى: ٣/٤٢٨.

**شعیب بن اسحاق:**- دا شعیب بن اسحاق اموی بصری دمشقی رحمه الله دی.[1]
**أوزاعی:**- دا امام عبدالرحمن بن عمرو اوزاعی رحمه الله دی.[2]
**یحیی:**- دا یحیی بن ابی کثیرطائی رحمه الله دی.[3]
**عکرمه:**- داعکرمه مولی ابن عباس رضی الله عنهما دی.[4]
**ابن عباس:**- دا حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دی.[5]
**عمر:**- دا دویم خلیفه حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه دی.[6]
**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَدې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت دَ سابقه حدیث په شان دې ځکه چه دَ وادی عقیق زمکه هم غیرآباده ده اودَ چاملك هم نه دې مګر هرسړې دَهغې نه نفع اوچتولې شی اوپه دې کښې ورکوزیدې شی.[7]

**قوله: وقال عمرة في حجة:**- زمونږ په متداول نسخوکښې داعبارت داسې دې یعنی قال فعل ماضی سره[8] خود شراح بخاری په نسخوکښې قل یعنی دَامر صیغې سره دې.

مولاتال خلیل احمدسهارنپوری رحمه الله **قول ابی داؤد رحمه الله تعالی، رواه الولیدبن مسلم وعمربن عبدالواحدفی هذا الحدیث عن الاوزاعی، وقال: عمرة فی حجة، وکذا رواه علی بن المبارك عن یحیی بن أبی کثیرفی هذاالحدیث قال: وقل: عمرة فی حجة**[9]شرح کولوسره فرمائی چه دَامام ابوداؤد رحمه الله غرض دَدې اختلاف طرف ته اشاره کول دی چه دَامام اوزاعی رحمه الله په شاګردانوکښې واقع شوې دې. لکه چه **مسکین عن اوازعی** په روایت کښې **قال** صیغه دَماضی واقع شوې ده او **ولیدبن مسلم اوعمرو بن عبدالواحدعن الاوزاعی** په روایت کښې **قل** صیغه دَامر سره واردشوې ده. بل علی بن مبارك کوم چه امام اوزاعی رحمه الله سره دا روایت دَ یحیی بن ابی کثیر رحمه الله نه نقل کونکې دې دَهغه په روایت کښې هم دَقل صیغه دَ امر واقع شوې ده.[10]

---

[1]) کشف الباری:۴۰۸/۳.
[2]) کشف الباری: ۲۶۷/۴.
[3]) کشف الباری:۲۶۳/۳.
[4]) کشف الباری کتاب الزکاة باب ما أدی زکونه فلیس بکنزالخ.
[5]) کشف الباری:۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.
[6]) کشف الباری:۲۳۹/۱، ۴۷۴/۲.
[7]) فتح الباری:۲۵/۵ المتواری علی تراجم الابواب البخاری:۲۶۳/۱.
[8]) صحیح البخاری قدیمی
[9]) فتح الباری:۲۵/۵۶عمدة القاری:۲۵۰/۱۱ إرشادالساری:۳۲۶/۵.
[10]) بذل المجهود:۱۴۳/۷.

**دَ حج قران فضیلت:-** بل دَ قوله، قل: عمرة في حجة متبادر معنی داده چه تاسو حضورپاك ﷺ دَحج او عمره دواړو احرام اوتړئی لکه چه حضورپاك ﷺ دَالله تعالی دَ طرف نه په حج قران باندې مامور وو اوددې حدیث نه دَ حج قران فضیلت معلومیږی.[1]

**یواشکال اودهغې جواب:-** دالته دا اشکال کیږی چه حضورپاك په حج قران باندې مامور وو نوبیا حضورپاك ﷺ **لواستقبلت من أمری ما استدبرت، لجعلتها عمرة** کښې دَحج تمتع دَخواهش اظهار ولې کولو؟

دَدې جواب دا ورکړې شوې دې چه **عمرة فی حجة** نه مقصود **جمع بین الحج والعمرة** دې. اوداجمع څنګه چه په حج قران کښې ده هغه شان حج تمتع کښې هم کیږی لهذا په دې حیثیت سره حج تمتع دَحج قران منافی نه دې.[2] داحدیث مبارك هم **کتاب الحج باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم العقیق واد مبارك** کښې تیرشوې دې.

## ۱۴ - باب: إذا قال رب الارض: أقرك ما أقرك الله. ولم يذكر أجلاً معلومًا فهما على تراضيهما

کله چه دَ زمکې مالك چاته داسې اووائی چه زه به تا ترهغه وخته پورې ساتم ترکومې چه الله سبحانه وتعالی تاساتی اوڅه معین موده ذکرنه کړی نودامعامله به دَدغه دواړو دَ رضامندئی پورې وی.

**دَ ترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره داخودل غواړی که چرې دَزمکې مالك چاسره معامله بغیردَ مودې خودلو اوکړه او وئی وئیل **أقرك ما أقرالله** دَدې څه حکم دې نوامام بخاری رحمه الله فرمائی **فهما علی تراضیهما** یعنی ترکومې چه فریقین رضامند دی ترهغه وخته پورې به دامعامله په ځائی وی او چه کله ئې ختمول غواړی نودابه ختمه شی.[3]

**دَ فقهاوُ دَاختلاف بیان:-** په دې کښې اختلاف دې چه آیا دَ عقدمزارعت دَپاره دَاجل معلوم تعیین ضروری دې که نه؟ په فقهاء کرامو کښې امام احمد رحمه الله او اصحاب ظواهر فرمائی چه دمودې تعیین ضروری نه دې. خودَ جمهور علماؤ په نیزدَاجل تعیین ضروری دې.[4]

دَ فریق اول دلیل حدیث باب دې یعنی **قوله صلی الله تعالی علیه وسلم: نقرکم بها علی ذلك ما شئنا**

---

[1] بذل المجهود: ۷/۱۴۱ – ۱۴۲ الدرالمنضود: ۲۰۳/۳.(✿) یادساتئی چه دَاحنافو په نیز حج قران دَټولونه غوره دې بیا تمتع او بیا افراد خودَامام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نیز دَ یوقول مطابق دَټولو نه غوره حج افراد بیا تمتع او بیا قران اودَ دویم قول مطابق دَټولونه غوره حج تمتع اوبیا افراد او بیاقران.(اختلاف الائمة العلماء: ۲۷۱/۱.

[2] الدر المنضود: ۲۰۳/۳ بذل المجهود: ۱۴۲/۷.

[3] عمدة القار: ۲۵۰/۱۲ إرشادالساری: ۳۶۷/۵.

[4] عمدة القاری: ۲۵۲/۱۲ شرح ابن بطال: ۳۹۴/۶ بدایة المجتهد: ۶۴۱/۱.

اود جمهورو د طرف نه دا جواب ورکړې شوې دې چه داجمله حضورپاك ديهوديانو په جواب کښې هغه وخت فرمائيلې چه حضور پاك دهغوی د اخراج اراده کړې وه. نوهغوی اووئيل چه مونږ به دې زمکه کښې زمينداری کوو او نيم پيداوار به تاسو ته درکوو نوحضورپاك مصلحتا هغوی په خائی پريخودل اودهغوی موده ئې دالله سبحانه وتعالی حواله کړه اودې نه پس ئې هغوی سره دمساقاة معامله اوکړه. اوبيا دحضرت عمر رضی الله عنه قول عامل رسول الله صلی الله تعالی عليه وسلم أهل خيبر على شطر ما يخرج منها هم په دې دلالت کوی.[1] يادساتنې چه دا اختلاف په اصل کښې مبنی دې په هغه اختلاف چه مزارعت دعقود مباحة نه دې يا دعقود لازمه نه. دکوم تفصيل چه باب إذا لم يشترط السنين في المزارعة په شروع کښې تير شوې دې.

[حديث ۲۲۱۳][2] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوسَى أَخْبَرَنَا نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رضی الله عنهما- قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم-. وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ -رضی الله عنهما- أَجْلَى الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لَمَّا ظَهَرَ عَلَى خَيْبَرَ أَرَادَ إِخْرَاجَ الْيَهُودِ مِنْهَا، وَكَانَتِ الأَرْضُ حِينَ ظَهَرَ عَلَيْهَا لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ -صلى الله عليه وسلم- وَلِلْمُسْلِمِينَ، وَأَرَادَ إِخْرَاجَ الْيَهُودِ مِنْهَا فَسَأَلَتِ الْيَهُودُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لِيُقِرَّهُمْ بِهَا أَنْ يَكْفُوا عَمَلَهَا وَلَهُمْ نِصْفُ الثَّمَرِ، فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «نُقِرُّكُمْ بِهَا عَلَى ذَلِكَ مَا شِئْنَا». فَقَرُّوا بِهَا حَتَّى أَجْلاَهُمْ عُمَرُ إِلَى تَيْمَاءَ وَأَرِيحَاءَ.[۲۹۸۳]

**ترجمه:-** حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه يهوداونصاری د ملك حجازنه بهر اوويستل. او رسول الله کله چه هغوی په خيبروالابانديې غالب شول نويهوديان ئې دهغه خائی نه ويستل غوښتل ځکه چه کله رسول الله ﷺ په خيبربانديې غالب شول نود هغه خائی ټولې زمکې دالله تعالی اودهغه د رسول ﷺ اود مسلمانانو شوې. نوحضورپاك غوښتل چه يهوديان ددغه خائی نه اوباسی خودغه يهوديانورسول الله ﷺ ته دا درخواست اوکړو چه حضورپاك دې هغوی هلته پرېږدی نوحضورپاك هغوی هلته پريخودل خو په دې شرط چه هغوی به په دې زمکوکښې ټول کار کوی اوهغوی ته به د پيداوار نيمه حصه ملاويږی. حضورپاك هغوی ته اوفرمائيل چه ترکومې پورې مونږ غواړو په دې باندې به موساتو. نويهوديان هلته پاتې شو. تردې چه حضرت عمر رضی الله عنه د خپل خلافت په زمانه کښې هغوی دتيما او اريحاء طرف ته جلاوطن کړل.

---

[1] عمدة القاری:۱۲/۲۵۲.

[2] مرتخريجه فی الاجارة باب إذا استاجر أرضافمات أحدهما رقم الحديث:۲۲۸۵، ۲۲۸۶.

# رجال الحدیث

**أحمدبن مقدام**:- دا احمد بن مقدام بن سلیمان بن الاشعث بصری رحمه الله دې.[1]

**فضیل بن سلیمان**:- دا فضیل بن سلیمان نمیری، ابوسلیمان بصری رحمه الله دې.[2]

**موسی**:- دا موسی بن عقبه اسدی مدنی رحمه الله دې.[3]

**نافع**:- دا حضرت نافع مولی حضرت ابن عمر رحمه الله دې.[4]

**ابن عمر**:- دا حضرت عبدالله بن عمر بن خطاب رضی الله عنهما دی.[5]

**عبدالرزاق**:- دا عبدالرزاق بن همام حمیری صنعانی رحمه الله دې.[6]

**ابن جریج**:- داعبدالملک بن عبدالعزیزبن جریج ابوالولید رحمه الله دې.[7]

**دتعلیق تفصیل**:- وَقَالَ عَبْدُالرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ یعنی امام بخاری رحمه الله دَ فضیل بن سلیمان په طریق باندې موصولاً او دَ ابن جریج په طریق معلقاً ذکرکړې دې[8] او امام بخاری رحمه الله دا روایت معلقه په کتاب الخمس کښې **حدثنا أحمدبن مقدام حدثنا الفضیل بن سلیمان حدثنا موسیٰ بن عقبة أخبرنی نافع** په طریق سره مسنداً ذکرکړې دې.[9] اودَ ابن جریج په طریق مذکورسره دا روایت امام مسلم رحمه الله او امام احمد رحمه الله موصولاً ذکرکړې دې.[10]

**قوله**: أجلی الیهود والنصاری من أرض الحجاز:- یعنی حضرت عمر رضی الله عنه یهود اونصارې دَحجاز دَزمکې نه جلاوطن کړې ووځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی دَحجاز په زمکه کښې دَهمیشه دَپاره دَ پریخودو هیڅ څه عهدوغیره نه ووکړې بلکه هغوی ئې په مشیت باندې موقوف ساتلې وو.[11]

---

[1]) کشف الباری کتاب البیوع باب من لم یر الوساوس ونحوها من الشبهات.

[2]) کشف الباری کتاب الصلاة باب سترة الامام من خلفه.

[3]) کشف الباری کتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء.

[4]) کشف الباری:۶۵۱/۴.

[5]) کشف الباری:۶۳۷/۱.

[6]) کشف الباری:۴۲۱/۲.

[7]) کشف الباری کتاب الحیض باب غسل الحائض رإس زوجهاوترجیله.

[8]) عمدة القاری:۲۵۱/۱۲ فتح الباری:۲۶/۵.

[9]) المصدرالسابق.

[10]) أخرجه مسلم رحمه الله تعالی فی صحیحه:۱۸۷/۳ کتاب المساقاة باب المساقاة بجزء من الثمر والزرع رقم:۶ واحمدرحمه الله تعالی فی مسنده:۱۴۹/۵.

[11]) إرشادالساری:۳۲۷/۵.

**ارض حجاز:-** علامه واقدى رحمه الله فرمائى چه د مدينې منورې نه تبوك اود طريق كوفې پورې علاقه د حجاز په نوم يادېږى.(١) علامه عينى رحمه الله فرمائى چه علامه كرمانى رحمه الله نقل كړى دى چه حجاز نه مراد مكه مدينه اود يمن علاقې دى اودا د هغه تسامح دې ځكه چه يمن په حجاز كښې داخل نه دې او داده چه په جزيره عرب كښې داخل دې.(٢) ليكن د شراح كرمانى په متداول نسخه كښې دى چه **والحجاز، هومكة والمدينة واليمامة**(٣). يعنى په دې كښې د يمن تذكره نشته.

**قوله: حين ظهر عليها لله ولرسوله صلى الله عليه وسلم وللمسلمين:-** دا په دې وجه اوونيلې شو چه د خيبر بعض حصه صلحا د مسلمانانو په حصه كښې راغلې وه او بعض قهراً او عنوة (د جنګ په توګه) نوچه كومه حصه عنوة په حصه كښې راغله هغه ټول په ټوله د الله تعالى، د هغه د رسول صلى الله عليه وسلم اود ټولو مسلمانانو شوه اوكومه چه صلحاً ملاؤ شوه هغه اول د يهودو وه اود عقد صلح نه پس هغه د مسلمانانو شوه.(٤)

**د حديث باب ترجمة الباب سره مطابقت:-** د حديث باب ترجمة الباب سره مطابقت **قوله نقركم بها على ذلك ماشئنا** سره ظاهر دې.(٥)

## ١٥- باب: ماكان أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم يواسى بعضهم بعضًا فى الزراعة والثمرة

### د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه كرامو رضى الله عنهم به په زميندارئى او ميوو په معامله كښې يوبل سره همدردى كوله

**د ترجمة الباب مقصد:-** دلته امام بخارى رحمه الله دا خودل غواړى چه په كومو رواياتو كښې د مزارعت ممانعت راغلې دې لكه چه په حديث باب كښې حضرت رافع بن خديج رضى الله عنه نقل كوى چه حضورپاك په كرياندې زمكه وركولونه منع فرمائيلې ده.نو حضورپاك دا ممانعت على وجه التحريم نه دې فرمائيلې بلكه دا ممانعت ئى على وجه الاولويت والافضيلت فرمائيلې دې. يعنى بهتره داده چه سړې خپله زمكه د مزارعت په ځائى خپل رور ته هم داسې د كر د پاره وركړى كله چه دې صاحب د زمكې سره په دغه زمكه باندې د كركيلې كولو ګنجائش نه وى ياد ادده د ضرورت نه زياتى وى.

---

(١) عمدة القارى:١٢/٢٥١ إرشادالسارى:٥/٣٢٧.

(٢) عمدة القارى:١٢/٢٥١.

(٣) شرح الكرمانى:١٠/١٦٢.

(٤) إرشادالسارى:٥/٣٢٨.

(٥) المصدرالسابق

لكه چه دحضورپاك مقصد ددې شرعي حرمت بيانول نه وو بلكه ددې خبرې ترغيب ئې وركولو چه تاسو رورولي او غمخواري كوئى او خپلو رونړوته ئى هم داسې مفت وركوئى.(١) دا هم وئيلې شى چه ممانعت په هغه خاص صورتونوكښې وى په كوم كښې چه مخاطره ليدلې شى چه په لختوكوم پيداوار وى هغه به د مالك وى او دنورې حصې پيداوار به د زميندار وى يا دښكته حصې پيداوار به دمالك وى اود اوچتې علاقې پيداوار به د زميندار وى. په دې كښې چونكه انديښنه وى چه يوه حصه دزمكې به پيداوار وركوى اوبله حصه به نه وركوى په دې وجه حضورپاك ددې نه منع اوفرمائيله.(٢)

[حديث ٢٢١٤](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا الأَوْزَاعِيُّ عَنْ أَبِي النَّجَاشِيِّ مَوْلَى رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ سَمِعْتُ رَافِعَ بْنَ خَدِيجِ بْنِ رَافِعٍ عَنْ عَمِّهِ ظُهَيْرِ بْنِ رَافِعٍ قَالَ ظُهَيْرٌ لَقَدْ نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ أَمْرٍ كَانَ بِنَا رَافِقًا. قُلْتُ مَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَهُوَ حَقٌّ. قَالَ دَعَانِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَا تَصْنَعُونَ بِمَحَاقِلِكُمْ». قُلْتُ نُؤَاجِرُهَا عَلَى الرُّبُعِ وَعَلَى الأَوْسُقِ مِنَ التَّمْرِ وَالشَّعِيرِ. قَالَ «لاَ تَفْعَلُوا ازْرَعُوهَا أَوْ أَزْرِعُوهَا أَوْ أَمْسِكُوهَا». قَالَ رَافِعٌ قُلْتُ سَمْعًا وَطَاعَةً. [ر: ٢٢٠٢]

**ترجمه:-** حضرت رافع بن خديج بن رافع دخپل تره حضرت ظهيربن رافع ﷺ نه روايت نقل كوى چه رسول الله ﷺ مونږ ديوداسې كار نه منع كړې وو په كوم كښې چه زمونږ فائده وه. حضرت رافع اووئيل چه رسول الله ﷺ څه فرمائيلى هغه حق دى. حضرت ظهير اووئيل رسول الله ﷺ زه راوغوښتم اوتپوس ئى اوكړو چه تاسو په خپلو پټو باندې څه كوئى. ما اووئيل چه په لختو باندې چه كوم پيداوار وى په هغې او كهجورو او اوربشوباندې يوڅو وسق باندې كرايه وركوو. حضورپاك اوفرمائيل داسې مه كوئى تاسو پخپله زميندارى كوئى يا په بل زميندارى كوئى (يعنى بغيرعوض) يائى خالى پريږدئى. رافع وائى چه ما عرض اوكړو ما ارشاد مبارك واوريدو اوامې منلو.

---

(١) الابواب والتراجم:١٧٣/٣ وفتح البارى:٢٨/٥.

(٢) المصدرالسابق.

(٣) أخرجه البخارى أيضًا فى كتاب الحرث والزارعة باب كراء الارض بالذهب والفضة رقم:٢٣٤٦، ٢٣٤٧ وفى كتاب المغازى عن الزهرى باب بعد باب شهودالملائكة بدراً رقم:٤٠١٢، ٤٠١٣ وأخرجه مسلم فى صحيحه كتاب البيوع باب كراء الارض بالطعام رقم:٣٩٤٩ والنسائى فى سننه كتاب المزارعة ذكر الاحاديث المختلفة فى النهى عن كراء الارض بالثلث والربع الخ رقم:٣٩٥٥، ٣٩٥٤ وابن اجه فى سننه كتاب الرهون باب مايكره من المزارعة رقم:٢٤٥٩ وانظر مع الاصول فى الكتاب الثانى فى المزارعة الفصل الثانى فى المنع من ذلك:٣٠/١١ رقم:٨٥٠٤ وتحفة الاشراف فى مسند ظهير بن رافع الانصارى رقم:٣٢٩/٥

## رجال الحدیث

**محمدبن مقاتل**:-دا ابوالحسن، محمدبن مقاتل مروزی بغدادی مجاور مکه رحمة الله علیه دې.[۱]
**عبدالله**:- دا امام عبدالله بن مبارک رحمة الله علیه دې.[۲]
**أوزاعی**:- امام عبدالرحمن بن عمرو اوزاعی رحمة الله علیه دې.[۳]
**أبی النجاشي مولی رافع بن خدیج**:-عطاء بن صهیب ابوالنجاشی رحمة الله علیه دې.[۴]
**رافع بن خدیج**:- دا رافع بن خدیج انصاری رحمة الله علیه دې.[۵]
**ظهیربن رافع**:نوم اونسب:- ظهیربن رافع بن عدی بن زید بن جشم بن حارثه بن الحارث بن عمرو بن مالك بن الاوس الانصاری الاوسی، الحارثی المدنی.[۶]دوی دَ مشهور صحابی حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه دَ تره خوئی دې.[۷] هغوی په بیعت عقبه ثانیه کښې شریك وو.[۸] په غزوه بدرکښې دَ هغوی رضی الله عنه شرکت مختلف فیه دې محمدبن اسحاق رحمة الله علیه فرمائی چه دوی په غزوه بدرکښې شریك نه وو.[۹]او نورو حضرات فرمائی چه هغوی رضی الله عنه په غزوه بدرکښې دَ شرکت سعادت عظمیٰ حاصل کړې دې.[۱۰]

لکه چه حافظ ابن حجر رحمة الله علیه نقل کړی دی من کبار الصحابة شهد بدراً.[۱۱] هغوی رضی الله عنه دَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم نه روایت نقل کوی. اودهغوی رضی الله عنه نه دَهغوی وراره رافع بن خدیج روایت نقل کوی.[۱۲]امام بخاری امام مسلم امام نسائی اوامام ابن ماجه رحمهم الله ددوی رضی الله عنه نه یوحدیث نقل کړې دې.[۱۳] هغوی رضی الله عنه په کوفه کښې سکونت اختیار کړې دې.[۱۴]

---

[۱]) کشف الباری:۳/۲۰۶إرشادالساری:۵/۳۲۹.
[۲]) کشف الباری:۱/۴۶۲.
[۳]) کشف الباری:۳/۴۰۸.
[۴]) کشف الباری کتاب مواقیت الصلاة باب الابراد بالظهر فی شدة الحر.
[۵]) کشف الباری کتاب مواقیت الصلاة باب وقت المغرب.
[۶]) تهذیب الکمال:۱۳/۲۶۹.
[۷]) المصدرالسابق.
[۸]) المصدرالسابق.
[۹]) المصدرالسابق.
[۱۰]) التاریخ الکبیر للبخاری رحمة الله علیه ۴/الترجمة:۳۱۷۳ الجرح والتعدیل:۴/الترجمة: ۲۲۱۱.
[۱۱]) تقریب التهذیب:۲۷۴.
[۱۲]) تهذیب الکمال:۱۳/۴۷۰.
[۱۳]) المصدر السابق.
[۱۴]) معرفة الصحابة للاصبهانی: ۳/۹۳.

**قوله: أو أزرعوها أو أمسكوها**:- علامه عینی رحمه الله اونور شراح بخاری فرمائي چه دلته أو تخییرد پاره دي نه چه د شك د پاره، یعنی رسول الله ﷺ په دریو کارونوکښي د یواختیارولو تخییرورکړو چه یا خودې پخپله په دغه زمکه باندې کرکوي یابل مسلمان رور له د مزارعت د پاره بغیرد څه معاوضې دې ورکړي او یادې شاړه پریږدی [1]

**قوله: سمعًا وطاعة**:- دا په نصب او رفع دواړه شان لوستلې شی د نصب په صورت کښې د فعل محذوف د پاره به مصدر وي یعنی أسمع كلامك سمعًا وأطيعك طاعة او د رفع په صورت کښې دا به د مبتداء محذوف خبرجوړيږي یعنی كلامك أو أمرك سمع یعنی مسموع مصدر بمعنی المفعول مبالغه په توګه وي او دغه شان أمرك طاعة کښې به وي په معنی د مطاع [2]

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: ازرعوها أو أزرعوها الخ** سره ظاهردي

[حدیث ۲۲۱۵] [3] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا الأَوْزَاعِيُّ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ - رضى الله عنه - قَالَ كَانُوا يَزْرَعُونَهَا بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ وَالنِّصْفِ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَزْرَعْهَا أَوْ لِيَمْنَحْهَا، فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ فَلْيُمْسِكْ أَرْضَهُ». [۲۴۸۹]

**ترجمه**:- د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه صحابه کرامو رضی الله عنهم په په دریمه څلورمه او نیمه باندې مزارعت کولو. بیا حضورپاك اوفرمائیل چه چاسره زمکه وی هغه دې پخپله زمینداری کوی یا دې دا (مفت) مسلمان رور له ورکړي که نه وی نو خالی دې پریږدی.

## رجال الحدیث

**عبیدالله بن موسی**:- دا عبیدالله بن موسی بن باذام عبسی کوفی رحمه الله دې. [4]

**أوزاعی**:- دا امام عبدالرحمن بنعمرو اوزاعی رحمه الله دې. [5]

**عطاء**:- دا عطاء بن ابی رباح رحمه الله دې. [6]

---

[1] عمدة القاري: ۲۵۴/۱۲ إرشادالساری: ۳۲۹/۵.

[2] کشف الباری: ۲۳۶/۱.

[3] أخرجه مسلم فی صحیحه کتاب البیوع باب کراء الارض رقم: ۸۹، ۱۵۳۶ وابن ماجه فی سننه کتاب الرهون باب المزارعة بالثلث والربع رقم: ۲۴۵۱ والنسائی فی النهی عن کراء الارض رقم: ۳۸۷۶ وانظر جامع الاصول حرف المیم الکتاب الثانی فی المزارعة. الفصل الثانی فی المنع من ذلک رقم: ۸۵۰۶

[4] کشف الباری: ۲۳۶/۱.

[5] کشف الباری: ۴۰۸/۳.

[6] کشف الباری: ۳۹/۴.

**جابر:**- دَحضرت جابربن عبدالله انصاری رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[1]

**دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت **قوله أولیمنحها** سره واضح دې.

[حدیث ۲۲۱۶] **وَقَالَ الرَّبِیعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ حَدَّثَنَا مُعَاوِیَةُ عَنْ یَحْیَی عَنْ أَبِی سَلَمَةَ عَنْ أَبِی هُرَیْرَةَ-رضی الله عنه-قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صلی الله علیه وسلم-«مَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْیَزْرَعْهَا أَوْلِیَمْنَحْهَا أَخَاهُ،فَإِنْ أَبَى فَلْیُمْسِكْ أَرْضَهُ».**

**ترجمه:**- دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چاسره چه زمکه وی هغه دې خپله په دې کښې فصل کری یادې دا خپل مسلمان رور ته (عاریةً) ورکړی که نه وی زمکه دې خالی پریږدی.

## رجال الحدیث

**الربیع بن نافع: نوم اونسب:**- دا ربیع بن نافع ابوتوبة حلبی رحمه الله دې.[2] هغوی رحمه الله په طرسوس کښې اوسیدلو.[3]

**شیوخ:**- هغوی رحمه الله ابراهیم بن سعد، ابواسحاق ابراهیم بن محمد فزاری، اسماعیل بن عیاش، بشیر بن طلحة ختنی، ابوالملیح حسن بن عمرقی، حسین بن طلحة، حکم بن ظهیر، ابوأسامه حماد بن اسامه، ربیع بن بدر سعدی، سعیدبن عبدالرحمن جمحی، سفیان بن عیینه، سلیمان بن حبان، ابوالاحوص سلام بن سلیم، شریك بن عبدالله، شهاب بن خراش، عبدالله بن بکیر غنوی، عبدالله بن مبارك، عبدالعزیز بن عبدالملك قرشی، عبید الله بن عمرو، عطاء بن مسلم حلبی، علی بن حوشب، علی بن سلیمان، عیسیٰ بن یوسف، محمدبن عمر طائی، محمدبن فرات، محمدبن مهاجر، مسلمة بن علی، مصعب بن ماهان، معویة بن سلام، معتمربن سلیمان، هشام بن یحییٰ، هیثم بن حمید، ولیدبن مسلم، یحییٰ بن حمزة، یزیدبن ربیعة، او یزیدبن مقدام بن شریح رحمهم الله نه روایات نقل کوی.[4]

**تلامذه:**- ابوداؤد، ابراهیم بن سعد، ابراهیم بن یعقوب، احمدبن ابراهیم، احمدبن اسحاق، احمدبن خلد، احمدبن محمد، ابوبکر محخدبن أثرم، اسماعیل بن مسعدة، حسن بن صباح، حسن بن علی خلوانی، زهیربن محمد، عبدالله بن عبدالرحمن دارمی، عبدالله بن أبی مسلم، عبدالسلام بن عتیق، ابوالدر داء عبدالعزیزبن منیب، عبدالکریم بن هیثم، علی بن زید

---

[1] کشف الباری کتاب العلم باب الخروج فی طلب العلم.

[2] تهذیب الکمال: ۱۰۳/۹.

[3] المصدرالسابق.

[4] المصدرالسابق.

فرائضي، ابوحاتم محمد بن ادريس ابوعمر محمدبن عامر، محمدبن يحيى، يعقوب بن سفيان فارسي وغيرهم رحمهم الله ذهغوى نه روايات نقل كوى.[1]

امام نسائى رحمه الله فرمائى چه امام احمد رحمه الله به فرمائيل چه دابوتوبة نه په روايت نقل كولوكښې هيڅ حرج نشته او هغه به ماله راتللو.[2] امام حاتم رحمه الله فرمائى ثقة صدوق حجة.[3]

يعقوب بن شيبة رحمه الله فرمائى ثقة صدوق.[4] وكان ثقال: إنه من الابدال[5] د امام ترمذى رحمه الله نه علاوه ټولو ائمه حضرات ددوى رحمه الله نه روايات نقل كړى دى.[6]

**انتقال**:- يعقوب بن سفيان رحمه الله فرمائى چه دهغوى رحمه الله انتقال ۲۴۱ هجرى كښې شوې.[7]

**معاوية**:- دا معاوية بن سلام حبشي رحمه الله دې.[8]

**يحيى**:- دا يحيى بن كثير طائى رحمه الله دې.[9]

**أبى سلمة**:- دا ابوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې.[10]

**ابوهريرة**:- حضرت ابوهريره رضي الله عنه تذكره هم تيره شوې ده.[11]

امام بخارى رحمه الله دا روايت تعليقاً ذكركړې دې اوامام مسلم حسن بن على حلوانى عن أبى توبة په طريق سره دا روايت موصولاً نقل كړې دې.[12]

**دتعليق تفصيل**: امام مسلم اوامام ابن ماجه رحمهما الله تعليق مذكور موصولاً ذكركړې دې.[13]

**د تعليق ترجمة الباب سره مطابقت**:- اودتعليق مذكور ترجمة الباب سره مطابقت حديث سابق په شان دې.[14]

---

[1]) المصدرالسابق.

[2]) تهذيب الكمال:۱۰۵/۹.تهذيب تاريخ دمشق:۳۱۱/۵.

[3]) تهذيب الكمال:۱۰۶/۹الجرح والتعديل:۳/الترجمة: ۲۱۰۵.

[4]) تهذيب تاريخ دمشق:۳۱۱/۵.

[5]) تهذيب الكمال:۱۰۶/۹.

[6]) المصدرالسابق.

[7]) المصدرالسابق.

[8]) كشف الباري: أبواب الكسوف باب النداء بالصلاة جامعة.

[9]) كشف الباري:۲۶۷/٤.

[10]) كشف الباري:۳۳۳/۲.

[11]) كشف الباري:۶۵۹/۱.

[12]) صحيح مسلم:۱۱۷۸/۳كتاب البيوع باب كراء الارض رقم:۱۰۲.

[13]) أخرجه مسلم فى صحيحه كتاب البيوع باب كراء الارض رقم:۱۰۲ وابن ماجه فى سننه كتاب الرهون باب المزارعة بالثلث والربع رقم:۲٤۵۲.

[14]) عمدة القاري:۲۵۵/۱۲.

[حديث ۲۲۱۷] [1] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ ذَكَرْتُهُ لِطَاوُسٍ فَقَالَ يُزْرِعُ ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - إِنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - لَمْ يَنْهَ عَنْهُ وَلَكِنْ قَالَ «أَنْ يَمْنَعَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ شَيْئًا مَعْلُومًا». [ر: ۲۲۰۵]

**ترجمه**:- حضرت عمروبن دينار رحمه الله فرمائى چه ما دَ «رافع بن خديج رضي الله عنه» روايت دَ طاؤس رحمه الله په وړاندې ذكركړو نو طاؤس رحمه الله اوونيل په مزارعت باندې زمكه وركولې شى. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دې نه منع نه ده فرمائيلې بلكه حضورپاك فرمائيلى وو چه په تاسو كښې خپل رور ته هم داسې مفت «دَ زميندارئى دَپاره» زمكه وركول بهتردى دَدې خبرې نه چه دَهغه نه څه متعين څيز واخلى.

## رجال الحديث

**قبيصة**:- دا قبصة بن عقبة كوفى رحمه الله دې. [2]

**سفيان**:- داسفيان بن سعيد الثورى رحمه الله دې. [3]

**عمرو**:- دا عمرو بن دينارمكى رحمه الله دې. [4]

**طاؤس**:-دا طاؤس بن كيسان يمانى حميرى رحمه الله دې. [5]

**ابن عباس**:-دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما تذكره هم تيره شوې ده.

**قوله**: إن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم لم ينه عنه:- يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم مزارعت حرام نه وو گرځولې لكه چه دَ امام ترمذى رحمه الله په روايت صراحت راغلې دې. عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما ان رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم لم يحرم المزارعة ولكن أمر أن يرفق بعضهم ببعض. [6]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: إن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم لم ينه عنه ولكن قال: أن يمنح أحدكم أخاه خيرله الخ** سره ظاهردې.

---

[1] مرتخريجه فى باب بدون الترجمة بعد باب إذا لم يشترط السنين فى المزارعة

[2] كشف البارى:۲۷۵/۲.

[3] كشف البارى:۲۷۸/۲.

[4] كشف البارى:۳۰۹/٤.

[5] كشف البارى:۴۳۵/۱، 2052.

[6] الجامع للترمذى:۲۵۸/۱ أبواب الاحكام باب ماجاء فى المزارعة.

[حديث ٢٢١٨ / ٢٢١٩] (١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ - رضي الله عنهما - كَانَ يُكْرِي مَزَارِعَهُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ وَصَدْرًا مِنْ إِمَارَةِ مُعَاوِيَةَ.

ثُمَّ حُدِّثَ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى عَنْ كِرَاءِ الْمَزَارِعِ، فَذَهَبَ ابْنُ عُمَرَ إِلَى رَافِعٍ فَذَهَبْتُ مَعَهُ، فَسَأَلَهُ فَقَالَ نَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ كِرَاءِ الْمَزَارِعِ. فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ قَدْ عَلِمْتَ أَنَّا كُنَّا نُكْرِي مَزَارِعَنَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِمَا عَلَى الأَرْبِعَاءِ وَبِشَىْءٍ مِنَ التِّبْنِ.

**ترجمه**:- دَحضرت نافع رحمه الله نه روايت دې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَ نبی کریم ﷺ حضرت ابوبکر، حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت معاويه رضي الله عنه دَخلافت په شروع کښې په مزارعت باندې ورکړی وو. بيا هغه ته دَ حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه داحديث بيان کړې شو چه نبی کريم ﷺ پتې په مزارعت باندې ورکولونه منع فرمائيلې ده. حضرت ابن عمر رضي الله عنهما حضرت رافع رضي الله عنه له لاړو اوزه هم هغه سره لاړم نوحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَحضرت رافع رضي الله عنه نه تپوس اوکړو هغه اووئيل چه نبی کريم ﷺ پتې په مزارعت باندې ورکولونه منع فرمائيلې ده.په دې باندې حضرت ابن عمر رضي الله عنهما اووئيل چه تاته معلومه ده چه مونږ به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې خپل پتې دَهغه پيداوارپه بدله کښې کوم چه په لختوباندې وی اود څه بوسو په بدله به په مزارعت باندې ورکول.

**حل لغات**:- **الاربعاء**: دا دَ ربيع جمع ده معنی واړه نهرونه لختی لکه چه يعقوب لغوی رحمه الله فرمائی چه ويجمع ربيع الكلاء أربعة، وربيع الجدوال أربعاء. (٢)

**تشريح حديث**:- دَحديث شريف حاصل دادې چه دلته حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه باندې دَهغه نهی عن المزارعت والا روايت مطلق ګنړلوباندې ردکوی او فرمائی چه رسول الله ﷺ کوم په مزارعت باندې پتې ورکولونه منع فرمائيلې وه نوهغه د يوشرط فاسدد وجې نه وه چه هغه دَ زمکې دَ يوخاص حصې دَ پيداوار په شرط يا بوسو په څه مقدار مجهول شرط به ئې لګولو اوداسې کيدو شو چه د زمکې دَدغه حصې پيداوار وی اوباقې زمکه کښې هيڅ نه وی يادې برعکس وی چه مزارع يا رب الارض ته هيڅ ملاؤنه شی ګنی ددې نه علاوه صورتونو کښې مزارعت جائزدې. (٣)

---

(١) وأخرجه مسلم فی كتاب البيوع باب كرء الارض رقم:١٠٩، ١٥٤٧ والنسائی فی سننه فی كتاب كتاب المزارعت ذكر الاحاديث المختلفة فی النهی عن كراء الارض بالثلث والربع رقم: ٣٩١١ وانظر جامع الاصول حرف الميم الكتاب الثانی فی المزارعة الفصل الثانی فی المنع من ذلك رقم:٨٥٠٥.

(٢) معجم الصحاح:٣٨٧.

(٣) إرشادالساری:٣٣١/٥عمدة القاری:٢٥٧/١٢.

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:-** علامه قسطلانی رحمه الله فرمائي چه دحدیث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت دحضرت رافع بن خدیج رضي الله عنه بیان کړې شوي د نهی والا روایت سره داسې مستفاد کیږی چه دا دې نه معلومیږی چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم عام عادت داوو چه هغوی به په زمکه کښې پخپله زمینداری کوله یانورو رونړوته به ئی بغیرد څه معاوضه نه په مزارعت باندې ورکوله.[1]

[حدیث ۲۲۱۹][2] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي سَالِمٌ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ - رضي الله عنهما - قَالَ كُنْتُ أَعْلَمُ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّ الأَرْضَ تُكْرَى.

ثُمَّ خَشِيَ عَبْدُ اللَّهِ أَنْ يَكُونَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ أَحْدَثَ فِي ذَلِكَ شَيْئًا لَمْ يَكُنْ يَعْلَمُهُ، فَتَرَكَ كِرَاءَ الأَرْضِ. [ر: ۲۲۰۲]

**ترجمه:-** حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما اوفرمائیل چه ماته معلومه وه چه دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې به زمکه په مزارعت باندې ورکولې شوه. بیا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ته اندیښنه پیدا شوه چه داسې نه وی چه رسول اکرم ﷺ په دې معامله کښې څه داسې حکم ارشاد فرمائیلې وی چه هغه ته معلوم نه وی. په دې وجه هغه په مزارعت باندې زمکه ورکول پریخودل.

## رجال الحدیث

**یحیی بن بکیر:-** دا یحیی بن عبدالله بن بکیر رحمه الله دې.[3]
**اللیث:-** دا امام لیث بن سعد رحمه الله دې.[4]
**عقیل:-** دا عقیل بن خالد بن عقیل أیلی رحمه الله دې.[5]
**ابن شهاب:-** دا محمدبن مسلم بن عبیدالله بن شهاب الزهری رحمه الله دې.[6]
**سالم:-** دا سالم بن عبدالله بن عمر رحمه الله دې.[7]
**عبدالله بن عمر:-** اودحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما تذکره هم تیره شوې ده.[8]

داحدیث شریف دلته مختصر دې اوامام مسلم رحمه الله او امام نسائی رحمه الله شعیب بن لیث عن أبیه په

---

[1] إرشادالساری:۳۳۱/۵.
[2] مر تخریجه انفًا
[3] کشف الباری:۳۲۳/۱.
[4] کشف الباری:۳۲۴/۱.
[5] کشف الباری:۳۲۵/۱. ۴۵۵/۳.
[6] کشف الباری:۳۲۶/۱.
[7] کشف الباری:۱۲۸/۱.
[8] کشف الباری:۶۳۷/۱.

طريق سره دا موصولاً ذكركړې دي.[1] په دې كښې دى چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به زمكه په مزارعت باندې وركوله. تردې چه هغه ته دا خبر ملاؤشو چه حضرت رافع رضي الله عنه زمكه په مزارعت باندې وركول منع كوى نوهغوى حضرت رافع رضي الله عنه سره ملاقات اوكړو اودَهغوى نه ئې تپوس اوكړو چه تاسو داسې ولې كوئى؟ نوحضرت رافع رضي الله عنه اووئيل زما نه زما تره دا روايت نقل كړې دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به زمكه په مزارعت باندې وركولونه منع فرمائيله. نوحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په جواب كښې هم هغه اوفرمائيل دكوم تذكره چه په ماقبل كښې تيره شوه چه قد كنت اعلم الحديث.[2]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت هم واضح شو.

## ۱۶-باب: كراء الارض بالذهب والفضة

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ إِنَّ أَمْثَلَ مَا أَنْتُمْ صَانِعُونَ أَنْ تَسْتَأْجِرُوا الْأَرْضَ الْبَيْضَاءَ مِنَ السَّنَةِ إِلَى السَّنَةِ.

دَ سرو زرو او سپينو زرو په بدله باندې زمكه په كرايه وركول اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى دَ ټولو بهتركارچه تاسو ئې كول غواړئې دادې چه خپله خالى زمكه دَ يوكال دَپاره په كرايه وركړئې.

**دَ ترجمة الباب مقصد او دَ فقهاؤ اختلاف:-** په دې ترجمة الباب سره امام بخارى رحمه الله دافرمائى كه زمكه په سرو زرو او سپينوزرو بدله باندې په كرايه وركړې شى نودا جائزدى كه نه؟

امام طاؤس، حسن بصرى، ابومحمد بن حزم ظاهرى رحمهم الله فرمائى چه زمكه په مزارعت وركول جائزنه دى نه ددرهم اودنانير په بدله كښې او نه دَ غلې په بدله كښې.[3] اودَدې حضراتودليل هغه روايات دى كوم چه د مزارعت په نهى باندې مشتمل دى. او په شاته باب كښې تيرشو. خو جمهور علماء فى الجملة ددې د جوازقائل دى اوعلامه ابن منذر رحمه الله خو ددې په جواز باندې دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم اجماع نقل كړې ده.[4]

اوكه دَ مخاطرې څه صورت وى نوداحضرات هم دَعدم جواز قائل دى. دا حضرات فرمائى لكه څنګه چه زمكه دَ غلې په بدله كښې په كرايه وركولې شى دغه شان په درجه اولى دَنقدو په بدله كښې هم په كرايه باندې وركولې شى. دَدې حضراتو جمهورو مستدلات هم په شاته باب كښې ذكرشو. امام ربيعه الرائى رحمه الله فرمائى چه صرف په دراهم او دنانير باندې زمكه په كرايه باندې وركول جائزدى اوكه دَغلې وغيره په عوض په كرايه وركړې شى نودا جائزنه دى. امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعى رحمه الله فرمائى په نقدو او غلې په بدله كښې زمكه په كرايه باندې

---

[1] ) مرتخريجه انفًا.

[2] ) عمدة القارى:۲۵۸/۱۲ إرشادالسارى:۳۳۲/۵.

[3] ) بداية المجتهد:۶۳۲ شرح ابن بطال:۳۹۸/۶فتح البارى: ۳۱/۵ عمدة القارى:۲۵۸/۱۲.

[4] ) المصدرالسابق.

وركولې شي خوچه د مزارعت معامله نه وي ددې حضراتو د دلائلو تفصيل هم تيرشو. دامام مالك رحمه الله نه په دې سلسله كښې دوه اقوال نقل دى. اشهب رحمه الله دعدم جواز قول نقل كړې دې او ابن قاسم رحمه الله دجواز (١)

بهر حال دجمهور علماؤ په نيز مطلقاً زمكه په كرباندې وركول جائز دى كه دنقدو په شكل كښې وى اوكه د زميندارئى په شكل كښې وى هم دې ته مزارعت وائى. او داحضرات فرمائى چه كوم خائى د رسول اكرم ﷺ نه ممانعت راغلې دې هغه دمخاطرې په صورت باندې محمول دې يا په هغه صورت باندې محمول دې چرته چه أجل مجهول وى. امام بخارى رحمه الله په دې مسئله كښې د جمهورو طرف ته مائل دې. لكه چه په ترجمة الباب او حديث باب باندې دال دې (٢)

دتعليق تفصيل: **قوله: وقال ابن عباس إن أمثل الخ:-** دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا تعليق سفيان ثورى رحمه الله په خپل جامع كښې عبدالكريم جزرى عن سعيدبن جبير په طريق سره موصولاً ذكركړې دې (٣) اوهم دغه شان بيهقى رحمه الله هم عبدالله بن وليد عدنى عن سفيان په طريق باندې موصولاً ذكركړې دې (٤)

[حديث ٢٢٢٠](٥) حَدَّثَنَا عَمْرُوبْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ قَيْسٍ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ حَدَّثَنِي عَمَّاىَ أَنَّهُمْ كَانُوا يُكْرُونَ الْأَرْضَ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِمَا يَنْبُتُ عَلَى الْأَرْبِعَاءِ أَوْ شَيْءٍ يَسْتَثْنِيهِ صَاحِبُ الْأَرْضِ فَنَهَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ ذَلِكَ فَقُلْتُ لِرَافِعٍ فَكَيْفَ هِيَ بِالدِّينَارِ وَالدِّرْهَمِ فَقَالَ رَافِعٌ لَيْسَ بِهَا بَأْسٌ بِالدِّينَارِ وَالدِّرْهَمِ.

---

(١) المصدرالسابق.

(٢) المصدرالسابق.

(٣) فتح البارى:٣٢/٥ وتغليق التعليق: ٣/٣١٢.

(٤) المصدرالسابق وأخرجه البيهقى فى سننه الكبير، كتاب المزارعة باب بيان النهى عنه وأنه مقصود على كراء الارض ببعض مايخرج الخ:١٣٢/٦.

(٥) إخرجه البخارى أيضًا فى كتاب الحرث والمزارعة باب ماكان من أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم يواسى بعضهم بعضا فى ازراعة والثمر رقم:٢٣٣٩ وفى المغازى باب بعد باب شهودالملائكة رقم:٤٠١٢ – ٤٠١٣ ومسلم فى كتاب البيوع باب كراء الارض بالذهب والورق رقم:٣٩٥١ وأبوداؤد فى كتاب البيوع باب كراء الارض بالذهب والورق رقم:٣٩٢٩. والنسائى فى كتاب المزارعة ذكر الا حاديث المختلفة فى النهى عن كراء الارض بالثلث والربع الخ رقم:٣٩٢٩، ٣٩٣٠،٣٩٣١ وابن ماجه فى كتاب الرهون باب الرخصة فى كراء الارض البيضاء بالذهب والفضة رقم:٢٤٥٨ وانظرجامع الاصول والكتاب الثانى فى المزارعة الفصل الثانى فى المنع من ذلك:٣١/١١ رقم:٨٥٠٤ وتحفة الاشراف:٣٥٥٣

وَقَالَ اللَّيْثُ وَكَانَ الَّذِي نُهِيَ عَنْ ذَلِكَ مَا لَوْ نَظَرَ فِيهِ ذَوُو الْفَهْمِ بِالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ لَمْ يُجِيزُوهُ، لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُخَاطَرَةِ. [ر: ۲۲۰۲]

**ترجمه**- حضرت رافع بن خدیج ﷛ فرمائی مانه زما دوو ترونو بیان کړې دې چه هغه خلقو به د رسول اکرم ﷺ په زمانه کښې زمکه په مزارعت ورکوله. دهغه پیداوار په بدله کښې چه کوم به نهرونوته نیزدې وو یا هغه پیداوار کوم چه د زمکې مالك مستثنی کړی نونبی کریم ﷺ به دې نه منع فرمائیله حنظله ﷫ وائی چه ما د رافع ﷛ نه معلومات اوکړل چه په دینا او درهم باندې زمکه په مزارعت ورکولو څه حکم دې؟ نوحضرت رافع ﷛ اوونیل چه د دینار اودرهم په بدله کښې زمکه په مزارعت باندې ورکولوکښې هیڅ حرج نشته. اوهغه مزارعت دکوم نه چه منع کړې شوې ده که په حرام اوحلال باندې پوهیدونکې په دې باندې غور اوکړی نوددې اجازت به نه ورکوی ځکه چه په دې کښې مخاطره ده.

## رجال الحدیث

**عمرو بن خالد**:- داعمرو بن خالد بن فروخ حرانی مصری ﷫ دې.[۱]

**اللیث**:- دا امام لیث بن سعد ﷫ دې.[۲]

**ربیعة**:- دا فروخ، ربیعة الرائی بن عبدالرحمن ﷫ دې.[۳]

**حنظلة**:- داحنظلة بن قیس الزرقی ﷫دې.ددوی تذکره کتاب المزارعة باب بدون الترجمة کښې تیره شوې.

**رافع بن خدیج**:- داحضرت رافع بن خدیج بن رافع بن عدی اوسی ﷫ دې.[۴]

**عمای**:- دحضرت رافع ﷛ دوه ترونه دی یو حضرت ظهیر ﷫ دې د کوم تذکره چه په روستوباب کښې تیره شوه ددویم تره په نوم کښې ئی اختلاف دې علامه عبدالغنی ﷫ او ابن ماکولاوائی چه دهغوی نوم مظهردې.[۵] او بعض حضرات وائی دهغه نوم مهیر دې.[۶] خو علامه کلاباذی ﷫ فرمائی لم أقف علی اسمه.[۷]

**قوله: لیس بها بأس بالدنیار والدهم**:- دحضرت رافع په دې قول کښې دوه احتمال دی یاخوهغوی داسې علی طریق الاجتهاد اووئیل او یا علی طریق التنصیص هغه ددې د

---

[۱]) کشف الباری:۱/۴۹۴، ۲/۳۲۶.

[۲]) کشف الباری:۱/۳۲۴.

[۳]) کشف الباری:۳/۴۳۴.

[۴]) کشف الباری کتاب مواقیت الصلاة باب وقت المغرب.

[۵]) عمدة القاری:۱۲/۲۵۹ إرشادالساری:۵/۳۳۳ فتح الباری:۵/۳۲.

[۶]) المصدر السابق.

[۷]) المصدرالسابق.

جوازقائل شو.[1] يعنى هغه سره په دې سلسله کښې نور نصوص موجودوو.
**دحديث ترجمة الباب سره مطابقت:** - دحديث ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې.

**دَ امام بخاري رحمه الله قول اودَ شراح مشکوة تشويش:** - **قوله: قال ابوعبدالله من ههنا قول الليث: وكان الذى نهى عن ذلك.....** زمونږ په متداوله نسخوکښې داعبارت داسې دې.[2] او دَ شراح بخاري په نسخوکښې دې: **وقال الليث الخ.**[3] اودا حضرات فرمائي چه دا قول هم دې اسناد اول سره موصول دې.[4] يعنى امام بخاري رحمه الله فرمائي چه **كان الذى نهى الخ.** دَامام ليث رحمه الله قول دې چه دَ مذکوره سنديوراوى دې. داعبارت دلته نقل کړې شوې دې اوصاحب مشکوة هم مذکوره عبارت نقل کړې دې.[5] ليکن دَامام بخاري رحمه الله قول من ههنا قول الليث الخ هغه نه دې نقل کړې. شراح مشکوة ته په دې کښې تشويش پيداشو. شارح مصابيح علامه توربشتي رحمه الله فرمائي چه ماته خوپته اونه لګيده چه دا قول دچادې. دبخاري رحمه الله دې که دَ بل راوى دې.[6] امام بيضاوى رحمه الله فرمائي چه دا په ظاهره دَ حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه کلام معلوميږي.[7] ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دَاکثرطريق نه دامعلوميږي چه دا دَ ليث بن سعد رحمه الله کلام دې.[8] او دلته زمونږ په متداول نسخوکښې خوتصريح ده چه امام بخاري رحمه الله پخپله فرمائي چه دا دَ ليث قول دې.

## باب

**دَترجمة الباب مقصد:** - امام بخاري رحمه الله بغيرترجمې دَباب ذکراوفرمائيلو او روايت ئې نقل کړې دې چه جنتي خلق به په جنت کښې داخليږي په دوى کښې به بعض خلق دَالله سبحانه وتعالى نه دَ زميندارئى اجازت اوغواړي الله سبحانه وتعالى به ورته اوفرمائي چه دومره نعمتونه تاسوته ملاؤدى داستاسودپاره کافي نه دي چه اوس ستاسو دکرکيلې شوق پيداشو. هغوى به وائي بيشکه بيشميره نعمتونه دى خو مونږ زميندارى کول غواړو. بيابه هغوى تخم اچوى اودَغرونوبه شان به دَهغې ډيرى هم اولګي. بهرحال دَهغوى داخواهش به پوره کولې شى ځکه چه هلته خو به دَچا خواهش هم نه شى ردکولې. امام بخاري رحمه الله دا روايت نقل کولوسره دا اوخودل چه مزارعت دَخپل ذات په اعتبارسره جائزدې. اوحضورپاك چه دَدې کوم ممانعت

---

[1] المصدرالسابق.
[2] صحيح البخاري:١/٣١٥قديمي.
[3] عمدة القاري:١٢/٢٦٠فتح الباري:٥/٣٢إرشادالساري:٥/٢٣٢.
[4] المصدرالسابق.
[5] مشكوة المصابيح:٢/٥٤٨ رقم: ٢٩٧٤.
[6] إرشادالساري: ٥/٢٣٢عمدة القاري:١٢/٢٦٠فتح الباري:٥/٣٢.
[7] المصدرالسابق.
[8] المصدرالسابق.

فرمائيلي دي هغه على وجه التحريم نه دي. كه رسول الله ﷺ هغه ممانعت على وجه التحريم فرمائيلي وې نود جنتى په زړه كښې به د زميندارئى شوق څنګه پيداكيدو هغوى په د معصيت او ګناه خواهش هلته څنګه كولې شي.[1]

[حديث ۲۲۲۱] [2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ وَحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ يَوْمًا يُحَدِّثُ وَعِنْدَهُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ «أَنَّ رَجُلاً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ اسْتَأْذَنَ رَبَّهُ فِي الزَّرْعِ فَقَالَ لَهُ أَلَسْتَ فِيمَا شِئْتَ قَالَ بَلَى وَلَكِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَزْرَعَ. قَالَ فَبَذَرَ فَبَادَرَ الطَّرْفَ نَبَاتُهُ وَاسْتِوَاؤُهُ وَاسْتِحْصَادُهُ، فَكَانَ أَمْثَالَ الْجِبَالِ فَيَقُولُ اللَّهُ دُونَكَ يَا ابْنَ آدَمَ، فَإِنَّهُ لاَ يُشْبِعُكَ شَيْءٌ». فَقَالَ الأَعْرَابِيُّ وَاللَّهِ لاَ تَجِدُهُ إِلاَّ قُرَشِيًّا أَوْ أَنْصَارِيًّا، فَإِنَّهُمْ أَصْحَابُ زَرْعٍ، وَأَمَّا نَحْنُ فَلَسْنَا بِأَصْحَابِ زَرْعٍ. فَضَحِكَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم -. [۷۰۸۱]

**ترجمه**:- د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ دا بيان فرمائيلو اوهغوى ﷺ سره يوكلى وال سړې وو. چه يوجنتى سړې به د پروردګانه د زميندارئى كولواجازت طلب كوى الله سبحانه وتعالى به اوفرمائى چه آيا ته په داسې حال كښې نه ئى څنګه چه تا غوښتل؟ هغه به عرض كوى چه رښې نه ليكن زه زميندارى كول غواړم. حضور پاك اوفرمائيل چه هغه به تخم واچوى او د سترګويه رپ كښې به راؤتوكيږى او نيغ به شى او ريبلې به شى او د هغې پيداوار به د غرونويه شان شى. الله تعالى به فرمائى اې د آدم څويه! دا واخله ستا خيټه څه څيز نه شى ډكولې او هغه كلى وال (چه داحديث واؤريدو) وئى وئيل والله تاسو به (دغه جنتى سړې) قريشى يا انصارى وينئى ځكه چه هم دغه خلق زمينداران دى او بهرحال مونږ زميندارى كونكى نه يو په دې باندې نبى كريم ﷺ مسكې شو.

## رجال الحديث

**محمدبن سنان**:- دامحمدبن سنان باهلى بصرى رحمه الله دي.[3]

**فليح**:- دا فليح بن سليمان اسلمى رحمه الله دي.[4]

**هلال بن على**:- دا هلال بن على بن اسامة مدينى قريشى رحمه الله دي.[5]

---

[1] ) الابوب والتراجم ص:۱۷۳.

[2] ) أخرجه البخارى أيضًا فى كتاب التوحيد باب كلام الرب مع أهل الجنة رقم:۷۵۱۹ ولم يخرجه احد من أصحاب السنة سوى البخارى رحمه الله تعالى انظر: جامع الاصول حرف القاف الكتاب التاسع. الباب الثالث. الفصل الثانى. النوع العاشر رقم:۸۰۹۸.

[3] ) كشف البارى:۳/۵۳.

[4] ) كشف البارى:۳/۵۵.

[5] ) كشف البارى:۳/۶۲.

**عطاء بن یسار:**- داعطاء بن یسار هلالی مدنی رحمه الله دی.[1]

**ابوهریره**-اودحضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره هم تیره شوي ده.[2]

**قوله: وعنده رجل من أهل البادية**- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي لم أقف على اسمه.[3]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- دا باب بغیرترجمې دی لکه چه د ماقبل دَ باب دپاره دَ فصل په شان دی.[4] نو دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: فانهم أصحاب زرع** سره واضح دی.[5]

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَدې حدیث نه یوځوفائدې مستنبط کیږی. ① په جنت کښې چه نفس انسان دَ کوم کوم دنیاوی خوند طلب کاروی هغه ته به ورکولې شی لکه چه الله سبحانه وتعالی ارشاد فرمائی ﴿وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ﴾ (الزخرف: ۷۱)

② او په دې حدیث کښې دَدې خبرې بیان دې چه بنیادم څنګه خلقةً او جبلةً دَدنیا متاع او اسباب څنګه طالب جوړ کړې دې چه دې جنت ته لاړشی نوبیابه هم داسې آرزوګانې کوی او مګر الله سبحانه وتعالی به دې جنتیانوته دَدوی ټول خواهشات بغیردَ څه محنت اومشقت پوره کوی.

③ په دې حدیث کښې دَقناعت ترغیب او حرص ممانعت دې اوهم په دې دَ آخرت دَ نه ختمیدونکی ژوندامبارك ثمرات مرتب کیږی.[6]

## ۱۷-باب: ماجاء في الغرس

### د ونو کرلو بیان

**دَ ترجمة الباب مقصد:**- امام بخاری رحمه الله خودل غواړی چه دَونوکرلوباره کښې هم روایات راغلی دی که داسې ونه وی چه پیړه او دَتنې والاوی اویا داسې ونه وی چه دَ هغې تنه وغیره نه وی په زمکه کښې دننه وی لکه چقندر ګاځرې وغیره دَدې ټولو ونو لګول جائزدی او په احادیث باب کښې دَدې نه دَ بعض تذکره موجودده.[7]

---

[1] کشف الباری:۲/۲۰٤.

[2] کشف الباری:۱/۶۵۹.

[3] فتح الباری:۵/۳٤.

[4] المصدرالسائق.

[5] المصدر السابق.

[6] عمدة القاری:۱۲/۲۶۲.

[7] التراجم والابواب:۱۷۳.

[حدیث ۲۲۲۲] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ- رضی الله عنه - أَنَّهُ قَالَ إِنَّا كُنَّا نَفْرَحُ بِيَوْمِ الْجُمُعَةِ، كَانَتْ لَنَا عَجُوزٌ تَأْخُذُ مِنْ أُصُولِ سِلْقٍ لَنَا كُنَّا نَغْرِسُهُ فِي أَرْبِعَائِنَا فَتَجْعَلُهُ فِي قِدْرٍ لَهَا فَتَجْعَلُ فِيهِ حَبَّاتٍ مِنْ شَعِيرٍ لاَ أَعْلَمُ إِلاَّ أَنَّهُ قَالَ لَيْسَ فِيهِ شَحْمٌ وَلاَ وَدَكٌ، فَإِذَا صَلَّيْنَا الْجُمُعَةَ زُرْنَاهَا فَقَرَّبَتْهُ إِلَيْنَا فَكُنَّا نَفْرَحُ بِيَوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ وَمَا كُنَّا نَتَغَدَّى وَلاَ نَقِيلُ إِلاَّ بَعْدَ الْجُمُعَةِ. [ر: ۸۹۶]

**ترجمه**:- د حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه نه روایت دې چه مونږ به د جمعې په ورځ خوشحالی کوله یوې بوډۍ د چقندر جرړې اخستې کوم چه به مونږ په خپل باغ کښې په پولوباندې کرل هغې به دا په یوه کټوئی کښې پخولې بیابه ئې په هغې کښې لږې شان د اوربشو دانې اچولې ابوحازم رحمه الله وائی چه زه دا پیژنم چه سهل رضی الله عنه اوفرمائیل نه به په هغې کښې چربی وه او غوړوالې مونږ به د جمعې مونځ کولو او د هغې ملاقات له به تللو هغې به زمونږ مخې ته د غه خوراك راوړلو مونږ به د جمعې په ورځ هم په دې وجه خوشحالی کوله او مونږ به د جمعې په ورځ د جمعې مونځ کولو نه پس خوراك کولو او قیلوله به مو کوله.

## رجال الحدیث

**قتیبة بن سعید**:- دا قتیبه بن سعید بن جمیل ثقفی رحمه الله دې. (۲)

**یعقوب**:- دا یعقوب بن عبدالرحمن بن محمد بن عبدالله القاری المدنی رحمه الله دې. (۳)

**أبي حازم**:- دا سلمة بن دینار مدنی رحمه الله دې. (۴)

**سهل بن سعد**:- دا حضرت سهل بن سعد بن مالك الساعدی رضی الله عنه دې. (۵)

**قوله**: کَانَتْ لَنَا عَجُوزٌ:- علامه عینی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د دغه ښځې نوم معلوم نه شو. (۶)

---

(۱) وأخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الجمة باب قول الله تعالی: ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَوٰةُ﴾ الایة. (الجمعة: ۱۰) رقم: ۹۳۸ وباب القائلة بع دالجمعة رقم: ۹۴۱ وکتاب الاطعمة بأب السلق والشعیر رقم: ۵۴۰۳ وکتاب الاستئذان باب تسلیم الرجال علی النساء الخ رقم: ۶۲۴۸۰ وأخرجه مسلم فی الجمعة باب صلاة الجمعة حین نزول الشمس رقم: ۱۹۹۱ وأخرجه أبوداؤد فی الصلاة باب وقت الجمعة رقم: ۱۰۸۶ وأخرجه الترمذی فی الجمعة باب ماجاء فی القائلة یوم الجمعة رقم: ۵۴۵.

(۲) کشف الباری: ۱۸۹/۲.

(۳) کشف الباری کتاب الجمعة باب الخطبة علی المنبر.

(۴) کشف الباری کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.

(۵) کشف الباری کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.

(۶) عمدة القاری: ۳۶۴/۶ فتح الباری: ۵۴۳/۳.

**دحديث مبارک ترجمة الباب سره مطابقت:-** دحديث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: كنا نغرسه في أربعائنا** سره ښکاره دي.[1]

دا حديث مبارك ابواب جمعه باب قول الله تعالى ﴿ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَوٰةُ فَانتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ وَابْتَغُوا مِن فَضْلِ اللَّهِ ﴾ (الجمعة: ۱۰) کښې تيرشوي دي.

[حديث ۲۲۲۳] (۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- قَالَ يَقُولُونَ إِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ يُكْثِرُ الْحَدِيثَ. وَاللَّهُ الْمَوْعِدُ، وَيَقُولُونَ مَا لِلْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ لَا يُحَدِّثُونَ مِثْلَ أَحَادِيثِهِ وَإِنَّ إِخْوَتِي مِنَ الْمُهَاجِرِينَ كَانَ يَشْغَلُهُمُ الصَّفْقُ بِالْأَسْوَاقِ، وَإِنَّ إِخْوَتِي مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ يَشْغَلُهُمْ عَمَلُ أَمْوَالِهِمْ، وَكُنْتُ امْرَأً مِسْكِينًا أَلْزَمُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَلَى مِلْءِ بَطْنِي، فَأَحْضُرُ حِينَ يَغِيبُونَ وَأَعِي حِينَ يَنْسَوْنَ، وَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمًا «لَنْ يَبْسُطَ أَحَدٌ مِنْكُمْ ثَوْبَهُ حَتَّى أَقْضِيَ مَقَالَتِي هَذِهِ، ثُمَّ يَجْمَعَهُ إِلَى صَدْرِهِ، فَيَنْسَى مِنْ مَقَالَتِي شَيْئًا أَبَدًا». فَبَسَطْتُ نَمِرَةً لَيْسَ عَلَيَّ ثَوْبٌ غَيْرَهَا، حَتَّى قَضَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- مَقَالَتَهُ، ثُمَّ جَمَعْتُهَا إِلَى صَدْرِي، فَوَالَّذِي بَعَثَهُ بِالْحَقِّ مَا نَسِيتُ مِنْ مَقَالَتِهِ تِلْكَ إِلَى يَوْمِي هَذَا، وَاللَّهِ لَوْلَا آيَتَانِ فِي كِتَابِ اللَّهِ مَا حَدَّثْتُكُمْ شَيْئًا أَبَدًا (إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ) إِلَى قَوْلِهِ (الرَّحِيمُ) [ر: ۱۱۸]

**ترجمه:-** حضرت ابوهريره ﷺ فرمائي چه خلق وائي ابوهريره ډير احاديث بيانوي. آخر الله تعالى سره زماملاويدل دی يعنی چه زه دروغ وايم نوسزا به کيږي اوداخلق وائي چه نور مهاجرين او انصار دابوهريره په شان احاديث نه شي بيانولې. او (اصل) خبره داده چه زما مهاجرين رونړه د بازار معاملات (يعنی اخستلو اوخرڅولو) کښې مشغول وی او زما انصاری رونړه دخپلو مالونو (باغونو) په کارکښې مشغول وی اوزه خو يومسکين سړې يم چه د ختيې مړيدو په اندازه خوراك ملاؤ شو نو بس رسول الله ﷺ سره به ووم هغه وخت به موجود ووم کله چه به داخلق غائب وو او ما به يادساتل. دې خلقو (د خپلو کارونود وجې نه) هيرول. (او يوه وجه داهم وه) چه نبی کريم ﷺ يوه ورځ اوفرمائيل چه څوك خپله کپړه د هغه وخته پورې خوره اوساتی ترکومې چه زه خبرې اترې ختمې نه کړم بيا دې راغونډه کړی اوخپلې سينې سره دې اولګوی هغه به زما خبره کله هم هيره نه کړی. دې اوريدو سره ما خپل څادر خورکړو اوهم هغه څادر ماسره وو بل څه کپړه نه وه تردې چه حضورپاك خپلې خبرې اترې ختمې کړې بيا مې راغونډکړو او خپلې سينې سره مې اولګولو. قسم دې په هغه ذات چه تاسو ئې په حقه سره

---

[1] عمدة القاري: ۱۲/۲۶۲.

[2] مرتخريجه فی کتاب العلم باب حفظ العلم رقم:۱۱۸.

رالیکلې ئی ما دحضورپاك دَ دغه خبرو اترو نه ترنن پورې یوه خبره هم نه ده هیره کړې. په الله تعالی قسم که دَ قرآن مجید دوه آیاتونه نه وې ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَى مِنْ بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ أُولَئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّاعِنُونَ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا فَأُولَئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴾ نو ما به تاسوته کله هم حدیث نه بیانولو.

## رجال الحدیث

**موسی بن اسماعیل:** - دا موسی بن اسماعیل تبوذکی منقری بصری رحمه الله دې.[1]

**ابراهیم بن سعد:** - دا ابرهیم بن سعد بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف زهری رحمه الله دې.[2]

**ابن شهاب:** - دامحمدبن شهاب بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې.[3]

**اعرج:** - دا عبدالرحمن بن هرمزالاعرج رحمه الله دې.[4]

**ابوهریرة:** - اودَحضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[5]

دَدې حدیث تشریح کشف الباري **کتاب العلم باب حفظ العلم** رقم: ۱۱۸ کښې تیره شوې ده.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:** - دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: ان إخواني من الانصار کان یشغلهم عمل اموالهم** نه مستفادکیږی چه انصار رضی الله عنهم دَخپلوباغونو اودَغرس په کارکښې مشغول اوسیدل.[6]

**قوله: ما نسیت من مقالته تلك إلی یومی هذا او براعت اختتام:** - اودَحضرت ابوهریره رضی الله عنه په دې قول سره دَ دې کتاب دَ براعت اختتام طرف ته اشاره هم اوشوه. ځکه چه دَدې مطلب دادې چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په ارشاداتو او فرموداتو کښې ترننه پورې چه زما آخری ورځ ده دَهغه وخت نه ما هیڅ نه دی هیرکړی. نودلته دَ آخری ورځ ذکرراغلو په دې واسطه براعت اختتام حاصل شو. آخری ورځ په دې معنی نه ده چه په هغه ورځ دَهغه مرګ راغلو بلکه آخری ورځ په هغه معنی کښې ده هغه چه خبرې اترې کوی هغه په دغه ورځ کښې فرمائی اوهم دغه دَهغه دَ ژوندتراوسه پورې آخری ورځ ده باقی دَ راتلونکو ورځونه احترازمقصودنه دې.[7] اودا هم وئیلې شوی دی چه براعت اختتام قوله: والله الموعد نه مستفاد کیږی.[8]

---

[1]) کشف الباری: ۱/۴۳، ۳/۴۷۷.

[2]) کشف الباری: ۲/۱۲۰، ۳/۳۲۳.

[3]) کشف الباری: ۱/۳۲۶.

[4]) کشف الباری: ۲/۱۱.

[5]) کشف الباری: ۱/۶۵۹.

[6]) عمدة القاری: ۱۲/۳۶۳.

[7]) الابواب والتراجم: ۱۵۳.

[8]) المصدرالسابق

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

# ۴۷- کتاب المساقاة، الشرب

دَدې ځائې نه امام بخاری رحمه الله کتاب المساقاة شروع کوی. زمونږ په مستداوله نسخوکښې عبارت هم په دغه پورته ترتیب سره دې. [1] اودَ علامه عینی رحمه الله په نسخه کښې کتاب المساقاة وقول الله تعالى: الخ. [2] اودَ علامه قسطلانی رحمه الله په نسخه کښې دی کتاب الشرب والمساقاة، باب في الشرب، وقول الله تعالى الخ. [3] دَعلامه ابن بطال رحمه الله په نسخه کښې دی کتاب المیاه، باب ماجاء في الشرب الخ. [4] دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په نسخه کښې عبارت هم زمونږ دَمستداوله نسخو په شان دې. [5]

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله اشکال**:-حافظ ابن حجر رحمه الله دلته اشکال کړې دې چه امام بخاری رحمه الله دکتاب المساقاة ترجمه قایم کړه حالانکه وړاندې چه کوم ابواب راځی دَهغې تعلق خو احیاء او اموات سره دې یعنی هغه ابواب دَ مزارعت په ذیل کښې راځی لهذا مساقاة ترجمه قایم کول مناسب نه دی. [6]

**جواب**:-لیکن که په ابواب باندې یونظر واچولې شی نومساقاة سره دَدې په مطابقت کښې هم څه شك او اشکال نه پیښیږی دَدې دَپاره دَ حافظ ابن حجر رحمه الله اشکال هیڅ وقیع نه دې.

**دَمساقاة لغوی اوشرعی تحقیق**:- مساقاة لغةً السقی معنی څکل، خړوب کولو نه ماخوذ دې په مجرد کښې دَضرب نه مستعمل دې. [7]

او دَ شریعت په اصطلاح کښې هومعاقدة دفع الاشجار إلى من يعمل فيها على أن الثمرة بينهما [8] یعنی مساقاة ونې یوعامل ته دَحواله کولونوم دې په دې شرط چه میوه به په دواړوکښې تقسیمیږی.

**یواشکال اودَهغې جواب**:- که چرې دااعتراض اوکړې شی چه باب مفاعله دواړو طرفوته دَعمل تقاضاکوی اودلته په باب مساقاة کښېداسې نه ده. [9] نوویلې به شی چه داسې کیدل لازمی

---

[1] صحیح البخاری:۳۱۶/۱ قدیمی.
[2] عمدة القاری:۳۶۵/۱۲.
[3] إرشاد الساری:۳۳۸/۵.
[4] شرح ابن بطال:۴۰۲/۶.
[5] فتح الباری:۳۷/۵.
[6] فتح الباری:۳۷/۵.
[7] المعجم الصحاح ص:۵۰۰ – ۵۰۱.
[8] البحر الرائق مع شرح کنزالدقائق:۳۹۸/۸..
[9] لامع الدراری مع تعلیقات شیخ الحدیث محمدزکریا کاندهلوی رحمه الله ۲۶۱/۶.

نه دى لكه چه وئيلى شى قاتله الله او مراد وى قتله الله يا داسې وائى سافرفلان په معنى سفردَ فلانكى.[1]

داسې هم وئيلى شي چه دَ مساقاة عقد خودَ مالك او عامل دواړونه صادريږى.[2] يا داسې اووئيلې شى چه داد باب تغليب نه دې.[3] بهرحال مساقاة يومخصوص معامله ده اودَ اهل مدينه په نيزخودَدې نوم هم معامله ده.[4] دغه شان دَاهل مدينه نور هم مخصوص لغات دى لكه چه هغه مزارعة ته مخابرة او اجارة ته بيع او مضاربة ته مقارضة وائى.[5]

پس مساقاة كښې باغات او نخيل يعنى كهجورې په تقسيم باندې وركولې شى اووئيلى شى چه دا زمونږ باغ دې ته دَدې خيال ساته اوساتنه ئې كوه دې ته اوبه وركوه صفائى كوه كله چه دَدې ميوه پيدا كيږى نيمه ته واخله اونيمه به مونږ واخلو يا اثلاثا يا ارباعا دَدې ميوو دَتقسيم فيصله كولې شى.

**دَ فقهاؤ اختلاف:-** جمهورعلماء امام مالك امام شافعى امام ابويوسف امام محمد امام احمدوغيرهم رحمهم الله په نيزمساقاة جائزدى. او امام ابوحنيفه رحمه الله او دَامام زفر رحمه الله په نيز جائزنه دى.[6] يادساتئى چه دَمساقاة دَ جواز شرائط اوهغه شرائط په كوم سره چه عقد مساقاة فاسدكيږى. دغه شان دَدې متعلق نور احكام هم هغه دى كوم چه په كتاب مزارعة كښې مذكورشوى دى. دغه شان دَ فريقين دَمستدلات څه قدرې تفصيل هم په شاته ابواب كښې تيرشوې دې.

دَ فريق ثانى دليل اول هغه روايات دى كوم چه دَمخابره په ممانعت كښې واردشوى دى. او مخابرة هم مزارعة ته وئيلې شى. لكه چه دَحضورپاك ارشاد مبارك دې **من لم يدع المخابرة فليوذن بحرب من الله ورسوله**.[7] يعنى كوم سړې چه مخابرة (مزارعة) ترك نه كړى نوهغه دې دَالله سبحانه وتعالى اودَهغه دَ رسول ﷺ دَ طرف نه دې اعلان جنګ واورى.

بل دَعدم جواز دويمه وجه داهم ده چه داعقد(كه مزارعت وى يا مساقات) دَعمل نه حاصله شوې ګټې بعض حصه باندې عامل په كرايه باندې دَاخستلو مترادف دې. نودا به دَ قفيز الطحان په معنى كښې وى.[8] چه په اتفاق ناجائزدى. مثلاً يوجرندې والا ته شل منه غنم دَاوړه

---

[1] المصدرالسابق.

[2] المصدرالسابق.

[3] المصدرالسابق.

[4] عمدة القارى:۱۲/ ۲۶۴.

[5] المصدر السابق.

[6] بداية المجتهد:۶۳۷ المبسوط للسرخسى:۲۳/ ۹۸ لامع الدرارى:۶/ ۲۷۱.

[7] أخرجه أبوداؤد فى سننه فى كتاب البيوع باب فى المخابرة والامام الحاكم فى مستدركه:۲/ ۲۸۶.

[8] وفى إعلاء السنن: ۱۶/ ۱۷۵ عن هشام أبى كليب عن ابن أبى نعم البجلى ...... [بقيه برصفحه آئنده...

کولو دپاره ورکړل اوورته اووایه چه د اوړه کولوپه عوض هم دده نه شل سیره غنم یا اوړه واخله نودا ناجائزدی.[1]

د عدم جواز دریم دلیل داهم دی چه دلته اجرت یاخو مجهول دی یامعدوم او په دې کښې هره یوه خبره عقد فاسد کونکې ده.[2] د فریق اول یعنی حضرات مجوزین د دلائلو تفصیل هم شاته بابونو کښې تیرشوې دی اوددې حضراتو مستدل هغه احادیث چه د مزارعت او مساقاة په جواز او ثبوت کښې راغلی دی.

بله داخبره چه داعقد مال اوعمل په مینځ کښې عقدشرکت دې. په اصل کښې دلته فی الحال عمل کیږی اودعمل نه چه کومې فائدې حاصلیږی په هغې کښې د فریقینو اشتراك وی اوهغه میوې په دوی کښې تقسیمیږی لکه چه په مضاربت کښې کیږی. لهذا په مضاربت باندې قیاس کولوسره به داعقدهم جائزوی اود صحت قیاس دپاره د دواړو عقودو په مینځ کښې علت جامعه دحاجت او ضرورت پوره کول دی. څکه چه اکثروختونو کښې دباغ مالك یا زمکه په ذاتی توګه دعمل زراعت د اهلیت نه عاری ده. اوکله دا اهم کیږی چه په کوم سړی کښې د عمل اوکارقدرت او مهارت وی هغه سره باغ اوزمکه موجودنه وی نوددې امر سخت ضرورت پیښیږی چه ددې دواړو په مینځ کښې چه داسې قسم عقد انعقاد اوکړې شی.[3] اولکه څنګه چه دمزارعت په ابواب کښې دا خبره تیره شوې ده چه د متاخرین احناف فتوی هم په جواز باندې ده. دغه شان په مساقاة کښې هم داسې ده.

داخبره هم په ذهن کښې ساتئی چه په حضرات مجوزین کښې هم بعض په جزوی تفصیلات کښې اختلاف رائې موجود ده. مثلاً مطلقًا مساقاة جائز دی یا په بعض مخصوص ونو کښې جائزدې. داؤد ظاهری رحمه الله وائی که چرې نخیل مخصوص وی نوجائز ده او امام شافعی رحمه الله په جدیدقول کښې ارشاد فرمائی چه په نخیل اوکرم کښې خو مساقاة جائزدی ددې نه علاوه په نورو ونوکښې جائزنه دی. په دې وجه دهغې باره کښې احادیث او آثار راغلی دی.[4] او نور حضرات دتعمیم طرف ته مائل دی چه که هرڅیز باغ وی په هغې کښې مساقاة کول جائز دی

---

.....بقیه ازصفحه گذشته] عن أبی سعیدالخدری رضی الله تعالی عنه قال: نهی عن عسب الفحل وعن قفیز الطحان. أخرجه الدارقطنی ص: ۳۰۸، من طریق عبدالله بن موسیٰ عن سفیان عن هشام وسکت علیه. وقال الذهبی رحمه الله فی المیزان: هذامنکر وروایه (هشام)لایعرف. وقال ابن حجر رحمه الله فی اللسان: ذکره ابنحبان فی الثقات. وقال فی الدرایة بعد إخراج الحدیث: فی إسناده ضعف. وقال مغلطانی رحمه الله : هشام ثقة (نیل الوطار:۱۶۹/۵ ) وفی التلخیص: ۲۵۵/۲ قال مغلطانی رحمه الله هوثقة فینظر فیمن وثقه. ثم وجدته فی ثقات ابن حبان . وقال صاحب إعلاء السنن فی تحقیق هذا الحدیث ولم ینفرد به هشام بل تابعه عطاء من السائب عند الطحاوی فی مشکله. قال: حدثنا سلیمان..... وهذا سندجید.إعلاء السنن:/۱۶۱۷۵ – ۱۷۶.

[1]) الهدایة شرح بدایة المبتدی:۱۰۰/۷ المبسوط للسرخسی: ۹۸/۲۳.

[2]) المصدرالسابق.

[3]) الهدایة شرح بدایة المبتدی:۹۹/۷ بتفصیل.

[4]) بدایة المجتهد: ۶۳۸ لامع الدراری:۲۶۲/۶.

دکهجورو اوانګورو تخصیص نشته.[1]

## ۱-باب: في الشرب

وَقَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ أَفَلَا يُؤْمِنُونَ﴾/الانبياء: ۳۰/
وَقَوْلُهُ جَلَّ ذِكْرُهُ: ﴿أَفَرَأَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ءَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنزِلُونَ لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ﴾/الواقعة: ۶۸ - ۷۰ /الْأُجَاجُ: الْمُرُّ، الْمُزْنُ: السَّحَابُ.

په اوبو کښې دحصې اخستلو بیان او دَ الله تعالی ارشاد او موږ هرساه والاخیز دَاوبو نه جوړ کړو آیا هغوی ددې یقین نه کوی.(انبیاء: ۳۰) اودَ الله تعالی ارشاد ښه اوښایئ چه کومې اوبه څکئ دا دَ اوریځونه تاسو راکوزې کړی یا موږ دَدې راکوزونکی یو که موږ اوغواړو نودا به ترخې کړو بیا تاسو شکر ولې نه کوئ. (واقعة: ۶۸، ۶۹، ۷۰)او څوک چه وائی دَاوبوحصه صدقه کول هبه کول اوددې وصیت کول جائزدی. که هغه تقسیم شوې وی اوکه نه وی تقسیم شوې. اوحضرت عثمان رضي الله عنه دَ رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوی چه حضورپاک فرمائی څوک دې چه دَ رومه کوهیان واخلی او په هغې کښې خپله ډولچه دَ مسلمانانو دَ ډولچې په شان کړی (یعنی وقف ئی کړی) نوهغه حضرت عثمان رضي الله عنه واخستل (او په مسلمانانو باندې ئې وقف کړل).

**حل لغات:**- **شرب**: په کسره دَشین، دَاوبوحصه، دَ څکلووخت، دَدې جمع أشراب راځی. دَ باب سمع نه مصدردې او په ضمه اوفتحه سره هم لوستلې شوې دې. صاحب مغرب وائی چه **الشرب: النصیب من الماء، بکسر الشین، وفي الشریعة: عبارة عن نوبة الانتفاع بالماء سقیا للمزارع أوالدواب.** [2] یعنی شرب لغةً دَ شین کسره سره دې. دَ اوبوحصې ته وائی او شرعًا خپل پټی خروب کول ایا خپلو څاروو دَ اوبوڅکلودپاره دَخپلې حصې دَ اوبونمبر ته وائی.

**المزن**: دَجمع صیغه ده په معنی دَاوریځ، سپینه اوریځ، دَاوبونه ډکه اوریځ دَدې واحد **مزنة** دې.[3]

**أجاجا**: **بالضم: الماء الملح الشدید الملوحة**، ډیرې ترخې اوبه.[4]

زموږ په متداوله نسخو کښې دا باب هم دغه شان دې.[5] خودَ شراح بخاری په نسخو کښې دا دوه ابواب دی. ① **باب من الشرب، وقول الله تعالى: وجعلنا الاية.** ② **باب من رأى صدقة الماء الخ.**[6]

**دَ ترجمة الباب مقصد:**- علامه ابن المنیر مالکی رحمه الله دَ امام بخاری رحمه الله مراد دابیان کړې دې چه په اوبوباندې دَ انسان ملکیت جاری کیدې شی اودا مملوک جوړول جائزدی. ددې دپاره

---

[1]) المصدر السابق.
[2]) المغرب: ۱/۴۳۶.
[3]) النهایة: ۲/۶۵۵.
[4]) النهایة: ۱/۴۰.
[5]) صحیح البخاری: ۱/۳۱۶ طبع: قدیمی.
[6]) فتح الباری: ۵/۳۷ – ۳۸ إرشادالساری: ۵/۳۳۸ – ۳۳۹ الکوثر الجاری: ۵/۵۸.

حديث باب كښې حضورپاك ﷺ د بعض شركاء نه د دې د تقسيم دپاره اجازت اوغوښتو اودې تقسيم نې په ښې اوګس طرف باندې مرتب كړو كه چرې هغه په خپل اباحت باندې قايم پاتې كيدو نونه به په يوملك كښې داخل كيدې اونه به د اجازت او د تقسيم د ترتيب حاجت پيښيدو.(١) نولكه چه امام بخارى رحمه الله په دې ترجمة الباب سره دهغه خلقو رد كړې دې چه داوائى چه اوبه مملوك كيدې نه شى اودې تعلق حقوق عامه سره دې.(٢)

**قوله: قال عثمان قال النبى صلى الله تعالى عليه وسلم من يشترى بئر رومة الخ**:- امام بخارى رحمه الله دا تعليق كتاب الوصايا باب إذا وقف أرضًا أو اشترط لنفسه مثل دلاء المسلمين رقم: ٢٧٧٨. بغيردې الفاظونه ذكركړې دې. اود حضرت عثمان غنى رضى الله عنه داتعليق ئى هم دې الفاظوسره امام ترمذى رحمه الله اوامام دارقطنى رحمه الله ذكركړې دې. (٣)اوپه روايت كښې دادى چه بئررومه چه د يويهودى وود حضوراكرم په ترغيب وركولوباندې حضرت عثمان بن عفان رضى الله عنه ٣٥ زره درهم باندې واخستو اودمسلمانانودپاره وقف كړې وو.

**قوله: فاشتراها عثمان رضى الله عنه باندې يواشكال او دهغې جواب**:- دلته فاشتراها عثمان رضى الله عنه الفاظ راغلى دى. او په كتاب الوصايا كښې دا روايت چه امام بخارى رحمه الله ذكركړې دې. (٤) په دې كښې دى ألستم تعلمون أن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم قال من حفر رومة فله الجنة فحفرتها هلته دحفر الفاظ راغلى دى په ظاهره په دواړو روايتونوكښې تعارض دې.

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه حفر الفاظ د بعض راويانو وهم دې ګنى معروف روايت خوهم دغه دې چه حضرت عثمان رضى الله عنه دغه كوهې اخستې وو.(٥) دا هم جواب وركړې شوې دې چه هلته حفر عنوان مجازاً استعمال كړې شوې دې. مطلب دادې چه لكه حافر حفر بير د وجې نه دكوهى مالك وى دغه شان ما هم پيسې وركړې وې په دې وجه ئى مالك شوې ووم اوداهم كيدې شى چه څه وخت په كوهى كښې د مرمت وغيره د پاره څه كنستل وغيره ئى كړې وى اود دې حضرت عثمان رضى الله عنه هلته ذكرفرمائيلې وى.(٦)

بهرحال ددې روايت نه د كوهى وغيره دخپل ځان د پاره اوعامو مسلمانانودپاره وقف كولوجواز معلوميږى اوكه چرته صرف د فقيرانو مسلمانانودپاره ئى وقف كړو اوپخپله وقف

---

(١) المتوارى: ٢٦٤ فتح البارى:٣٩/٥.

(٢) المصدرالسابق.

(٣) سنن الترمذى كتاب المناقب باب فى مناقب عثمان بن عفان رضى الله عنه رقم:٣٧٠٣وسنن للدارقطنى:١٩٦/٤ كتاب الاحباس باب وقف المساجدوالسقايات رقم:٢.

(٤) مر تخريجه أيضًا.

(٥) فتح البارى:٥١١/٥.

(٦) فتح البارى:٥١١/٥ إرشادالسارى:٢٦٩/٦ عمدة القارى:١٠٠/١٤.

کونکې هم فقیرشو نو دهغه دپاره به هم د دې استعمالول جائزوی.[1]

[حديث ۲۲۲٤] [2] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رضى الله عنه - قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِقَدَحٍ فَشَرِبَ مِنْهُ، وَعَنْ يَمِينِهِ غُلاَمٌ أَصْغَرُ الْقَوْمِ، وَالأَشْيَاخُ عَنْ يَسَارِهِ فَقَالَ « يَا غُلاَمُ أَتَأْذَنُ لِي أَنْ أُعْطِيَهُ الأَشْيَاخَ ». قَالَ مَا كُنْتُ لأُوثِرَ بِفَضْلِي مِنْكَ أَحَدًا يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ.

[۲۲۳۷، ۲۳۱۹، ۲٤٦۲، ۲٤٦٤، ۵۲۹۷]

**ترجمه**:- حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه فرمائی د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې یوه پیاله پیش کړې شوه. حضورپاك دهغې نه اوڅکل اود حضورپاك ښی طرف ته په حاضرینوکښې د ټولونه وړوکې هلك وو اود حضورپاك ګس طرف ته مشران سړی وو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل اې هلکه آیا ته ماته اجازت راکوې چه دا دې مشرانوسړو ته ئې ورکړم؟ هغه عرض اوکړو زه ستاسو ﷺ نه (باقی پاتې) تبرك باره کښې په خپل ځان باندې هیچاته ترجیح نه شم ورکولې. نو رسول الله ﷺ هغه پیاله هم هغه وړوکی هلك ته ورکړه.

## رجال الحديث

**سعيدبن ابي مريم**:- دا سعيدبن محمدبن الحكم بن ابى مريم جمحى رحمه الله دې.[3]

**ابوغسان**:- دا ابوغسان محمدبن مطرف بن داؤد بن مطرف تيمى مدنى رحمه الله دې.[4]

**ابوحازم**:- دا ابوحازم سلمة بن دينار اعرج مدنى رحمه الله دې.[5]

**سهل بن سعد**:- دوى سهل بن سعد بن مالك ابوعباس ساعدى رضی الله عنه دې.[6]

**قوله**: عن يمينه غلام أصغر القوم:- دې نه څوك مراد دې؟ ابن بطال رحمه الله نه نقل دی چه دې نه مراد فضل بن عباس رضی الله عنهما دې.[7] اوداابن التين رحمه الله نه نقل دی چه حضرت عبدالله بن عباس

---

[1]) عمدة القارى:۲٦۸/۱۲.

[2]) وأخرجه البخارى أيضًا فى كتاب المظالم باب إذا أذن له وأجله ولم يبين كم هو رقم:۲۳۱۹ وفى كتاب الهبة وفضلها باب الهبة المقبوضة رقم:۲٤٦٤ وفى باب هبة الواحد للجماعة رقم:۲٤٦۲ وأخرجه مسلم فى كتاب الاشربة باب استحباب إدارة الماء واللبن ونحوه ما عن يمين المبتدى رقم:۵٤۱ وأخرجه أحمد رحمه الله فى مسنده مسند حديث أبى مالك سهل بن سعد رقم:۲۲۸۷۵ وانظر جامع الاصول الفصل الرابع فى ترتيب الشاربين: ۸٤/۵ حرف الشين الكتاب الول فى الشرب الباب الاول فى آداب الشراب.

[3]) كشف البارى:۱۰٦/٤.

[4]) كشف البارى كتاب أبواب الاذان باب فضل من غداللمسجدالخ.

[5]) كشف البارى كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.

[6]) المصدرالسابق.

[7]) عمدة القارى: ۲٦۸/۱۲ فتح البارى:۳۹/۵.

رضی الله عنهما مراد دي. (۱) اوعلامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه هم دغه قول متعین دي لکه چه مسندابن ابی شیبه رحمه الله په روایت کښې دَدې خبرې صراحت کړې شوې دې. (۲)

**قوله: والاشیاخ عن یساره:** علامه نووی رحمه الله مسندابن ابی شیبه رحمه الله نه نقل کړی دی چه دَهلك نه مراد عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دې. او اشیاخ کښې حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه هم داخل وو (۳) اوبعض حضراتو دَ ابن التین رحمه الله نه نقل کړی دی چه په وړاندې روایت کښې کوم قوله: عن یمینه أعرابی دې دې نه مراد هم خالدبن ولید رضی الله عنه دې. (۴) او په دغه قول اخیرباندې تعقب کړې شوې دې چه حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه ته اعرابی وئیل مناسب نه دی. (۵) بل داهم وئیلې شوی دی چه حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه دغه وخت دَمشائخوعمر ته نه وورسیدلې. (۶)

په اصل کښې اشتباه او التباس دَدې قصې نه پیداشو کوم چه امام احمد رحمه الله (۷) امام ترمذی رحمه الله (۸) دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړې ده دکوم خلاصه چه داده هغوی فرمائی چه زه اوخالدبن ولید رضی الله عنهما رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دَ حضرت میمونه بنت الحارث رضی الله عنها کورته لاړو نوهغې زمونږ دپاره په یولوښې کښې پئی راوړل نو حضورپاك دَهغې نه اوڅکل اوزه دَحضورپاك ښی طرف ته ووم اوحضرت خالد رضی الله عنه کس طرف ته وو. حضورپاك اوفرمائیل چه حق خو ستا دې چه که چرې ته غواړې نوزه به خالدته ترجیح ورکوم ما عرض اوکړو چه زه ستاسو په تبرك باندې بل چاته ترجیح نه شم ورکولې الخ.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی بعض خلقو دا گمان کړې دې چه دَحضرت انس رضی الله عنه او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما والا روایت تعلق هم یوې قصې سره دې نوهغه دَ اعرابی نه حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه مراد واخستو حالانکه معامله داسې نه ده څکه چه داقصه خو دَحضرت میمونه بن الحارث رضی الله عنها په کورکښې پیښه شوې ده اوهغه قصه دَحضرت انس رضی الله عنه په کورکښې پیښه شوې وه. (۹)

اوترکومې چه په مذکوره روایت کښې په اشیاخ کښې دَحضرت خالدبن ولید رضی الله عنه دَشمولیت مسئله ده نوکه چرې دا قصه اودَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما والا دَ روایت قصه یوه وی نو په دې کښې دَحضرت خالدبن ولید رضی الله عنه دَ شمولیت هیڅ اشکال نشته اوهغه داسې چه دَحضرت ابن

---

(۱) المصدرالسابق.

(۲) إرشادالساری:۳۴۱/۵.

(۳) إرشادالساری:۳۴۱/۵تکملة فتح الملهم:۱۵/٤.

(۴) عمدة القاری:۲۶۹/۱۲ فتح الباری:۳۹/۵.

(۵) المصدرالسابق.

(۶) الکوثر الجاری:۵۹/۵.

(۷) أخرجه احمد فی مسنده:۲۲۵/۱.

(۸) أخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات باب مایقول إذا أکل طعامًا رقم:۳٤۵۵.

(۹) فتح الباری:۳۹/۵.

عباس رضي الله عنهما په روايت كښې دذې خبرې هيڅ ممانعت نشته چه د حضرت خالدبن وليد رضي الله عنه نه علاوه هلته بل څوك نه وو.[1]

**د حديث ترجمة الباب سره مطابقت:-** امام بخاري رحمه الله په دې حديث سره خپله مدعىٰ داسې ثابته كړې ده چه دنبى طرف ته كيناسود وجې نه دهغه استحقاق ثابت شوې وو كه چرې دهغه حق نه وو نوحضورپاك به دهغه نه ولې اجازت طلب كولو. نوكه چرې څوك اوبه په خپل تصرف كښې راولى او په خپله مشكيزه وغيره كښې ئى كيږدى نو په طريقه اولى به د هغه استحقاق په دغه اوبوباندې ثابت شى اوهغه اوبه به دهغه ملك شى.[2]

**يوشك اودهغې ختمول:-** علامه عينى رحمه الله دلته يواشكال ذكركړې دې چه په دې حديث كښې خودذې خبرې هيڅ ذكرنشته چه هغه پياله داوبووه نوپه دې حديث سره داوبودملكيت داستحقاق مدعى څنګه ثابته شوه؟[3]

بيا پخپله هم هغوى ددې دا جواب وركړې دې چه كتاب الاشربة كښې تفصيلاً ددې خبرې تذكره شته چه كانه كان شرابًا او د شرابونه مراد هم اوبه وى اويا داسې پئى مراد دى په كوم كښې چه اوبه ملاؤشوې وى.[4]

[حديث ٢٢٢٥][5] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ - رضى الله عنه - أَنَّهَا حُلِبَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - شَاةٌ دَاجِنٌ وَهْىَ فِي دَارِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَشِيبَ لَبَنُهَا بِمَاءٍ مِنَ الْبِئْرِ الَّتِي فِي دَارِ أَنَسٍ، فَأَعْطَى رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الْقَدَحَ فَشَرِبَ مِنْهُ، حَتَّى إِذَا نَزَعَ الْقَدَحَ مِنْ فِيهِ، وَعَلَى يَسَارِهِ أَبُو بَكْرٍ وَعَنْ يَمِينِهِ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ عُمَرُ وَخَافَ أَنْ يُعْطِيَهُ الأَعْرَابِيَّ أَعْطِ أَبَا بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ عِنْدَكَ. فَأَعْطَاهُ الأَعْرَابِيَّ الَّذِي عَلَى يَمِينِهِ، ثُمَّ قَالَ «الأَيْمَنَ فَالأَيْمَنَ». [٢٤٣٢، ٥٢٨٩، ٥٢٩٦]

**ترجمه:-** حضرت انس بن مالك رضي الله عنه فرمائى چه دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه په كوركښې يوه چيلئى لويه شوې وه دهغې پئى د حضورپاك د پاره اولشلې شو او په هغې كښې ئى دهغه

---

[1] فتح البارى:٥/٣٩ - ٤٠ تكملة فتح الملهم:١٥/٤.

[2] فتح البارى:٥/٣٩ عمدة القارى:١٢/٢٦٨ إرشادالسارى:٥/٣٤١.

[3] عمدة القارى:١٢/٢٦٨.

[4] المصدرالسابق.

[5] وأخرجه البخارى أيضًا فى كتاب الاشربة باب شرب اللبن بالماء رقم:٥٢٨٩ وفى كتاب الهبة وفضلها باب من استسقى رقم:٢٤٣٢وأخرجه مسلم فى كتاب الاشربة باب استحباب إدارة الماء واللبن ونحوهما رقم:٥٤٠٩ وأخرجه الترمذى فى كتاب الاشربة باب أن الايمنين أحق بالشراب رقم:١٨٩٣ وأخرجه ابن ماجه فى كتاب الاشربة باب إذا شرب فاعطى الايمن فالايمن رقم:٣٤٢٥ وأخرجه أبوداؤد رحمه الله فى كتاب الاشربة باب فى الساقى حتى يشرب رقم:٣٧٢٨ وانظر جامع الاصول حرف السين الكتاب الاول فى الشراب الباب الاول فى آداب الشرب الفصل الرابع فى ترتيب الشاربين رقم: ٣١٠٢.

کوهی اوبه ملاؤکړې کوم چه دَحضرت انس رضی الله عنه په کورکښې وو. بیا حضورپاک ته هغه پیاله وړاندې کړې شوه حضورپاک دَهغې نه اوڅکل کله چه حضورپاک هغه پیاله دَخلې نه جداکړه نوچه وئې کتل حضرت ابوبکر رضی الله عنه دَحضورپاک گس طرف ته دې اودَ حضورپاک ښې طرف ته یو کلی وال دې. حضرت عمر رضی الله عنه په فکرکښې شوه چه هسې نه حضورپاک هغه پیاله دغه اعرابی ته ورنه کړی نوهغه عرض اوکړو یارسول الله اول حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ورکړئې چه تاسو سره ناست دې خوحضورپاک هغه پیالئې هغه کلی وال ته ورکړه کوم چه ښې طرف ته ووااو وئې فرمائیل دښی طرف والا زیات حقدار دې بیا چه دَهغه ښی طرف ته وی.

**حل للغات:**- داجن: ساتلې شوې چیلئې جمع دواجن راځی کومې چیلئې ته چه هم په کورکښې گیاوغیره ورکولې شی او کله ددې اطلاق په هرساتلې شوی ځناوربانديې کیږی.[1]

**شیب:**- دَ باب نصر نه دَ مجهول صیغه ده معنی یوځائې کول گډوډ کول.[2]

## رجال الحدیث

**أبوالیمان:**- دا ابوالیمان حکم بن نافع حمصی رحمه الله دې.[3]

**شعیب:**- دا شعیب بن ابی حمزة حمصی رحمه الله دې.[4]

**الزهری:**-دا محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې.[5]

**أنس بن مالک:**- دَحضرت انس بن مالک رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[6]

**قوله: فقال عمر رضی الله عنه: وخاف أن یعطیه الخ:**- دَزهری رحمه الله تول ملگری داسې نقل کوی چه ددې جملې قائل حضرت عمر رضی الله عنه وو بغیردَ معمر رحمه الله اووهب رحمه الله دَهغوی نه نقل کړی دی چه قائل حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه وو.[7] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی معمر رحمه الله چه کله په بصری کښې حدیث بیان کړو نوهغه ته په بعض ځیزونوکښې وهم اوشو اوداهم دَهغې نه دې.[8] اوبیاهغه فرمائی چه داهم احتمال دې چه دواړه شان محفوظ وی یعنی دَ دواړو حضراتودَطرف نه دا وئیلې شوی وی.[9] اوعلامه عینی رحمه الله وائی چه دَ امام معمر رحمه الله دَ طرف نه شذوذ او وهم منسوب کولوپه مقابله کښې هم دغه قول ډیر احسن او انسب دې.[10]

---

[1] النهایة:۱/۵۵٤.

[2] النهایة:۱/۵۵٤.

[3] کشف الباری:۱/٤۷۹.

[4] کشف الباری:۱/٤۸۰.

[5] کشف الباری:۱/۳۲۶.

[6] کشف الباری:۲/٤.

[7] عمدة القاری: ۱۲/۲۶۹فتح الباری:۵/٤۰.

[8] المصدرالسابق.

[9] المصدرالسابق.

[10] المصدرالسابق.

مذکوره جمله په دې خبره باندې دلالت کوي چه صحابه کرامو ﷺ به د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ څنګه تعظیم کولو.(١)

**قوله:** الایمن فالایمن:- علامه کرمانی ﷺ فرمائی الایمن فالایمن منصوب هم لوستلې شي یعنی أعط الایمن او مرفوع هم لوستلې شي یعنی الایمن أحق (٢)علامه عینی ﷺ فرمائی چه په رفع سره لوستل روایت زیات راجح دې اودې تائید هم د دې روایت په بعض طرق سره کیږی په کوم کښې چه الایمن فالایمنون الفاظ واردشوی دی.(٣)

**یواشکال اودهغې جواب:**- دلته لږشان اشکال داپیداکیږی چه سابقه روایت کښې رسول الله ﷺ د غلام نه اجازت غوښتې وو اودلته په روایت مذکوره کښې د هغه اعرابی نه اجازت نه غوښتې د دې څه وجه ده؟ علامه قسطلانی فرمائی دلته دا اعرابی چونکه نوې مسلمان شوې وو نوځکه د هغه د زړه د تسلئې د پاره په هغه باندې شفقت اوکړو د هغه نه اجازت اونه غوښتلو چه الله تعالی دې نه کړی د هغه په زړه کښې څه داسې خبره رانه شي په کوم سره چه د هغه د هلاکت اندیښنه وی او سابقه روایت کښې هغه غلام چونکه د هغوی د اهل قرابت نه وو اود هغه نه هیڅ قسم څه اندیښنه نه وه اود هغه عمر د نورو بزرګانونه کم وو نو حضورپاک د هغه نه تادبا اجازت اوغوښتو. بل هلته موجود نورو حاضرینوته دا خبره په ګوته کول مطلوب وو چه که څه څیز د ښی طرف ته ناست په ځائی بل چاته ورکول وی نو د هغه ښی طرف والا اجازت اخستل ضروری دی.(۴)

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- د حدیث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت د سابقه حدیث په شان دې.

**فوائد:**- شراح بخاری فرمائی چه د دې روایاتونه د یمین یعنی ښې طرف او شمال یعنی ګس طرف باندې فضیلت مستفاد کیږی.(۵)

قاضی عیاض او علامه نووی رحمهما الله فرمائی چه د ښی طرف والا حق مقدم دې اودا سنت واضحه دی او په دې کښې اختلاف نشته.(۶) اوابن حزم ﷺ فرمائی په صورت مذکوره کښې د ګس طرف والامقدم کول جائزنه دی.(۷)

---

(١) المصدر السابق.
(٢) شرح الكرمانی: ١٠/١٧١.
(٣) عمدة القاری:١٢/٢٢٩.
(۴) إرشادالساری: ۵/٣٤٢.
(۵) عمدة القاری:١٢/٢٦٨إرشادالساری:۵/٢٤٢.
(۶) المصدر السابق.
(۷) المصدر السابق.(✿) (اضافه ازمرتب)

**په شریعت کښې د ښی طرف اهمیت:**- که په احکام شریعت کښې لږشان خیال اوکړې شي نومعلومیږی چه په شریعت مطهره کښې ښی طرف ته ډیر اهمیت حاصل دې لکه چه په..... ابقیه برصفحه آئنده....

## ۳- باب: من قال: إن صاحب الماء أحق بالماء حتى يروى، لقول النبى ﷺ (لايمنع فضل الماء)

چاچه دا اووئيل چه د ابومالك د اوبوزيات حقدارديِ ترديِ چه هغه خړوب شى ځكه چه د رسوالله ﷺ ارشاد ديِ فاضل اوبه مه بندوني

---

.....بقيه ازصفحه گذشته] حديث حضرت حفصه رضي الله عنها كښي دي. ان رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم كان يجعل يمينه الطعامه ورابه وثيابه، ويجعل يساره لما سوى ذلك (اخرجه أبوداؤد ۱۳۲/۱) اوپه حديث عائشه صديقه رضي الله عنها كښي دي: كانت يد رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم اليمنى لطّهوره، وطعامه، وكانت يده اليسرى لخلائه وما كان من اذى. (أخرجه ابوداؤد: ۱۳۲/۱) د ديِ نه علاوه نوراحاديث مبارك هم كوم چه په ديِ خبره كښي واردشوى دى دلالت كوى چه شرع هريوقابل تكريم او احترام والاعمل كښي ښي طرف لازم گرخولي ديِ اوهريو قابل اهانت واذى عمل كښيِ گس طرف لازم گرخولوحكم كړيِ ديِ. مثلاً: ① په اودس او غسل كښيِ د ښى طرف تقديم مستحب ديِ. (الفتاوى الهندية: ۱/۵۰) ② امتخاط (پوزه صفاكول) اواستنجاء كښيِ د گس لاس د استعمال حكم ديِ. (الفتاوى الهندية: ۱/۸ البحرالرائق: ۱/۲۹) ③ دغه شان د قضاحاجت نه د راوتلووخت ښي په ښي خپه سره وتل مستحب دى لكه چه په ديِ كښيِ د داخليدو په وخت گسه خپه داخلول مستحب دى (حاشيه ابن عابدين: ۱/۲۳۰) ④ دغه شان په تيمم كښيِ اول په ښى لاس باندي گس لاس مسح كول مستحب دى. (الموسوعة الفقهية الكويتية: ۴۵/۲۹۳) ⑤ دغه شان جمهور فقهاء حنفيه شافعيه حنابله او د يوقول مطابق مالكيه په نيز په مونځ كښيِ هم ښي لاس په گس لاس كيخودل مسنون دى. (المصدر السابق) ⑥ د جمهور فقهاء حنفيه شافعيه حنابله په نيزد جمات د داخليدو په وخت ښي خپه داخلول سنت دى اود مالكيه په نيز دا مندوب دى. (المصدر السابق) ⑦ دغه شان خوراك هم په ښى لاس كول مسنون دى اوبغيرد عذرنه په گس لاس خوراك كول مكروه دى. (فتح الباري: ۹/۵۲۱ مغنى المحتاج: ۳/۳۵۰) ⑧ اوښي لاس د ښى مخ نه لانديِ كيخودل او په ښي اړخ اوده كيدل سنت دى. (أخرجه النسائى في محل اليسوم والليلة: ۴۴۹ الرسالة) ⑨ دغه شان د فقهاؤ په نيز نوكونو پريِ كولووخت كښيِ د ښيِ طرف نه شروع كول مستحب دى. (الموسوعة الفقهية الكويتية: ۴۵/۲۹۴) ⑩ په غلاكولو كښيِ د ښى لاس په پريِ كولود فقهاؤ اتفاق ديِ. (المصدر السابق) ⑪ دغه شان دجمهورفقهاؤ اتفاق ديِ چه د نوى پيدا شوى ماشوم په ښى غوږ اذان او گس غوږ كښيِ اقامت مسنون ديِ. (المصدر السابق) ⑫ او مسواك كولوسره په خله كښيِ دښى طرف نه شروع كول سنت دى. (الفتاوى الهندية: ۱/۷ المغني: ۱/۹۶) ⑬ دغه شان په اذان كښيِ حى على الصلاة اوحى على الفلاح وئيلو وخت كښيِ اول ښيِ طرف ته اوبيا گس طرف ته مخ تاوولو هم مندوب دى. (الموسوعة الفقهية: ۴۵/۲۹۵) ⑭ اود مړى دغسل په وخت دښى طرف نه شروع كول مسنون دى. (فتح الباري: ۳/۱۳۰ مسلم: ۲/۶۴۸) ⑮ دغه شان د سر په خرولو كښيِ هم دښى طرف نه شروع كول مستحب دى سره د ديِ چه په ديِ خبره كښيِ د فقهاؤ اختلاف پيداشويِ ديِ چه ښيِ طرف د حالق معتبرديِ كه د محلوق. (الموسوعة الفقهية: ۴۵/۲۹۶) ⑯ اود اوبويا بل څيز دتقسيم په وخت د ښى طرف مسنون كيدلوتذكره خو په حديث باب كښيِ ده اودغه شان دعالم آخرت ابدى كاميابى اوسرفرازى هم د اصحاب يمني دپاره خاص كړيِ شويِ ده.

**اللهم ارزقنا اتباع سنن سيدالمرسلين واجعلنا فى الدارين من أصحاب اليمنى آمين يارب العالمين. مرتب: محد مزمل سلاوټ عفى عنه.**

**دترجمة الباب مقصد:** - علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله داکومه خبره ذکرکړې ده په دې کښې دَ چا هم اختلاف نشته.[1] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه نفی اختلاف د جمهورعلماؤ په قول باندې خو صحیح ده څوك چه دَ اوبودمملوك کیدو قائل دی لیکن کوم خلق داوائی چه اوبودَ چامِلك نه وی د حقوق عامة دَ قبیل نه دې اوکوم سړې چه غواړی په هغې کښې تصرف کولې شی دَهغوی په لحاظ به دانفی صحیح نه وی.[2]

اودَ امام بخاری رحمه الله مقصددادې چه کوم سړې دَاوبومالك دې هغه زیات حقداردې اودَخپل څاروود څروب کولونه پس چه کومې بچ شی دهغه زیاتی اوبونه به بیشکه دَ خلقو دَ انتفاع اجازت ورکولې شی. باقی داچه پخپله دې خان مؤخرکړی اونوردې مقدم کړی دا صحیح نه ده.چونکه حضورپاك دَ فضل ماء دَ منع کولونه بندیز کړې دې نومعلومه شوه که اوبه زیاتی نه وی نوبه هغې کښې سړی ته دَبل دَمنع کولوحق شته اوپه فضل ماء کښې دَ منع کولوحق نشته.

[حدیث ۲۲۲۶/۲۲۲۷][3] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رضی الله عنه-أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صلی الله علیه وسلم-قَالَ «لاَ يُمْنَعُ فَضْلُ الْمَاءِ لِيُمْنَعَ بِهِ الْكَلأُ».

**ترجمه:** - دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې دې چه فاضل یعنی زیاتی اوبه مه منع کوئی چه دَهغې په نتیجه کښې واښه منع شی.

## رجال الحدیث

**عبدالله بن یوسف:** - داعبدالله بن یوسف تنیسی رحمه الله دې.[4]

**مالک:** -دوی امام مالك بن انس بن مالك بن ابی عامر، ابوعبدالله مدنی رحمه الله دی.[5]

**أبی الزناد:** - دا ابوالزناد عبدالله بن ذکوان رحمه الله دې.[6]

**الاعرج:** - دا اعرج، عبدالرحمن بن هرمز رحمه الله دې.[7]

---

[1]) شرح ابن بطال:۶/۴۰۵.

[2]) فتح الباری:۵/۴۰.

[3]) أخرجه مسلم رحمه الله تعالى فی کتاب المساقاة باب تحریم بیع فضل الماء الذی یکون بالفلاة رقم:۴۰۸۹، ۴۰۹۰، ۴۰۹۱ واخرجه أبوداؤد رحمه الله تعالى فی کتاب الاجارة باب فی منع الماء رقم: ۳۴۷۵ والترمذی رحمه الله تعالى فی کتاب البیوع باب بیع فضل الماء رقم:۱۲۷۲ وابن ماجه فی کتاب الرهون رقم: ۲۴۷۸ وأحمد فی مسنده فی مسندأبی هریرة رضی الله تعالی‌عنه رقم:۷۳۲۰، ۸۷۱۰۹۹۷۶ ۱۰۲۵۷ وانظرجامع الصول حرف المیاء الکتاب الثانی الباب الثانی الفصل الرابع الماء ولاملح رقم:۳۱۰.

[4]) کشف الباری:۱/۲۸۹، ۴/۱۱۲.

[5]) کشف الباری: ۱/۲۹۰ ۲/۸۰.

[6]) کشف الباری:۲/۱۰.

[7]) کشف الباری:۲/۱۱.

**ابي هريره:-** اودَ حضرت ابوهريره ﷺ تذكره هم تيره شوې ده. (۱)

**تشريح:-** په دې روايت مذكوره كښې داونيلى شوى دى چه داوبوكومه زياتى حصه ده دَهغې نه څوك په دې وجه مه منع كوئى دِې دَپاره چه دَهغې په ذريعه واښه بچ كړې شى اومنع كړې شى. په عربوكښې به داكيدل چه دَ يوسړى به يوځائى كښې كوهې وو ياچينه وه اوهغې سره به واښه راټوكيدل نودَ څاروو والا به هلته راتلل اوخپل څاروى به ئى څرول اودَ وښوخوړلونه پس به دَ اوبوضرورت وو نودَدې پاره به ئى اوبه هم په هغه ځائى كښې پرې څكولې. اوس كه د اوبومالك به هلته دَاوبوڅكولونه منع كوى نوښكاره خبره ده چه ددې نتيجه به دا شى چه خلق به هلته خپل څاروى دَ وښودَ څرن دپاره هم نه راولى. چه دَوښوڅرن دې دلته كوى او اوبه دې بل ځائى وركوى نودا خوډيره ګګه او سخته مسئله ده. په دې وجه حضورپاك اوفرمائيل چه تاسودَزياتى اوبونه په دې وجه منع كوئى چه دَ وښونه منع شى اوواښه بچ كړې شئى دا صحيح نه دى. دَدې نه معلومه شوه چه واښه په حقوق عامه كښې داخل دى اوددې نه دَ منع كولو اجازت نشته اوكوموخلقو چه دَاوبونه منع اوكړه اودَ وښودَ بچ كولودپاره ئى بهانه جوړه كړه په هغوى باندې رسول الله نكير اوفرمائيلو. (۲)

**دَ فقهاء اختلاف بيان:-** اوس پاتې شوه داخبره چه واښه په حقوق عامه كښې داخل دى اوددې نه منع كول صحيح نه دى. دامنع كول تحريمى دى كه تنزيهى په دې كښې دَعلماؤ دوه اقوال دى. راجح هم دغه دې چه داممانعت تحريمى دې او امام مالك امام ابوحنيفه اوامام شافعى رحمهم الله هم دغه مسلك دې. (۳)

دا ممانعت صرف دَ څاروو په حق كښې دې كه دَ فصل متعلق هم دې. شوافع او احناف وائي چه صرف دَ څاروو باره كښې دې كه څوك خپل څاروى باندې اوبه څكوى نوپه دې سره دَ اوبودَمالك دَمنع كولوحق نشته. پاتې شوه داخبره كه يوسړې خپل پټې اوبه كول غواړې نودَهغې دَمنع كولوحق شته. (۴) اودا په دې وجه چه څاروې خودَ ذى روح دَقبيل نه دې اودَ تندې د وجې نه دَهغې دَ هلاكت انديښنه ده او په زمكه او فصل كښې داسې نه ده. (۵)

دَ مالكيه په نيز په فصل كښې هم دغه حكم دې كه چاسره دَ ضرورت نه زياتى اوبه وى اوڅوك خپل پټې اوبه كول غواړى نوهغه ته دَ منع كولوحق نشته. (۶) اودَ حنابله نه دواړه روايتونه نقل دى. (۷)

---

(۱) كشف البارى: ۶۵۹/۱.

(۲) عمدةالقارى: ۲۷۱/۱- ۲۷۲، فتح البارى: ۴۰/۵ – ۴۱.

(۳) ردالمحتار: ۲۸۳/۵ المغنى: ۵۸۰/۵ شرح الزرقانى: ۷۴/۷ عمدة القارى: ۲۷۲/۲ إرشادالسارى: ۳۴۳/۵ فتح البارى: ۴۱/۵ اختلاف الائمة العلماء: ۴۴/۲.

(۴) المصدرالسابق.

(۵) المصدرالسابق.

(۶) المصدرالسابق.

(۷) إختلاف الائمة العلماء: ۴۴/۲ – ۴۵.

**وابنه د حقوق عامه نه دى:-** د دې حديث اونورو احاديثونه دامعلوميږى چه وابنه دحقوق عامه نه دى اودَ دې نه منع كولې نه شى. د دې تفصيل دادې چه هغه وابنه كوم چه په غيرمملوكه او مباحه زمكوكښې راټوكيږى لكه ځنګل، وادیانې غرونه اوداسې زمكې دكومې چه څوك مالك نه وى هغه دَټولوخلقودَپاره مشترك دى اودهغه ځائى دَ وښونه اوبه هغه ځائى كښې ځاروى څرولونه څوك منع كولې نه شى اوهم دغه دَاحنافو او ټولوفقهاؤ مسلك دې.[1] لكه چه دَحضورپاك ارشاد دې المسلمون شركاء فى ثلاث: الماء والنار والكلاء [2] يعنى ټول مسلمانان په دريو څيزونو كښې شريك دى ① اوبه ② اور ③ وابنه. دغه شان دَحضورپاك ارشاد دې ثلاث لايمنعن: الماءُ والكلاء والنار.[3] يعنى دَ دريوڅيزونونه به څوك نه منع كوى: ① اوبه ② اور ③ وابنه. په دې خبره خو اجماتع ده چه په دغه مذكوره زمكوكښې راټونكيدونكى وابنه دټولو دَپاره شريك دى.[4] اودَ يوكس دَپاره دا اختيارنشته چه دَ دغه وښونه څوك منع كړى اودَخپل ځان دَپاره ئى خاص كړى.

علامه شامى رحمه الله وائى كه دَچا په مملوكه زمكه كښې هم داسې اوبنه راوَخيژى اودَهغې مالك دا كرلې نه دى نودهغې هم دغه حكم دې كوم چه ذكرشو يعنى څوك به دَ دغه وښوداورلونه اوهلته خپل ځاروى څرولونه نه شي منع كولې. خودَزمكې مالك ته داحق ضرور حاصل دې چه هغه څوك دَخپلې مملوكه زمكې دَ راتلونه منع كړى.[5]

علامه كاسانى رحمه الله فرمائى كه څوك دَ دغه وښودَپاره دَ چا په مملوكه زمكه كښې داخليدل غواړى نوكتلې به شى چه بل ځائى كښې دغه وابنه موجوددى كه نه كه چرته بل ځائى ملاويږى نودَزمكې مالك هغه منع كولې شى اوكه بل ځائى نه ملاويږى نودَزمكې مالك ته به وئيلې شى چه ته يا ده ته دَداخليدو اجازت وركړه اوياپخپله دله وابنه وركړه.[6]

او علامه شامى رحمه الله فرمائى كه دَزمكې مالك دَخپلې زمكې وابنه راجمع كړل يا هغه پخپله په خپله زمكه كښې دَ وښو كراوكړو نودا دَ هغه ملكيت دې اوس چاته دَ دغه وښو اوړلو اختيارنشته ځكه چه دغه وابنه دَزمكې مالك ته دَخپل محنت اوكسب سره حاصل شوى دى.[7]

علامه ابن هبيرة رحمه الله فرمائى چه كوم وابنه دَ چا په مملوكه زمكه كښې اوشي نو دَزمكې مالك به دَهغې مالك جوړ شى؟ په دې كښې دَ فقهاؤ اختلاف دې امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى صاحب

---

[1] شامية: ٢٨٣/٥ المغنى:٥٨٠/٥ شرح الزرقانى:٧٤/٧.
[2] أخرجه أبوداؤد فى سننه: ٧٥١/٣باب فى منع الماء رقم: ٣٤٧٧.
[3] أخرجه ابن ماجه فى سننه:٨٢٦/٢ من حديث أبى هريره رضى الله تعالى عنه وصحح اسناده ابن حجر رحمه الله تعالى فى التلخيص: ٦٥/٣.
[4] الموسوعة الفقهية الكويتية: ١٠٧/٣٥.
[5] شامية: ٢٧٣/٥.
[6] بدئع الصنائع:١٩٣/٦.
[7] شامية:٢٨٣/٥.

دَ زمکې به مالك نه وی بلکه چه څوك هم دغه وابنه حاصل کړی هغه به مالك وی. اامام شافعي رحمه الله فرمائی چه مالك زمین به دَ دغه وبنوهم مالك وی دَ امام احمدبن حنبل نه دواړه روایتونه دی او راجح روایت هم دغه دې کوم چه دَ امام مالك رحمه الله دَمذهب موافق دې. امام مالك رحمه الله فرمائی که مالك دَ دغه زمکې احاطه او احراز کړی وی نومالك دَ زمکې به هم دَ دغه وبنوهم مالك وی گنی مالك به نه وی.([1])

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَحدیث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت داسې دې چه قوله: لایمنع فضل الماء په دې خبره دلالت کوی که چرې اوبه زیاتی او فاضل نه وی نودَ اوبو مالك دَدې زیات حقدار دې.([2])

[حدیث ۲۲۲۷]([3]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لاَ تَمْنَعُوا فَضْلَ الْمَاءِ لِتَمْنَعُوا بِهِ فَضْلَ الْكَلإِ».

**ترجمه:**- دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی چه فاضل اوبه مه منع کوه چه دَهغې په ذریعه فاضل وابنه منع کړئی.

## رجال الحدیث

**یحیی بن بکیر:**- دا یحیی بن عبدالله بن بکیر رحمه الله دې.([4])

**اللیث:**- دا امام لیث بن سعد رحمه الله دې.([5])

**عقیل:**- دا عقیل بن خالد بن عقیل ایلی رحمه الله دې.([6])

**ابن شهاب:**- دا محمدبن مسلم بن عبیدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې.([7])

**ابوهریره:**- اودَحضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.([8])

**دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت دَحدیث سابق په شان دې.

---

[1]) إختلاف الائمة العلماء: ۲/۴۳ – ۴۴.

[2]) عمدة القاری: ۲۷۱/۱۲.

[3]) مرتخریجه انفًا.

[4]) کشف الباری:۳۲۳/۱.

[5]) کشف الباری:۳۲۴/۱.

[6]) کشف الباری:۳۲۵/۱، ۴۵۵/۳.

[7]) کشف الباری:۳۲۶/۱.

[8]) کشف الباری:۶۵۹/۱.

# ۴-باب: من حفر بئراً فی ملکه لم یضمن

## که یوسړي په خپله زمکه کښې کوهی اوباسي (اوپه هغې کښې څوك پریوځي مړشي) نو په هغه به څه تاوان نه وي

**دترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری رحمه الله فرمائی چه په مملوکه زمکه کښې چاکوهي اوویستلو اوڅوك په اتفاقی توګه په هغې کښې مړشو نودکوهي په مالك به څه ضمان وغیره نه راځي. ددې مفهوم دا راوځی که په غیرمملوك زمکه کښې چاکوهي اوویستلو اوپه هغې کښې څوك پریوتلومړشو نوضمان به پرې وی.(۱)

**یواشکال:-** یواشکال داشوې دې چه دا باب خو په کتاب الدیات کښې کیدل پکاروو په کتاب مذکورکښې ددې ذکر په ظاهره مناسب نه معلومیږی؟

**دعلامه ګنګوهی رحمه الله جواب:-** حضرت علامه ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه ددې باب کتاب مذکوره سره مناسبت داې دې چه کله د زمکې مالك په خپله مملوکه زمکه کښې په کوهی کښې دپریوتونکی سړی ضامن نه دې نودهغه په خپله زمکه کښې اوبوسره اختصاص په درجه اولی ثابتیږی. ځکه چه دغه اوبوهغه ته د خپل کوشش اوسعی سره په خپله مملوکه زمکه کښې حاصلې شوی دی نوکه اوبه دهغه دخپل ضرورت نه زیاتې نه وی نوچاته به د دغه اوبو حاصلولو حق نه وی او دغه شان به هغه ته هم داحق حاصل وی چه هغه څوك په خپل ملك کښې دداخلیدونه منع کړی. (۲)

**د فقهاؤ د اختلاف بیان:-** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه جمهور هم ددې تفریق قائل دی چه که چاپه خپله مملوکه زمکه کښې کوهي اوویستلو اوڅوك اتفاقی په دې کښې پریوتلومړشو نو دکوهي په مالك به هیڅ ضمان نه راځي. اوکه په غیرمملوکه زمکه کښې ئی کوهي جوړکړو اوپه هغې کښې څوك پریوتلوهلاك شو نوضمان به راځي. اواحنافو په دې مسئله کښې د جمهورو مخالفت کړې دې.(۳) یعنی هغه په دواړو صورتونوکښې د ضمان قائل نه دی. اوامام بخاری رحمه الله د جمهورو هم خیال دی.(۴)

**د حافظ ابن حجر رحمه الله تسامح:-** لیکن دا د حافظ ابن حجر رحمه الله تسامح دې ځکه چه په قدوری کښې دی من حفر بئراً فی طریق المسلمین أو وضع حجرا فتلف بذلك انسان فدیته علی عاقلته (۵) یعنی چه کوم سړی کوهي اوکنستلو دمسلمانانو په لارکښې یائی څه کاڼړې کیخودو اودهغې د وجې نه یوانسان هلاك شو نودهغه دیت به په هغه عاقله باندې وی. او وړاندې صاحب قدوری رحمه الله

---

(۱) عمدة القاری: ۷۳/۱۲ إرشادالساری:۳۴۵/۵.

(۲) لامع الدراری: ۶/۲۶۴ — ۲۶۵.

(۳) فتح الباری:۴۲/۶.

(۴) المصدرالسابق.

(۵) مختصر القدوری: ۶۰۹ إدارة القرآن.

فرمائی چه ومن حفر بئرا فی ملکه، فعطب بها انسان لم یضمن. (۱)یعنی که چا په خپله مملوکه زمکه کښې کوهې اوکنستلو او یوانسان په هغې کښې پریوتلو هلاك شونوهغه به ضامن نه وی. او که چا دَ مسلمانانو په لارکښې کوهې اوکنستلو اوڅوك انسان په کښې پریوتلودَ اولګې یا غم دَ وجې نه مړشو نو په په دې مسئله کښې په احنافوکښې اختلاف دې امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزدَ اولګې اوغم دَ وجې نه هلاکیدو په صورت کښې په حافرباندې ضمان نه راځی. لانه مات لمعنی فی نفسه والضمان إنما یجب إذا مات من الوقوع. داځکه چه هغه په داسې سبب مړشوې دې چه په خپله دَهغه مړکیدونکی په نفس کښې موجود دې یعنی دَ اولګې اوغم دَ وجې نه لکه چه دا مړکیدونکې داسې شو چه پخپله مړشوې وی او په کوهی والاباندې به ضمان په هغه صورت کښې راځی چه هغه صرف دَ پریوتلودَ وجې نه هلاك شوې وی دې دپاره چه حافر په کوهی کښې دیکه ورکونکې شمیر کړې شی. (۲)

اوامام ابویوسف په اولګه اوغم کښې فرق کوی چه په اولګه کښې دَ حافر هیڅ عمل دخل نشته لیکن په غم او دهشت کښې دَهغه عمل دخل شته ځکه چه په ساقط کوم خوف اوهراس راغلودهغې سبب صرف هم په کوهی کښې پریوتل دی نودَ اولګې په صورت کښې به په حافرباندې ضمان نه وی البته دَغم او ویرې په صورت کښې به حافر ضامن وی. (۳)

امام محمد رحمه الله فرمائی چه په دواړو صورتونوکښې به حافر ضامن وی ځکه چه اولګه هم دَ پریوتول په سبب پیدا شوې ده اوکه دا پر یوتل نه وې نو خوراك به هغه ته نیزدې وو. (۴)

[حدیث ۲۲۲۸](۵) حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضی الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «الْمَعْدِنُ جُبَارٌ، وَالْبِئْرُ جُبَارٌ، وَالْعَجْمَاءُ جُبَارٌ، وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ». [ر: ۱۴۲۸]

**ترجمه**:- دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی په کان سره چه کوم نقصان وی هغه به بې ځایه (معاف) وی اود کوهی نه چه کوم نقصان وی هغه به بې ځایه (معاف) وی او په څناورسره چه کوم نقصان وی هغه به بې ځایه(معاف)وی او په خښ شوی مال کښې خمس دې.

---

(۱) مختصر القدوری: ۶۰۹ إدارة القرآن.

(۲) الهدایة شرح بدایة المبتدی: ۱۲۶/۸.

(۳) المصدرالسابق.

(۴) المصدرالسابق.

(۵) أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الزکاة باب فی الرکاز الخمس رقم: ۱۴۲۸ وفی کتاب الدیات باب المعدن جبار والبئر جبار رقم: ۶۵۱۴ وفی باب العجماء جبار رقم: ۶۵۱۴ ومسلم رحمه الله تعالی فی کتاب الحدود باب جرح العجماء والمعدن والبئر جبار رقم: ۴۵۶۲، ۴۵۶۵ وابوداؤد رحمه الله تعالی فی کتاب الخراج باب ماجاء فی الزکاة وما فیه: ۱۴۷/۳ وانظر جامع الصول حرف الزاء الکتاب الاول فی الزکاة الباب الثانی فی أحکام الزکاة المالیة وأنواعها الفصل الخامس: فی زکاة المعدن والرکاز.

## رجال الحدیث

**محمود:**- دا محمود بن غیلان ابواحمد عدوی مروزی رحمه الله دی.[1]
**عبیدالله:**- دا عبیدالله بن موسی بن باذام عبسی رحمه الله دی.[2] او هغوی رحمه الله دَامام بخاری رحمه الله نیغ په نیغه شیوخ نه دی. لکه چه کتاب الایمان په شروع کښې دَدوی روایت تیرشوې دې اولکه امام بخاری رحمه الله په واسطه سره روایت نقل کوی لکه چه په مذکوره حدیث کښې ئې کړې دې.[3]
**اسرائیل:**- دا اسرائیل بن یونس بن ابی اسحاق سبیعی رحمه الله دې.[4]
**أبي حصين:**- داابوحصین عثمان بن عاصم رحمه الله دې.[5]
**أبي صالح:**-دا ابوصالح زکوان زیات رحمه الله دې.[6]
**ابوهريره:**- اودَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[7]
**حل لغات:المعدن:** دَسرو اوسپینوزرو کان دَهرڅیزاصل اومرکزته وائی.دَدې جمع معادن راځی.[8] **جبار:**- بیکاره بې ځایه، بې قیمت هدر وئیلې شی. ذهب دمه جباراً دَهغه وینه بې ځایه شوه یعنی دَ هغه دَ ونې بدله وانخستې شوه.[9]
العجماء: دَ أعجم مؤنث دې یعنې څاروی.[10]
الرکاز: دَاهل حجاز سره نیزدې دجاهلیت په زمانه کښې خښنو شوو خزانوته وئیلی شی اواهل عراق په نیز معادن ته وئیلی شی او په اصل لغت کښې دَ دواړو قولواحتمال دې ځکه چه دا دواړه په زمکه کښې خښ شوی مال دپاره مستعمل دې.[11]
**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت قوله:والبئر جبار په ذریعه واضح دې.[12]

---

[1]) کشف الباری کتاب الاذان باب ندء الاذان.
[2]) کشف الباری:۱/۶۳۶.
[3]) فتح الباری: ۵/۴۶إرشادالساری:۵/۳۴٤.
[4]) کشف الباری:٤/۵٤۶.
[5]) کشف الباری:٤/۱۸۹.
[6]) کشف الباری:۱/۶۵۸.
[7]) کشف الباری: ۱/۶۵۹.
[8]) النهایة:۲/۱۶۹.
[9]) النهایة: ۲/۲۳۲.
[10]) النهایة: ۲/۱۶۵.
[11]) النهایة: ۲/۶۸۵.
[12]) عمدة القاری:۱۲/۲۷۳.

**ترجمة الباب سره مطابقت باندې اشکال اودهغې جواب:-** دلته دا اشکال کړې شوې دې چه په ظاهره مذکوره مطابقت صحیح نه معلومیږی ځکه چه ترجمة الباب ملك سره مقیددې اوحدیث مبارك مطلق دې.[1]

**دَ علامه ابن منیرمالکی رحمه الله جواب:-** علامه ابن منیرمالکي رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت صحیح دې. هغه داسې چه حدیث دَ مطلق کیدو دَوجه نه خپلوټولو صورتونو ته متضمن دې په دې کښې دَملك والا صورت امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې بیان کړو اودَدې ثبوت به ددې حدیث مبارك دَ مطلقه کیدوسره داسې شی چه کله هغه سړې کوم چه غیرمملوکه زمکه مثلاً صحراء واغیره کښې کوهې کنی هغه ضامن نه دې. نوچه کوم سړې په خپل مملوکه زمکه کښې کوهې وغیره جوړکړی نوهغه دَدې خبرې زیات مستحق دې چه هغه دې ضامن نه وی.[2]

**تشریح:-** قوله: المعدن جبار الخ..... یعني که یوسړې په خپله مملوکه زمکه کښې یا ارضی موات کښې دَسرو سپینو زروحاصلولودَپاره کان اوکنی او په دې کښې څوك سړې پریوتلو مړشو یادَغه کان څه دیوال په هغه راپریوتلو نودَهغه وینه هدرده اوحافربه ضامن نه وی.[3] دغه شان که یوځناور څوك انسان هلاك یازخمی کړی یادَچامال هلاك کړی نوبیابه هم مالك ضامن نه وی اودا عدم ضمان په هغه صورت کښې دې چه کله دې ځناورسره دَ ده مالك یا سائق اوقائد نه وی اوکه چرې مالك وغیره ورسره وی نوضمان به واجب وی.[4]

**قوله: وفی الرکاز الخمس:-** دَجمهورفقهاؤ مالکیه شافعیه اوحنابله په نیز رکاز هغه خښې شوې خزانې ته وائی کومه چه دَ جاهلیت په زمانه کښې خښنه کړې شوی وی.[5] اودَ حنفیه په نیزد رکاز اَطلاق په هغه خزانوباندې هم کیږی چه دَخالق کائنات دَطرف نه په زمکه کښې خښې دی اوپه هغه خزانو باندې هم کیږی چه دَمخلوق دَ طرف نه په زمکه کښې خښې شوې وی. نولکه چه دَ حنفیه په نیز دَ رکاز لفظ اطلاق معدن او کنوز دواړو باندې کړې شوې دې.[6] په دې خبره دَ فقهاء کرامو اتفاق دې چه دا حدیث مبارك دَ جاهلیت دَ زمانې خښ شوی سره اوسپین زرو خزانوته شامل دې. که هغه خښتې شوې وی اوکه نه.[7] لیکن دَ سرو اوسپینوزرو نه علاوه په خښوشوو څیزونوکښې دَ فقهاء کرامو اختلاف واقع شوې دې. حنفیه مالکیه حنابله اوامام شافعی رحمهم الله قول قدیم هم دغه دې چه لفظ رکاز هرخښ شوی مال ته

[1]) فتح الباری: ٤٢/٥ إرشادالساری:٣٤٥/٥.
[2]) المصدرالسابق.
[3]) عمدة القاری: ٢٧٣/١٢إرشادالساری:٣٤٤/٥.
[4]) المصدرالسابق.
[5]) الموسوعة الفقهية: ٩٨/٢٣ردالمحتار: ٤٣/٢- ٤٤ المجموع:٣٨/٦ المغنى:١٨/٢.
[6]) المصدرالسابق.
[7]) المصدرالسابق.

شامل دي. لکه اوسپنه تانبه سیسه پیتل سنګ مرمر وغیره اودغه شان ددې ځیزونو جوړ شوی سامان لوښی وغیره.
خو یادساتئی حنفیه چه رکاز ته مطلق ونیلي دې اودې اطلاق خلقی معدنیات باندې هم کړې دې هغه عام نه دې بلکه دې نه خلقی معدنیات مراد دی کوم چه فی الحال جامد وی مګرد اور په ذریعه هغه ویلې کولې شی لکه سره زر سپین زر اوسپنه تانبه وغیره دی. [1] بهرحال په دې خبره باندې دَ فقهاؤ اتفاق دې چه په رکاز کښې خمس واجب دې. اوباقی څلور اخماس به دَ دغه رکاز موندونکی په ملکیت کښې وی. [2]

## ۵- باب: الخصومة فی البئر والقضاء فیها

### په کوهی کښې خصومت اودهغې فیصله کول

**دَترجمة الباب مقصد:**- امام بخاری رحمه الله فرمائی چه بنړیعنی کوهي مملوك وی لهذا که په دې کښې څه اختلاف پیداشی نوقاضی سره مقدمه کولې شی اود شرعی قواعدو مطابق به قاضی فیصله کولې شی.

[حدیث ۲۲۲۹] [3] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ يَقْتَطِعُ بِهَا مَالَ امْرِءٍ، هُوَ عَلَيْهَا فَاجِرٌ، لَقِيَ اللَّهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى (إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلاً) الآيَةَ.

---

[1]) المصدرالسابق.
[2]) المصدرالسابق.
[3]) أخرجه البخاری أيضًا فی كتاب الخصومات باب كلام الخصوم بعضهم فی بعض رقم:۲۲۸۵ وفی كتب الرهن باب إذا اختلف الراهن والمرتهن ونحوه فالبينة على المدعى واليمين على المدعى عليه رقم:۲۳۸۰ وفی كتاب الشهادات باب سؤال الحاكم المدعى هل لك بينة؟ قبل اليمين رقم:۲۵۲۳ وفی باب اليمين على المدعى عليه فی الاموال والحدود رقم:۲۵۵ وفی باب يحلف الخدعی عليه حيثما وجبت عليه اليمين ولا يصرف من موضع إلى غيره رقم: ۲۵۲۸ وفی باب قو الله تعالى: ﴿ انَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ ﴾ الاية رقم: ۲۵۳۱ وفی كتاب التفسير سورة آل عمران رقم:۴۲۷۵ وفی كتاب الايمان والنذور باب عهدالله عزوجل رقم:۲۴۵۲ وفی باب قول الله تعالى ﴿ انَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بعهد الله وَاَيْمَانهمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ﴾ رقم: ۶۲۶۹ وفی كتاب الاحكام باب الحكم فی البير ونحوها رقم: ۶۷۶۱ وفی كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذ نَّاضِرَةٌ ﴾ رقم: ۷۰۰۷ وأخرجه مسلم فی كتاب الايمان باب وعيدمن اقتطع حق مسلم بيمين فاجرة بالنار رقم: ۳۷۲، ۳۷۳ والترمذی فی كتاب البيوع باب ماجاء فی اليمين الفاجرة يقتطع بها مال المسلم رقم: ۱۲۶۹ وفی التفسير سورة آل عمران رقم:۲۹۹۶ وأبوداؤد رحمه الله تعالى فی كتاب الايمان والنذور باب فيمن خلف يمينا ليقتطع بها ملا لاحد رقم:۳۲۴۵ وابن ماجه رحمه الله تعالى فی كتاب الاحكام باب من حلف على يمين فاجرة ليقتطع بها مالا رقم: ۲۳۲۳.

فَجَاءَ الأَشْعَثُ فَقَالَ مَا حَدَّثَكُمْ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ فِي أُنْزِلَتْ هَذِهِ الآيَةُ، كَانَتْ لِي بِئْرٌ فِي أَرْضِ ابْنِ عَمٍّ لِي فَقَالَ لِي « شُهُودَكَ » . قُلْتُ مَا لِي شُهُودٌ. قَالَ « فَيَمِينُهُ » . قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِذًا يَحْلِفَ. فَذَكَرَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم - هَذَا الْحَدِيثَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ ذَلِكَ تَصْدِيقًا لَهُ.[۲۲۸۵، ۲۳۸۰، ۲۵۲۳، ۲۵۲۵، ۲۵۲۸، ۲۵۳۱، ۴۲۷۵، ۶۲۸۳، ۶۲۹۹، ۶۷۶۱، ۷۰۰۷]

**ترجمه**:- دَحضرت عبدالله بن مسعود رحمه الله نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائيلې کوم سړې چه داسې قسم اوخوری اوپه دغه قسم سره دَمسلمان مال واخلی اوهغه سړې په دغه قسم کښې دروغژن وی نوهغه به الله تعالی سره په داسې حال کښې ملاویږی چه الله سبحانه وتعالی به په هغه باندې غضب ناک وی په دې باندې الله تعالی دا آیت نازل کړې. ترجمه: کوم خلق چه دَالله تعالی دَعهد اودَ خپلو قسمونو په عوض لږه شان پونجی یعنی مال اخلی الخ. (آل عمران: ۷۷) بیا اشعت رضی الله عنه راغلو وئی وئیل ابوعبدالرحمن تاسو ته کوم حدیث بیانوی؟ دا آیت زماباره کښې نازل شوې زما یوکوهې زما دَتره دَخوئی په زمکه کښې وو(زمونږ په مینځ کښې جګړه اوشه زه دَحضورپاك په خدمت کښې حاضرشوم) رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل خپل ګواهان حاضرکړه ماعرض اوکړو ماسره ګواه نشته. حضورپاك اوفرمائيل بيا دَهغه نه قسم واخلئی ما عرض اوکړو یا رسول الله ! هغه خو قسم خوری نو نبی کریم ﷺ داحدیث بیان کړواوالله تعالی دَهغوی دَتصدیق دَپاره دا آیت مبارك نازل کړو.

## رجال الحدیث

**عبدان**:- داعبدالله بن عثمان بن جبلة مروزی رحمه الله دې.[1]

**أبي حمزه**:- دامحمدبن میمون مروزی رحمه الله دې.[2]

**أعمش**:- دا سلیمان بن مهران اعمش رحمه الله دې.[3]

**شقیق**:- دا ابووائل ، شقیق بن سلمة ازدی کوفی رحمه الله دې.[4]

**عبدالله**:- اودحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه تذکره تیره شوې ده.[5]

**أشعت**:-دااشعت بن قیس الکندی رضی الله عنه دې.[6]

**دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَدې حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت ښکاره دې حضورپاك دَهغه کوهی دَخصومت باره کښې فیصله اوفرمائیله اوهغه داسې چه اول

---

[1]) کشف الباری:۱/۴۶۱.

[2]) کشف الباری:کتاب الغسل باب نقض الیدین من الغسل عن الجنابة.

[3]) کشف الباری:۲/۲۵۱.

[4]) کشف الباری:۲/۵۵۹.

[5]) کشف الباری: ۲/۲۵۷.

[6]) کشف الباری کتاب الکفالة باب الکفالة فی القرض والدیون بالابدان وغیرها.:

حضورپاك دمدعى نه گواه اوغوښتلو اوبيا د مدعى د گواه پيش كولونه دعاجزكيدو په صورت كښې دمدعى عليه نه ئې قسم اوغوښتو.[1]

**تشريح:-** داړومبې خائى دې چه امام بخارى رحمه الله داحديث ذكركړو. دَدې نه علاوه امام بخارى رحمه الله وړاندې په ۱۳ خايونوكښې داحديث مبارك ذكركړې دې[2] اوچرته هم چه مؤلف رحمه الله دا روايت نقل كوى هلته دحضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه روايت سره دحضرت اشعث رضي الله عنه قصه هم ضرور بيانوى.

**قوله: شهودك وفيمينه:-** دا مرفوع اومنصوب دواړه شان لوستلې شوې دې. دمرفوع لوستلوپه صورت كښې تقدير عبارت داسې شى: **المطلوب على دعواك شهودك يا المثبت لحقك شهودك**[3] اود منصوب لوستلو په صورت كښې به تقدير عبارت داسې شى. **هات شهودك يا أقم شهودك.**[4] اوهم دغه دواړه صورتونه فيمينه كښې جارى كيږى يعنى د نصب په صورت كښې به تقديرعبارت وى **فاطلب يمينه** اود رفع په صورت كښې تقديرعبارت داسې شى **فالحجة القاطعة بينكمايمينه.**[5]

**قوله: كانت لى بئرفى أرض:-** علامه كرمانى رحمه الله فرمائى په حديث باب كښې خود كوهى دخصومت ذكردې خو په بعض نورو رواياتوكښې صرف أرض ذكردې. ولې په دواړو كښې څه تعارض نشته په دې وجه دَدې خبرې احتمال شته چه نزاع په دواړوكښې وى اوددې دپاره هم چه په كوهى كښې خصومت دزمكې خصومت ته مستلزم دې. اوهغه په دې وجه چه بئرسره دهغې حريم وى.[6]

**قوله: ابن عم لى:-** حضرت اشعث بن قيس بن معدى كرب دَتره دځوئى نوم معدان بن اسودبن سعدبن معدى كرب وو. اود هغوى لقب جفشيشوو فعليل په وزن باندې اوقيس او اسود دواړه رونړه وو[7] اوداهم وئيلې شوى دى چه د هغه نوم جرير بن معدان وو.[8]
علامه كرمانى رحمه الله فرمائى[9] چه داصحيح دى چه هغه سړې ځوك يهودى وو لكه څنګه چه

---

[1] عمدة القارى:۱۲/۲۷٤.
[2] انظر فى تخريج الحديث المذكور.
[3] الكوثر الجارى:۵/۶۲إرشادالسارى:۵/۳٤۶ عمدة لقارى:۱۲/۲۷۹.
[4] المصدرالسابق.
[5] المصدرالسابق.
[6] الكوثر الجارى:۵/۶۲.
[7] عمدة القارى:۱۲/۲۸۹ فتح البارى:۵/٤۳.
[8] الكوثر الجارى:۵/۶۲.
[9] الكوثر الجارى: ۵/۶۲.

پخپله امام بخارى رحمه الله دَ بعض طرق كښې نقل كړې دې. عاصم بعض اليهود لى أرض. (١)

**قوله: إذاً يحلف:-** علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه إذايحلف صرف منصوب لوستلې شى. (٢) او دغه شان علامه سهيلى رحمه الله هم وئيلى دى. (٣) علامه عينى رحمه الله اوعلامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه كلمه إذا دَ حروف جوب نه دې دكوم په جزاء كښې فعل مستقبل منصوب واقع كيږى لكه چه وئيلې شى انا آتيك اودَې په جواب كښې وئيلې كيږى إذا أكرمك ليكن دا په هغه صورت كښې دى كله چه په دې كښې ټول شرائط موجودشى مثلاً تصدر استقبال اوعدم فصل وغيره. نوپه داسې صورت كښې به فعل هم منصوب لوستلې شى. (٤) ليكن علامه زركشى رحمه الله احكام عمدة الاحكام كښې او ابن خروف په شرح سيبويه كښې وضاحت كړې دې چه بعض عرب دَ دغه ټولو شرائطوباوجود فعل مرفوع لولى نه چه منصوب. (٥)

اوعلامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه اكثر شراح دا په نصب سره ضبط كړې دې. دَاذن ناصبه دَ وجې نه ليكن ددې مرفوع كيدل زيا صحيح دى ځكه چه اذن منصوب كيدو دوه شرائط دى اوهغه دلته مفقود دى ① چه دَفعل اعتماد په ماقبل باندې نه وى. ② هغه دَ مستقبل په معنى كښې وى اوپه دې خبره كښې هيڅ شك نشته چه دلته يحلف سره زمانه حال مراددې. ځكه چه دغه سړى هم دَدې حكم په حالت كښې قسم اوچتول دلته مراد دې نه چه په زمانه دَ مستقبل كښې قسم اوچتول. (٦)

علامه عينى رحمه الله فرمائى دَدې حديث نه يوڅوفوائدحاصل شوى. ① ګواه دَمدعى په ذمه دې او قسم دَ مدعى عليه په ذمه دې كله چه هغه انكاراوكړى. ② داهم معلومه شوه چه حاكم ته داحق حاصل دې چه هغه مدعى سره ګواه نه كيدو په صورت كښې دَمدعى عليه نه قسم خوړل طلب كړې سره دَدې چه صاحب حق داسې نه غواړى. ③ بل په دې مسئله كښې دَ ظفرهم رد دې. (٧) ځكه چه نبى كريم ﷺ دَدې خصومت دَ فيصلې دَ پاره دَمدعى نه ګواه او دَ

---

(١) مرتخرجه انفًا.

(٢) شرح الكرمانى:١٠/١٧٣.

(٣) فتح البارى:٥/٤٣ إرشادالسارى:٥/٣٤٦ عمدة القارى:١٢/٢٧٩.

(٤) عمدة القارى: ١٢/٢٨٩ إرشادالسارى:٥/٣٤٦.

(٥) فتح البارى:٥/٤٣ إرشادالسارى:٥/٣٤٦.

(٦) الكوثر الجارى: ٥/٦٢.

(٧) دلته علامه عينى رحمه الله دَ يوې مشهورې مسئلې طرف ته اشاره كوى چه دَاحنافو او جمهورعلماؤ په مينځ كښې مختلف فيهاده اوددې مسئلې خلاصه داده چه احناف اودَيوقول مطابق حنابله په نيز په يومدعى به په هيڅ حال كښې قسم نه شى راګرځولې اوداسې به نه كيږى چه صرف دَمدعى په قسم خوړلوسره به قاضى دهغه په حق كښې فيصله كوى.
اود شوافع او مالكيه او د يوقول مطابق حنابله مسلك دادى كه چرې مدعى سره ګواه نه وى اوقاضى دَمدعى عليه نه قسم طلب كړى نودَهغه دَ قسم خوړلونه دَانكارنه پس..... ابقيه برصفحه آئنده

گواه نه موجود کیدو په صورت کښې مدعی علیه نه قسم طلب کړې نومعلومه شوه چه دلته د
بل څه خبرې عمل دخل نشته اودې نه هم زیات وضاحت دامام مسلم رحمه الله تخریج کړې شوې
دحضرت وائل بن حجر رضی الله عنه روایت کښې دی چه په دې کښې صراحت سره د رسول الله ﷺ دا
قول نقل کړې شوې دې. لیس لك منه إلا ذلك (۱)

**د ایت مبارک تشریح اودې شان نزول کښې داختلاف بیان:- ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾**
(آل عمران ۷۷) یعنی کوم خلق چه اخستل کوی د الله تعالی په اقراربانددې هغوی ته به الله تعالی
نظرنه کوی د قیامت په ورځ اونه به ښائسته کوی هغوی اودهغوی دپاره دردناك عذاب دې
حضرت شیخ الهند رحمه الله ددې آیت مبارك په فوائدکښې فرمائی یعنی کوم خلق چه د دنیا لږ

...بقیه ازصفحه گذشته] به هغه قسم په مدعی باندې راګرځوی اود هغه د قسم خوړلو په صورت کښې به دهغه په حق کښی فیصله کوی. دغه شان که مدعی یوګواه پیش کړې شو اودویم ګواه پیش کولونه عاجزشو نوبیابه هم قسم هم دهغه طرف ته راګرځی اوکه چرې دغه مدعی قسم اوخوری نود یوګواه او قسم په وجه به دهغه په حق کښې فیصله کولې شی.(شرح الوقایة: ۲/۵۰ الهدایة: ۱۰/۲۷٤ إعلاء السنن: ۱۵/۳٤۲ المغنی:۱۲/۱۲٤ المحلی:۷/۳۷۷)
بیاد فریق ثانی په بعض جزئیاتوکښې اختلاف دې مثلاً دامام مالك رحمه الله په نیز داموالو په مسائلو کښې به قسم په مدعی باندې وی لیکن د نکاح طلاق اوعتاق په مسائلوکښې به په مدعی نه راګرځی. (المصدرالسابق) خود امام شافعی رحمه الله او امام ابوداؤد رحمه الله په نیز په ټولو مسائلوکښې به قسم په مدعی باندې راګرځی. (المصدرالسابق).
د فریق ثانی یودلیل د دارقطنی رحمه الله یوروایت دې چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دحضورپاك نه نقل کوی چه حضورپاك قسم په طالب حق باندې راګرځولې وو. (سنن دارقطنی:۲/۵۱۵)
لیکن صاحب دإعلاء السنن فرمائی چه داحدیث زمونږ خلاف حجت نه شی جوړیدې ځکه چه داد محمدبن مسروق عن اسحاق بن فرات په طریق سره مروی دې اومحمدبن مسروق غیرمعروف دې او اسحاق بن فرات مختلف فیه دې. (إعلاء السنن:۱۵/۳٤۳). دغه شان نور روایات کوم چه په دې باب کښې نقل دی هغه د ضعف نه خالی نه دی. (المصدر السابق).
خود فریق اول دلیل مشهورحدیث البینة علی المدعی والیمین علی من انکر. داحدیث صاحب إعلاء السنن په ډیرو طرق سره نقل کړې دې اواحدیث سره ددې چه د احاد په طرق سره مروی دې خودامت دتلقی قبول او استعمال دوجې نه د متواترحدته رسیدلې دې. (المصدرالسابق).
نورسول الله ﷺ دمدعی اومدعی علیه په مینځ کښې دوه څیزونه تقسیم کړې یعنی ګواه ئې په مدعی باندې کړو او قسم په مدعی علیه باندې اوښکاره خبره ده چه تقسیم دشرکت منافی دې. (الهدایة: ۱۰/۲۷٤ المغنی:۱۲/۱۲٤). بل رسول الله ﷺ الیمین او البینة الف لام جنس سره ذکر فرمائیلې دې لکه چه جنس یمین دمدعی علیه دپاره او جنس بینه د مدعی دپاره مقررکړو. لهذا اوس دجنس یمین څه حصه داسې باقی پاتې نه شوه چه دمدعی دپاره وی. (المصدرالسابق). بل دا چه اخباراحاد د اخبارمشهورمعارض نه شی جوړیدې (حاشیة شرح الوقایة ۲/۲۰۵) او بیا قسم خود خصومت د لرې کولودپاره وضع کړې شوې دې نه چه د اثبات خصومت دپاره. بیامدعی د یمین نه څنګه استفاده کولې شی. (المصدرالسابق).

(۱) عمدة القاری:۱۲/۲۸۹ وأخرجه مسلم فی کتاب الایمان باب وعیدمن اقتطع حق مسلم یمین فاجرة بالنار رقم:۲۲۳

شان مال واخلى دَالله تعالى عهداوخپل مينځ كښې قسمونه مات كړى نه دخپل مينځ معاملات صحيح ساتى اونه چه الله تعالى سره ئى كوم قول اوقرار كړې وو په هغې قايم پاتې كيږى دَهغوى انجام وړاندې ذكر دې. حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله فرمائى دا په يهودوكښې صفت ووچه الله تعالى دَهغوى نه اقرار اخستې وو اوقسمونه ئى وركړى وو چه دَهرنبى امداديان اوسئ بيا دَدنيادَغرض دَپاره اوګرځيدل اوځوك چه دَدروغو قسم اوخورى دَدنيا دَاخستلودَپاره دَهغوى هم داحال دې.[1]

اودَې په شان يوبل آيت كښې حضرت رحمه الله فرمائى يعنى دَالله تعالى نافرمانى اودَ خلق الله په ګمراهئى ئى بس اونه كړو بلكه دَدغه حق دَ پټولوپه عوض كوم چه به ګمراه كيدل دَهغوى به ئى البته په رشوت كښې مال هم اخستلو اودكوم نوم چه ئى هديه نذرانه او شكرانه كيخودې وو. حالانكه داحرام خورى مردار اودَ خنزيرخوړلونه هم بدتردى. اوس ښكاره خبره داچه داسې خراب حركتونباندې به سزاهم سخته وى. وړاندې فرمائى چه په ظاهرى نظركښې هغوى ته دغه مال خوندناك اوښكلې معلوميدلو مګر په حقيقت كښې خو هغه اور دې كوم چه په خوشحالئى سره په خپلوخيټوكښې وردكوى. لكه چه په خوندناك خوراك كښې زهرقاتل ملاؤ شوې وى چه دَخوراك په وخت مزيدار معلوميږى او خيټې ته په رسيدوباندې اور اولګوى.[2]

**يوه شبه اودَهغې جواب:**- په دې قسم آياتونوكښې دَچاداً شبه كيدې شى چه دَنورو آياتونونه خومعلوميږى چه الله تعالى به هغوى ته خطاب فرمائى اودَ سوكلام نه كولومطلب دادې چه لطف اورحمت سره به هغوى سره كلام نه كوى او دَتخويف اوتذليل اوتهديداو وعيد په توګه به الله تعالى هغوى سره كلام كوى په كوم سره چه به هغوى ته سخت خفګان اوغم وى. ياداسې اووايئى چه بلاواسطه به هغوى سره كلام نه كوى اودكلام كولوچه كوم ذكردې هغه به دَعذاب دَملائكوپه ذريه سره وى.[3]

دَدې آيت مبارك يوشان نزول خوهم هغه دې كوم چه امام بخارى رحمه الله بيان كړې دې. او دويم قول كوم چه حضرت عكرمه مقاتل رحمهماالله بيان كړې دې چه دا آيت دَيهوديانوباره كښې نازل شوې دې دَ چانه چه الله سبحانه وتعالى عهداخستې وو چه هغوى به دَتورات نه دَرسول الله ﷺ صفات دَخلقو په وړاندې بيانوى ليكن هغوى دَدې مخالفت اوكړو اودَ دنياخسيس

ځيزونه ئى اختياركړل.[4]

اودريم قول كوم چه حضرت مجاهد اوشعبى رحمهماالله بيان كړې دې چه يوسړې سحروختى بازارته لاړشى اوڅه ځيز خرڅوى چه ماښام شو نويوخريدارهغه له راغلو اوبيع وغيره ئى ورسره اوكړه نوهغه سړى قسم اوخوړلوچه په دومره پيسوباندې ما دا سودا دسحر نه نه ده

---

[1] تفسيرعثمانى. آل عمران:٧٧ ص:٧٦.

[2] تفسيرعثمانى البقرة:١٧٤ ص:٣٩.

[3] المصدرالسابق.

[4] زادالمسير لابن الجوزى:٢٩٧/١ اللباللسيوطى رحمه الله ٥٨ أسباب النزول للواحدى رحمه الله ٢٢٠.

ورکړې اوکه مابنام شوې نه وې نو مابه په دومره روپو کښې هيڅ کله نه وه ورکړې نو په دې سلسله کښې مذکوره آيت نازل شو.([1])

# ٦- باب: إثم من منع ابن السبيل من الماء

## کوم سړي چه مسافرداوبو (داستعمال) نه منع کړي دهغې ګناه بيان

**دترجمة الباب مقصد:-** دامام بخاري رحمه الله مقصود دادې چه دخپل حاجت اوضرورت نه زياتې اوبه په مسافرباندې خرچ کول پکار دي.([2]) حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله فرمائي د من الماء الفاضل عن حاجته قيد ضروري دې لکه چه په حديث باب کښې د دې صراحت موجود دې.([3]) او علامه ابن بطال رحمه الله فرمائي د دې نه معلومه شوه چه که چرې د اوبو صاحب ته د دې اوبو حاجت او ضرورت وي نو د ده حق د مسافر د حق نه مقدم دې اوچه کله هغه خپل ضرورت پوره کړي نو بيا دهغه د پاره مسافرته اوبه ورکولو نه منع کول جائز نه دي.([4])

[حديث ٢٢٣٠]([5]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ عَنِ الأَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا صَالِحٍ يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « ثَلاَثَةٌ لاَ يَنْظُرُ اللَّهُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ، وَلاَ يُزَكِّيهِمْ ، وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ رَجُلٌ كَانَ لَهُ فَضْلُ مَاءٍ بِالطَّرِيقِ ، فَمَنَعَهُ مِنِ ابْنِ السَّبِيلِ ، وَرَجُلٌ بَايَعَ إِمَامًا لاَ يُبَايِعُهُ إِلاَّ لِدُنْيَا ، فَإِنْ أَعْطَاهُ مِنْهَا رَضِيَ ، وَإِنْ لَمْ يُعْطِهِ مِنْهَا سَخِطَ ، وَرَجُلٌ أَقَامَ سِلْعَتَهُ بَعْدَ الْعَصْرِ ، فَقَالَ وَاللَّهِ الَّذِى لاَ إِلَهَ غَيْرُهُ لَقَدْ أَعْطَيْتُ بِهَا كَذَا وَكَذَا ، فَصَدَّقَهُ رَجُلٌ ، ثُمَّ قَرَأَ هَذِهِ الآيَةَ ( إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلاً .[٢٢٤٠، ٢٥٢٧، ٦٧٨٦، ٧٠٠٧]

دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه حضورپاک ارشاد فرمائيلې چه دريوکسانوته به الله تعالى دقيامت په ورځ نظرنه کوي نه به هغوي پاکوي اودهغوي دپاره به دردناک عذاب وي. يوهغه سړې چه هغه سره په لارکښې زياتې اوبه وي اوهغه دااوبه د مسافرنه منع کړې اوبل

---

[1]) زادالمسير لابن الجوزي:٢٩٧/١ أسباب النزول للواحدي رحمه الله ٢١٩.

[2]) إرشادالساري:٣٤٧/٥ عمدة القاري:٢٨٩/١٢.

[3]) فتح الباري: ٤٤/٦ عمدة القاري:٢٨٩/١٢.

[4]) شرح ابن بطال:٢٨٩/١٢.

[5]) أخرجه البخاري أيضًا فى كتاب المساقاة باب من رأى أن صاحب الحوض والقبة أحق بمائه رقم:٢٢٤٠ وفى كتاب الشهادات باب اليمين بعد العصر رقم:٢٥٢٧ وفى كتاب التوحيد بب قول الله تعالى ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ ﴾ رقم: ٧٠٠٨ وأخرجه مسلم رحمه الله تعالى فى كتاب الايمان باب بيان غلظ تحريم إسبال الا زار والمن بالعطية رقم: ٣١٠ وأبوداؤد رحمه الله تعالى فى كتاب الاجارة باب فى منع الحاء رقم: ٣٤٧٥ وابن ماجه رحمه الله تعالى فى كتاب التجارات باب كراهة الايمان فى الشراء والبيع رقم: ٢٣٠٧ وانظر جامع الاصول حرب الياء الفصل اثانى فى الاحاديث المشتركة بين آفات النفس . النوع الاول ص: ٦٣٥٩.

هغه سړي چه د يو حاکم نه ئې د دنياپه خاطر بيعت اوکړو اوس که هغه ده ته څه ورکړي نو راضي او که څه ورنه کړي نو ناراض. اوبل هغه سړي چه مازيګرنه ئې خپله سودا اولګوله او وئې ونيل چه په الله تعالى قسم دچانه سواچه بل معبودنشته ماته ددې سودا دومره دومره قيمت ملاويدلو (خوما نه ده ورکړي) بياچاهغه رښتوني اوګڼړلو يعنى دهغه نه ئې سامان واخستلو) بياحضورپاك دا آيت مبارك تلاوت کړو ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ (آل عمران:۷۷) يعنى چه کوم خلق دالله تعالى په عهد اوخپلو قسمونوپه عوض لږ شان ددنياسامان اخلي الخ

## رجال الحديث

**موسىٰ بن إسماعيل:**- دا موسىٰ بن اسماعيل تميمي منقري تبوذكي بصري رحمه الله دې.[1]

**عبدالواحدبن زياد:**-داعبدالواحدبن زياد بصري رحمه الله دې.[2]

**أعمش:**- داسليمان بن مهران اعمش رحمه الله دې.[3]

**أباصالح:**-دا ابوصالح ذكوان مدني رحمه الله دې.[4]

**ابوهريره:**- دحضرت ابوهريره رضي الله عنه تذكره هم تيره شوې ده.[5]

**دحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت:**- دحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت قوله: رجل كان له فضل ماء بالطريق فمنعه من ابن السبيل سره واضح دې. ځکه چه دا زياتي اوبه مسافر ته دورکولونه منع کونکې هم دهغه دريو نه يودې دچاباره کښې چه رسول الله ﷺ مبارك داوعيد بيان کړې دې که چرته زياتي اوبه د مسافرنه منع کونکې ګناه ګارنه وونوهغه به ددغه وعيدهم مستحق نه وو.[6]

## ۷-باب: سكر الانهار

### په نهرونوکښې بنديزلګول

**حل لغات:**- **سكر:** دنصرنه مصدردې. **يقال:** سكرالنهر أى: سده، يعنى په نهريادرياب کښې بندلګول، منع کول.[7]

**دترجمة الباب مقصد:**- دامام بخاري رحمه الله مقصودپه دې خبره باندې تنبيه کول دى چه په نهرونو کښې بنديزلګولې شى اود دې تنبيه ضرورت ځکه پيښيږى چه په ظاهره معلوميږى چه دا

---

[1] کشف الباری: ۱/۴۳۳، ۴، ۳/۴۷۷.

[2] کشف الباری:۲/۳۰۱.

[3] کشف الباری:۲/۲۵۱.

[4] کشف الباری: ۱/۶۵۸.

[5] کشف الباری:۱/۶۵۹.

[6] عمدة القاري:۱۲/۶۸۰.

[7] مختار الصحاح:۱۶۴.

صورت به مكروه وى. چونكه نهرونه خو د عامو خلقو د فائدې څيز دې او د عامو انسانانو حق هغې سره متعلق وى نوبيابه يوسړى ته دهغې دبندولوڅنګه حق وى؟ نوامام بخارى ﷫ فرمائى كه په نهرونوكښې ددې دپاره بنديزاولګولې شى چه اوبه دسړى پټى ته اورسى نوپه دې كښې هيڅ مضائقه نشته. دكوم ځائى نه چه نهرشروع كيږى دهغې ځائى نه پټى ته اوبه نه رسى په دې وجه اوبه تيزې بهيږى اوداوراندې تلودپاره مخكښې څې هلته بنديز لګولې كيږى دې دپاره چه هغه پټوته هم اوبه اورسى اودا جائزدى په دې كښې هيڅ بديت نشته. باقى دا چه كله دې پټى ته اوبه اورسى نوچه هغه بندختم كړې شى دې دپاره چه اوبه مخكښې لاړې شى.[1]

[حديث ۲۲۳۱] [2] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِى ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رضى الله عنهما - أَنَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّ رَجُلاً مِنَ الأَنْصَارِ خَاصَمَ الزُّبَيْرَ عِنْدَ النَّبِىِّ صلى الله عليه وسلم فِى شِرَاجِ الْحَرَّةِ الَّتِى يَسْقُونَ بِهَا النَّخْلَ فَقَالَ الأَنْصَارِىُّ سَرِّحِ الْمَاءَ يَمُرُّ فَأَبَى عَلَيْهِ، فَاخْتَصَمَا عِنْدَ النَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لِلزُّبَيْرِ «اسْقِ يَا زُبَيْرُ، ثُمَّ أَرْسِلِ الْمَاءَ إِلَى جَارِكَ». فَغَضِبَ الأَنْصَارِىُّ، فَقَالَ أَنْ كَانَ ابْنَ عَمَّتِكَ. فَتَلَوَّنَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم ثُمَّ قَالَ «اسْقِ يَا زُبَيْرُ، ثُمَّ احْبِسِ الْمَاءَ، حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى الْجَدْرِ». فَقَالَ الزُّبَيْرُ وَاللَّهِ إِنِّى لأَحْسِبُ هَذِهِ الآيَةَ نَزَلَتْ فِى ذَلِكَ (فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ). [۲۲۳۲، ۲۲۳۳، ۲۵٦۱، ۴۳۰۹]

**ترجمه**:- دحضرت عبدالله بن زبير ﷺ نه روايت دې چه يوانصارى سړى د حضورپاك په وړاندې حضرت زبير ﷺ سره جګړه اوكړه د حره دهغه لختى باره كښې په كوم سره چه (دمدينې خلقو) د كهجورو ونوته اوبه وركولې. انصارى حضرت زبير ﷺ ته اووئيل اوبه راپريږده، حضرت زبير ﷺ انكاراوكړو نو دواړو د حضورپاك په وړاندې خپله مقدمه پيش كړه. رسول الله ﷺ حضرت زبير ﷺ ته اوفرمائيل اې زبير خپلو ونوته اوبه وركړه بياخپل ګاوندى ته اوبه ورپريږده دې اوريدو سره انصارى غصه شو او وئې وئيل (ددې فيصلې وجه داده چه) دا ستاسودترور خوئى دې نود رسول الله ﷺ د مخ مبارك رنګ بدل شو او وئې فرمائيل اې زبير خپلو ونوته اوبه وركړه بيا اوبه بند كړه تردې چه هغه پاس پولوته اورسى.

---

[1]) الابواب والتراجم:۱۷۳.

[2]) أخرجه البخارى أيضًا فى كتاب المذكور باب شب الاعلى قبل الاسفل رقم: ۲۳٦۱ وفى كتاب الصلح باب إذا أشار الامام بالصلح فابى حكم عليه الخ رقم: ۲۷۰۸ وأخرجه مسلم رحمه الله تعالى فى تاب الفضائل باب وحوب اتباعه رقم: ۲۳۵۷ وأبوداؤد رحمه الله تعالى فى كتاب الفضية باب من القضاء رقم:۳٦۳۷ والترمذى رحمه الله تعالى فى كتاب الاحكام عن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم باب ماجاء فى الرجلين يكون أحدهما أسفل من الاخر فى الماء رقم:۱۳٦۳ وفى كتاب التفسير باب من سورة النساء رقم:۳۲۷٦ والنسائى رحمه الله تعالى كتاب آداب القضاء باب الرخصة للحاكم الامين أن يحكم وهو غضبان رقم: ۵۴۰۷.

حضرت زبیر رضی الله عنه اوفرمائیل په الله تعالی قسم چه زه پوهیږم دا آیت ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ﴾ الایة (النساء: ۶۵) دَدې واقعه باره کښې نازل شوې دې.

**حل لغات:- سرح الماء:** دَباب تفعیل نه دَامر صیغه ده په معنی اوبه پریخودل. سرح المواشی: څاروی دَځرن دَپاره پریخودل. سرح القوم: آزادول، پریخودل. سرح الشعر: کمنز کول. [1] **الجدر:** دیوال، بندیره. دَدې جمع جدران ده. اودغه شان الجدرا هم صیغه واحد ده اودَدې جمع جدر راځی. [2] **شراج:** شرج اوشرجة جمع ده دَ کانړی ځنې علاقې نه دَ نرمې زمکې طرف ته دَ اوبو بهیدو خائی اودَدې یوه جمع شروج هم راځی. [3]

## رجال الحدیث

**عبدالله بن یوسف:-** داعبدالله بن یوسف تنیسی مصری رحمه الله دې. [4]
**اللیث:-** دا امام لیث بن سعد رحمه الله دې. [5]
**ابن شهاب:-** دامحمد بن شهاب بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې. [6]
**عروة:-** دا عروة بن زبیر بن العوام رضی الله عنه دې. [7]
**عبدالله بن زبیر:-** دا حضرت عبدالله بن زبیر بن عوام رضی الله عنه دې. [8]
**زبیر:-** دا صحابی رسول حضرت زبیربن العوام رضی الله عنه دې. [9]

**دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: سرح الماء یمرفابی علیه نه ماخوذدې حضرت زبیر بن عوام رضی الله عنه دَ انصاری خبره منلونه انکاراوکړو اوپه نهر کښې بندیز اولګولو چه خپلو ونوته اوبه ورکړی. [10]

**قوله: أن رجلاً من الانصار خاصم الزبیر:-** دا انصاری څوك وو؟ په دې کښې دَشراح بخاری په مینځ کښې اختلاف واقع شوې دې. بعض حضرات لکه امام داؤدی رحمه الله اوابواسحاق زجاج رحمه الله وغیره وائی چه هغه منافق وو. [11]

---

[1] معجم الصحاح: ص:۴۸۶.
[2] معجم الصحاح ص:۱۵۸.
[3] النهایة:۸۵۲/۱.
[4] کشف الباری:۲۸۹/۱، ۱۱۳/۴.
[5] کشف الباری:۳۲۴/۱.
[6] کشف الباری:۳۲۶/۱.
[7] کشف الباری:۲۹۱/۱.
[8] کشف الباری:۱۶۴/۴.
[9] کشف الباری:۱۶۹/۴.
[10] عمدة القاری:۲۸۱/۱۲.
[11] عمدة القاری:۲۸۲/۱۲ فتح الباری:۴۶/۵ إرشادالساری:۳۴/۵.

خوامام بخاری رحمه الله په کتاب الصلح کښې چه دَدې روایت تخریج کړې دې په هغې کښې أنه من الانصار قد شهد بدراً الفاظ دی دغه شان دَترمذی په روایت کښې هم دَدې مضمون تائید کیږی په هغې کښې دی فغضب الانصاری، فقال: یارسول الله! ځکه چه غیرمسلمینو به حضور پاك په یارسول الله سره نه مخاطب کولو بلکه یامحمد به نی وونیل (۱) خودَامام داؤدی وغیره دَطرف نه داجواب ورکړې شوې دې چه دا واقعه په بدرکښې دَحاضریدو نه وړاندې راغلې وه. (۲) اوترکومې چه هغه ته دَ انصاری ونیلوتعلق دې نوهغه دَ لغوی معنې په اعتبارسره دې یعنی چاچه دَرسول الله ﷺ امدادکړې. نه دَدې معنی مشهورمراد دې چه هغه دَانصارو مدینه نه وو(۳) اوداهم وئیلی شوی دی چه دلته نسبًا انصاری وئیل مراد دی نه چه دینًا (۴) لیکن صحیح خبره داده چه دَدې حضراتو دغه انصای ته منافق وئیل صحیح نه دی لکه چه پخپله دَ امام بخاری رحمه الله دَ کتاب الصلح دَ روایت نه معلومیږی چه هغه انصاری بدری وو او په غزوه بدرکښې شرکت کونکې سړې منافق کیدې نه شی لکه چه علامه عینی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله دَ شارح مصابیح علامه توریشتی رحمه الله نه نقل کړی دی چه سلف صالحین کله هم دَیومنافق دَانصاری غوندې لوئې صفت سره مدح اوتعریف نه شی کولې سره دَدې چه هغه منافق نسبًا دَانصارو شریك ولې نه وی. (۵)

بهرحال که هغه سړې منافق وو نودَهغه نه دَدې کلماتو صادرکیدل څنګه اوشو؟ دَدې په جواب کښې علامه توریشتی رحمه الله فرمائی چه دَبشریت په وجه دَغصې په وخت دَهغه په ژبه دا الفاظ په ناپوهئې کښې راغلی وو اوعصمت خو صرف دَانبیاء کرامو علیهم الصلوٰة والسلام دَپاره ثابت دې. (۶)

علامه نووی رحمه الله فرمائی که داقسم خبره اوس څوك اوکړی نو په هغه قائل باندې به دَ ارتداد احکام جاری کیږی او تر کومې چه دَ نبی کریم ﷺ دَدغه انصاری سړی دَ پریخودو تعلق دې داځکه دی چه دَاسلام دَ شروع حصه ده او په هغه زمانه کښې خلق بلدولې شو اودَ نوی مسلمانانو تالیف قلب هم مقصود وو نوځکه دکافرانو مشرکانو اومنافقانو یو لوئی لوئی سختواوتکلیفونوپه جواب کښې دَصبر اوتحمل نه کاراخستې شو. (۷)

ترکومې چه دَدغه انصاری دَنومتعلق دې نوبعض شراح په دې باره کښې تفصیلی بحث کړې دې خوپه ظاهره دلته هغه خبره بهتر او مناسب معلومیږی کومه چه علامه عینی رحمه الله دَخپل

---

۱) مرتخریجه انفًا.
۲) مرتخریجه انفًا.
۳) المصدرالسابق.
۴) المصدرالسابق.
۵) المصدرالسابق.
۶) المصدرالسابق.
۷) عمدة القاری:۱۲/۲۸۲.

مشایخ نه نقل کړې ده فرمائی ماته ددې حدیث د یوطریق نه هم دهغه نوم معلوم نه شو اوکیدې شی چه حضرت زبیر رضی الله عنه او نورو حضراتو دَدغه سړی نوم د پردې ساتلو د وجې نه نه وی ظاهر کړې.[1]

**قوله: أن كان ابن عمتك:-** اَن دَهمزه دَ فتحه سره دې اودا په اصل کښې لان وو بیا لام حذف کړې شو اودغه شان دَعربو په کلام کښې شایع دې اوتقدیرکلام به داسې شی **حکمت له بالتقدیم لاجل انه ابن عمتك.**[2] علامه قرطبی رحمه الله اوقاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دلته همزه ممدوده دې ځکه چه دا دَاستفهام انکاری په معنی کښې دې.[3] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی مونږ په یوروایت کښې داسې نه دې لیدلې سره ددې چه دَهمزه استفهام حذف جائزدی.[4] علامه کرمانی رحمه الله فرمائی بعض روایاتوکښې همزه مکسوره دې.[5] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دَ کرمانی رحمه الله داقول په بعض روایاتوکښې همزه مکسوره سره دې یعنی دا شرطیه دې اوددې جواب محذوف دې. مونږ ته ملاؤنه شو اودَ عبدالرحمن بن اسحاق رحمه الله په روایت کښې دې چه **فقال: اعدل یارسول الله! وإن كان ابن عمتك** اوظاهره ده چه دلته همزه په کسرې سره دې. او ابن دَدې خبرکیدودَ وجې منصوب دې.[6]

**دَ ایت مبارک تشریح اوشان نزول بیان:-** امام بخاری رحمه الله ایت مبارک ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ﴾ الایة (النساء:۶۵) ذکرفرمائیلې پس قسم دې ستا دَ رب دوی به ایمان نه راوړی ترکومې چه هم تامنصف اونه ګنړی کومه جګړه چه راوچته شی په خپل مینځ کښې. بیا دې کوی خفګان په خپل زړه کښې ستاسو په فیصله باندې او اودې منی اوقبوله دې کړی.

حضرت مفتی محمدشفیع رحمه الله فرمائی په دې آیت کښې دَرسول الله عظمت اودَاوچتې مرتبې اظهارسره دَحضورپاك او اطاعت کوم چه دَ بې شمیره قرآنی آیاتونونه ثابت دی دَهغې واضحه تشریح بیان کړې ده .په دې آیت کښې قسم خوړلوسره حق تعالی شانه فرمائی یوکس ترهغه وخت ته پورې مؤمن اومسلمان کیدې نه شی ترکومې چه هغه دَ حضورپاك فیصله په یخ زړه سره په پوره شان سره اونه منی چه دَ ده په زړه کښې هم دغه فیصلې سره څه تنګی رانه شی. رسول الله خو دَ رسول په حیثیت سره پخپله دَامت حاکم او دَهرې پیښیدونکې جګړې فیصله کولوذمه واردې. حضورپاك اودَهغوی فیصله دَ چاپه حکم جوړولو باندې موقوف نه دې.[7]

---

[1] عمدة القاري:۲۸۱/۱۲.

[2] عمدة القاري: ۱۲/۲۸۳ إرشادالساري:۵/۲۳۹.

[3] فتح الباري:۵/۴۷.

[4] المصدرالسابق.

[5] شرح الکرماني:۱/۱۷۵.

[6] فتح الباري:۵/۴۷.

[7] معارف القرآن:۲/۴۶۰ – ۴۶۱.

اوعلامه ادريس کاندهلوی رحمه الله دتفسیرقرطبی نه نقل کړی دی چه په مدینه منوره کښې یوخل دَ بشر نومې یومنافق یو یهودی سره جګړه اوشوه. یهودی په دې خیال چه هغه په حقه ووچه دَدې مقدمې فیصله په حضورپاك باندې اوکړې شی چه هغوی به بغیرد چا دَ رعایت کولو حق فیصله اوکړی. منافق اووئیل چه کعب بن اشرف یهودی باندې فیصله کولو خویهودی کعب بن اشرف له دتللونه انکاراوکړو اوبغیرد رسول الله ﷺ په فیصله کولوباندې نه راضی کیدو آخر داخبره اوشوه چه فیصله به حضورپاك کوی. حضورپاك دَ یهودی په حق کښې فیصله ورکړه یهودی په حقه باندې وو. هغه منافق راضی نه شو کله چه هغوی دواړه دَحضورپاك نه بهر راووتل نویهودی منافق پورې اونختلو او وئې وئیل حضرت عمر رضي الله عنه له ځو هغه به تیك فیصله اوکړی. دَ منافق غالباً داګمان وو چه حضرت عمر رضي الله عنه دص کافرانو په حق کښې سخت دې اوزه کلمه وایم په دې وجه به حضرت عمر رضي الله عنه دَیهودی په ځائی باندې زما رعایت اوکړی. یهودی په دې خبره باندې تیارشو اودائی ګڼړل چه زه حضرت عمر رضي الله عنه خودکافرانو په حق کښې سخت دې لیکن حق پرست خودې. دواړه حضرت عمر رضي الله عنه له لاړل اودَهغه نه ئې فیصله اوغوښته. یهودی ټوله قصه حضرت عمر رضي الله عنه ته بیان کړه حضرت عمر رضي الله عنه کورته تشریف یوړو وئیل صبر اوکړئی زه اوس راځم اوستاسو فیصله کوم. دې وېناسره کورته لاړو اوتوره ئې رااویسته اوراتلوسره ئې منافق قتل کړو او وئې فرمائیل چه کوم سړې دَالله اودَ هغه دَرسول په فیصله باندې راضی نه وی دَهغه فیصله حضرت عمر رضي الله عنه داسې کوی. دَمنافق خپلوان رسول الله ﷺ له راغلل اودَقتل دعوی ئې اوکړه اوقسمونه ئې خوړل چه حضرت عمر رضي الله عنه له صرف دې دَپاره تلی وو چه شاید حضرت عمر رضي الله عنه به صلح اوکړی. داسې وجه نه وه چه مونږ دَحضورپاك په فیصله باندې راضی نه وو په دې باندې دا آیاتونه نازل شول په کوم کښې چه اصل حقیقت ښکاره کړې شو.[1]

**قوله: قال محمدبن العباس قال أبوعبدالله: ليس احدالخ:-** قال محمدبن العباس قائل فربری رحمه الله دې اومحمدبن عباس سلمی اصبهانی دَامام بخاری رحمه الله دَ معاصرینونه دې اودَهغوی انتقال دَامام بخاری رحمه الله نه پس شوې.[2] اودَ ابوعبدالله نه پخپله امام بخاری رحمه الله مراد دې یعنی امام بخاری رحمه الله صراحت کړې دې چه عروة بن زبیر عن عبدالله بن زبیر په طریق کښې امام لیث رحمه الله متفرددې.

لیکن علامه عینی رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه دَامام بخاری رحمه الله داقول محل نظردې په دې وجه امام نسائی ابن جارود اسماعیلی رحمه الله **ابن وهب عن الليث ويونس جميعا عن ابن شهاب أن عروة حدثه عن أخيه عبدالله بن زبير بن العوام** په طریق سره دَدې تخریج کړې دې.[3]

---

[1] ) معارف القرآن للشيخ كاندهلوی رحمه الله ٢/٢٤٨.

[2] ) إرشادالساري:٥/٣٥٠ عمدة القاري:١٢/٢٨٧.

[3] ) المصدرالسابق.

# ۸- باب: شرب الاعلى قبل الاسفل

## د چاپتې چه اوچت وی هغه دې دښکته زمکې والا نه مخکښې اوبه اولري

**دترجمة الباب مقصد:-** دامام بخاری رحمه الله مقصود واضح دې چه د کوم سړی پټې په اوچته وی هغه دې دښکته زمکې والانه وړاندې خپل پټې اوبه کړی اونهرچه دکوم ځائې نه شروع وی هغې سره نیزدې به اعلی وی او اسفل څوک چه ددې نه پس وی اودامسئله متفق علیه ده.(۱)

[حديث ۲۲۳۲](۲) حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ خَاصَمَ الزُّبَيْرَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ، فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «يَا زُبَيْرُ اسْقِ ثُمَّ أَرْسِلْ». فَقَالَ الأَنْصَارِيُّ إِنَّهُ ابْنُ عَمَّتِكَ. فَقَالَ عَلَيْهِ السَّلاَمُ «اسْقِ يَا زُبَيْرُ، ثُمَّ يَبْلُغُ الْمَاءُ الْجَدْرَ، ثُمَّ أَمْسِكْ». فَقَالَ الزُّبَيْرُ فَأَحْسِبُ هَذِهِ الآيَةَ نَزَلَتْ فِي ذَلِكَ (فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ).

**ترجمه:-** دحضرت عروه بن زبیر رحمه الله نه روایت دې چه یوانصاری سړی حضرت زبیر رضی الله عنه سره جګړه اوکړه نورسول الله ﷺ اوفرمائیل اې زبیرخپلې ونې اوبه کړه بیا اوبو (دخپل ګاونډی طرف ته) پریږده. انصاری اووئیل (دا په دې وجه ده چه) زبیر رضی الله عنه ستاسو د ترور ځوئې دې نوحضورپاک اوفرمائیل اې زبیر خپلې ونې اوبه کړه بیا اوبه رابندې کړه تردې چه هغه د پټې د پولو پورې راشی اوبیا اوبه پریږده. حضرت زبیر رضی الله عنه فرمائیل زمادا خیال دې چه داآیت ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ﴾ الاية (النساء:۶۵) هم په دې باره کښې نازل شوې دې.

## رجال الحديث

**عبدان:-** دا عبدالله بن عثمانبن جبله مروزی رحمه الله دې.(۳)

**عبدالله:-** دا عبدالله بن مبارك رحمه الله دې.(۴)

**معمر:-** دامعمربن راشدازدی مصری رحمه الله دې.(۵)

**الزهري:-** دامحمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې.(۶)

**عروة:-** دا عروة بن زبير رحمه الله دې.(۷)

---

(۱) عمدة القاري:۲۸۸/۱۲.

(۲) مر تخريجه فى باب السابق.

(۳) كشف الباري:۴۶۱/۱.

(۴) كشف الباري:۴۶۲/۱.

(۵) كشف الباري:۴۶۵/۱. ۳۲۱/٤.

(۶) كشف الباري:۳۲۶/۱.

(۷) كشف الباري:۲۹۱/۱.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: یازبیر! اسقه ثم** أرسل سره دې. داسې چه حضورپاك حضرت زبیر رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه اې زبیر خپلې ونې اوبه کړه اوبیااوبه پریږده نودا ارسال الماء اوبو دَ ګاونډی طرف ته پریخودل هم دَاوچتې نه کیدې شی.[1] په حدیث مبارك باندې تفصیلی بحث وړاندینی باب کښې تیرشوې دې.

# ۹-بَاب: شرب الاعلى إلى الكعبين

## اوچت پټی والا دې تر ګیټو پورې ډك کړی

**دَترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری رحمه الله اول داخودلی وو چه کوم خلق اعلی طرف ته دی هغه دې خپل پټی اول اوبه کړی اوس دابنائی چه هغوی له څومره اوبه خپلو پټوله ورکول پکاردی نوامام صاحب فرمائی چه ترګیټوپورې خپلو پټوته اوبه اورسوئی.[2]

**دَ فقهاؤ دَاختلاف بیان**:- ابن التین رحمه الله فرمائی چه دَجمهورعلماؤ رائې هم دغه ده چه ترګیټو پورې به هغوی اوبه خپلو پټوته رسوی.[3] لیکن بعض حضرات لکه ابن کنانه رحمه الله رائې داده چه دا حکم دَ کهجورو او نورو ونودې.دَ فصلونوداحکم نه دې ځکه چه په زمیندارئی اوباغونوکښې فرق وی.[4]

علامه ابن جریر طبری رحمه الله فرمائی چه زمکې مختلف وی چه څنګه زمکه وی هم هغه شان به هغې له اوبه هم پکار وی. حضورپاك چه دَجدر اوکعبین پورې فرمائیلی وو هغه نی دَهغه ځائی دَ زمکو په اعتبارسره فرمائیلی وو اوس که په یوځائی کښې زمکه دَدې نه مختلف وی اوهغې ته دَ ډیرو اوبوضرورت وی نوهلته به دَ زیاتو اوبوورکولوهم اجازت وی.[5]

**دَ اوبوُ تقسیم نور تفصیل**:- فقهاء کرام فرمائی چه که څوك دَ عام او مباح غټو نهرونو نه خپلې زمکې اوبه کول غواړی نوکه دَنهراوبوټولوته پوره کیدې شی نوچه څه غواړی کله ئی غواړی او څومره غواړی اوبه دَ هغه ځائی نه حاصلولې شی.[6]

اوکه چرې نهر وړوکې وی اوبه کمې وی اولختې تنګ دې نودَټولونه اول دې دَ اوچت پټی والا اونیزدې زمکې والا خپله زمکه خړوب کړی بیا دې دَ نورودَ پاره پریږدی اوبیادې دغه شان دَ دریم دَپاره اوبه پریخودې شی. خودا په هغه صورت کښې دی چه دَاوچتې زمکې والا په خپل احیاء کښې دَښکته زمکې والا نه مقدم وی یادواړه په احیاء کښې برابروی اوکه دَښکته

---

[1] إرشادالساری:۳۵۱/۵.

[2] عمدة القاری:۲۸۸/۱۲.

[3] فتح الباری:۵۱/۵ عمدة القاری:۲۸۹/۱۲.

[4] المصدرالسابق.

[5] المصدرالسابق.

[6] ردالمحتار: ۲۸۲/۵حاشية الدسوقی:۷۴/۴روضة الطالبین:۳۰۵/۵ الموسوعة الفقهية:۳۸۲/۲۵.

زمكې والا مقدم وى نو داوبو لرلو كښې به هم هغه مقدم وى.[1] او كه چرې د اوچتې زمكې والا څه ځيز په اوبو كښې باقى پاتې نه شى نو بيا د نورو هيڅ حصه نشته ځكه چه دهغوى د پاره خولكه د زياتى اوبوې اودلته زياتى اوبه پاتې نه شوې اودا هم داسې ده لكه چه په ميراث كښې عصبه محروم پاتې كيږى.[2]

اوكه چرې دوكسان اول نهرسره نيزديوالى كښې برابر وى نو تر كومې پورې چه ممكن وى اوبه دې په دغه دواړو كښې تقسيم كړې شى اوكه ممكن نه وى نو دواړو په مينځ كښې دې خسنړې واچولوې شى اود چاپه حق كښې چه خسنړې راووتلو هغه به وړاندې كولې شى اوداخبره ده چه هغه ته به د ټولو اوبود استعمال اجازت نه وى ځكه چه هغه بل هم د اوبو په استحقاق كښې ده سره برابردې. خسنړې د وړانديوالى د پاره دې نه چه د اوبود اصل حق د پاره. اودا د هغه صورت برخلاف دې چه كله په اوچته حصه كښې اول نهرسره نيزدې وى اودويم د هغه نه په ښكته حصه كښې.[3]

اوكه د يوكس زمكه د بل نه زياته وى نواوبه به د زمكو په اعتبار تقسيم كولې شى. ددې د پاره چه د چازمكه زياته وى هغه په اعتبارد قرب د كمې زمكې والا مساوى دې لهذا دې به د اوبود پوره حصې حقداروى لكه كه هغوى سره څوك دريم سړې هم وى نوهغه ته به هم حصه وركولې شى.[4]

[حديث ٢٢٣٣] [5] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا مَخْلَدٌ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّ رَجُلاً مِنَ الأَنْصَارِ خَاصَمَ الزُّبَيْرَ فِي شِرَاجٍ مِنَ الْحَرَّةِ يَسْقِي بِهَا النَّخْلَ . فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « اسْقِ يَا زُبَيْرُ - فَأَمَرَهُ بِالْمَعْرُوفِ - ثُمَّ أَرْسِلْ إِلَى جَارِكَ » . فَقَالَ الأَنْصَارِيُّ أَنْ كَانَ ابْنَ عَمَّتِكَ . فَتَلَوَّنَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ قَالَ « اسْقِ ثُمَّ احْبِسْ حَتَّى يَرْجِعَ الْمَاءُ إِلَى الْجَدْرِ » . وَاسْتَوْعَى لَهُ حَقَّهُ . فَقَالَ الزُّبَيْرُ وَاللَّهِ إِنَّ هَذِهِ الآيَةَ أُنْزِلَتْ فِي ذَلِكَ ( فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ) . قَالَ لِي ابْنُ شِهَابٍ فَقَدَّرَتِ الأَنْصَارُ وَالنَّاسُ قَوْلَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - « اسْقِ ثُمَّ احْبِسْ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى الْجَدْرِ » . وَكَانَ ذَلِكَ إِلَى الْكَعْبَيْنِ . [ر: ٢٢٣١]

**ترجمه**:- حضرت عروه بن زبير رضي الله عنه بيان كوى يو انصارى سړى د حره په واله كښې په كومې به چه ئى د كهجورو ونې اوبه كولې حضرت زبير رضي الله عنه سره جګړه اوكړه نورسول الله ﷺ اوفرمائيل اې زبير! خپلې ونې اوبه كړه اوحضورپاك هغه ته د حسن سلوك حكم وركړو اوونى

---

[1] ) المصدر السابق.

[2] ) المصدر السابق.

[3] ) المصدر السابق.

[4] ) المصدر السابق.

[5] ) مر تخريجه فى باب سكر الانهار.

فرمائیل چه بیا اوبه خپل ګاونډی ته وریږېږده انصاری اوونیل دا په دې وجه چه حضرت زبیر ﷺ ستاسو دَ ترور خونی دی. دې اوریدوسره دَرسول الله ﷺ دَمخ مبارک رنګ بدل شو بیا حضورپاک اوفرمائیل زبیر خپلې ونې اوبه کړه اوبیا اوبه رابندې کړه تردې چه دَ پټې ترپولوپورې راشی. دَحضرت زبیر ﷺ چه کوم واجبی حق ووهغه حضورپاک پوره کړو. حضرت زبیربه فرمائیل چه والله! دا آیت ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ﴾ الاية (النساء:۶۵، هم په دې باره کښې نازل شوې دې.

ابن جریج فرمائی چه ابن شهاب ماته اووئیل انصار اونوروخلقو دَنبی کریم ﷺ دَ ارشاد اسق ثم حبس یعنی اوبه راګیرې کړه تردې چه دَ پټې ترپولو پورې اورسی دا اندازه ئی اوکړه چه اوبه ترګیټو پورې دکې شی امام بخاری ﷺ فرمائی چه هم پولې اصل دې.

## رجال الحدیث

**محمد:**- دامحمدبن سلام بیکندی ﷺ دې.[1]

**مخلد:**-دامخلدبن یزیدقرشی حرانی ﷺ دې.[2]

**ابن جریج:**- عبدالملك بن عبدالعزیز بن جریج ﷺ دې.[3]

**ابن شهاب:**- دامحمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری ﷺ دې.[4]

**عروة:**- دا عروة بن زبیربن العوام ﷺ دې.[5]

**حل لغات:**- **استوعی:** باب استفعال نه په معنی پوره اخستل، ټول اخستل، مجردکښې دَ ضرب نه مستعمل دې وعىٰ یعِی وعیًا په معنی جمع کول.[6]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:**- دَحدیث باب سره مطابقت قوله: وكان ذلك إلى الكعبين سره واضح دې.[7]

**قوله: قال لی ابن شهاب رحمه الله تعالى فقدرت الانصار الخ:**- دادَ محمدبن مسلم بن شهاب زهری مقوله ده چه د هغوی نه عبدالملك بن عبدالعزیز ابن جریج ﷺ نقل کوی.[8]

---

[1]) کشف الباری:۹۳/۲.

[2]) کشف الباری کتاب أبواب الاذان باب ماجاء فی الثوم التی والبصل الخ.

[3]) کشف الباریکتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله.

[4]) کشف الباری:۳۲۶/۱.

[5]) کشف الباری:۲۹۱/۱.

[6]) کشف الباری:۸۶۶/۲.

[7]) عمدة القاری:۲۸۸/۱۲.

[8]) المصدرالسابق.

**قوله**: الجدر هوالاصل - داد امام بخاری رحمه الله د طرف نه لفظ جدر تفسیردې اودلته دا صرف دمستملی نسخه کښې دې.[1]
صاحب دالنهاية فرمای چه دلته جدر نه مراد بلنې یعنی پوله ده کوم چه دپټې نه چاپیره قایم کولې شی اوداهم وئیلی شوی دی چه دا جدار دیوال کښې یولغت دې اوداهم وئیلی شوی دی چه دا دديوال جرړې ته وئیلی شی.[2] اوپه بعض روایاتوکښې جُدر هم ضبط کړې شوې دې کوم چه د جدار جمع ده.[3]

# ۱۰ - باب: فضل سقي الماء

## د اوبو ورکولو فضیلت

**دترجمة الباب مقصد**:- دامام بخاری رحمه الله مقصددادې چه اوبوورکولوکښې لوئی فضیلت دې اودې فضیلت دپاره هغوی دعبدالله بن یوسف رحمه الله دارروایت نقل کړې دې. او په دې کښې دی في كل كبد رطبة أجر يعنی هرساوالاچه ژوندې دې په هغوی باندې اوبوڅکلوکښې ثواب دې. كه دهغې ساتل جائزوی كه ناجائز او نور ډير احاديث په دې باندې دلالت کوی.[4] امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې دواړه قسم ځناورو باندې رحم کولوباره کښې روایات نقل کړی دی.

[حدث ۲۲۳۴][5] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « بَيْنَا رَجُلٌ يَمْشِي فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ الْعَطَشُ، فَنَزَلَ بِئْرًا فَشَرِبَ مِنْهَا، ثُمَّ خَرَجَ فَإِذَا هُوَ بِكَلْبٍ يَلْهَثُ، يَأْكُلُ الثَّرَى مِنَ الْعَطَشِ، فَقَالَ لَقَدْ بَلَغَ هَذَا مِثْلُ الَّذِي بَلَغَ بِي. فَمَلأَ خُفَّهُ ثُمَّ أَمْسَكَهُ بِفِيهِ، ثُمَّ رَقِيَ، فَسَقَى الْكَلْبَ فَشَكَرَ اللَّهُ لَهُ، فَغَفَرَ لَهُ ». قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَإِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ أَجْرًا قَالَ « فِي كُلِّ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ ». تَابَعَهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ وَالرَّبِيعُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ. [ر: ۱۷۱]

---

[1] إرشادالساری:۳۵۴/۵.
[2] النهایه: ۲۴/۱.
[3] المصدرالسابق.
[4] عمدة القاری:۲۸۹/۱۲ الابواب والتراجم: ۱۷۴.
[5] أخرجه البخاری رحمه الله أيضاً كتاب الوضوء باب إذا شرب الكلب فى إناء احدكم الخ رقم:۱۷۳ وفى كتاب الاذان باب فضل التهجير إلى الظهر رقم: ۶۵۲ وفى كتاب الادب رحمة الناس والنهائم رقم: ۶۰۰۹ ومسلم رحمه الله تعالى فى كتاب السلام باب فضل سقى البهائمالمحترمة وإطعامها رقم:۲۲۴۴ وأبوداؤد رحمه الله تعالى فى كتاب الجهاد باب مايؤمر به من القيام فى الدواب والبهائم رقم:۲۵۵ومالک رحمه الله تعالى فى مؤطئه فى كتاب صفة النبى صلى الله تعالى عليه وسلم باب حجامع ماجاء فى الطعام والشراب الخ رقم: ۱۶۶۶ وأحمدرحمه الله تعالى فى مسنده رقم:۸۶۸۶، ۱۰۵۲۶.

**ترجمه**:- دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ارشادفرمائيلي دي يوسړي په لاړ روان وو سخت تګي شو هغه کوهی ته ورکوزشو اوبه ئی اوڅکلې اوبيا راواوتلو چه وئی کتل نويوسپې ړچيرې اود تندې دَ وجې نه ختې ختې. نوهغه (په خپل زړه کښې) اووئيل بيشکه ده ته هم هغه تکليف رسيدلې دې کوم چه ماته رسيدلې وو. بيا دې کوهی ورکوزشو اوخپله موزه ئی دَاوبونه راډکه کړه بيائي هغه په خله کښې اونيوله راؤختلو او په سپی باندې ئی اوبه اوڅکلې. نوالله سبحانه وتعالی دَهغه دَدې عمل قدراوکړو اودَ هغه بخښنه اوکړه. دې اوريدوسره صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړويارسول الله ! آيا په ځناورو باندې اوبوڅکولوسره به هم مونږ ته ثواب ملاويږی؟ حضورپاك اوفرمائيل په تازه ځيګروالاکښې ثواب دې.

## رجال الحديث

**عبدالله بن يوسف**:- دا عبدالله بن يوسف تنيسی مصری رحمه الله دې. (١)

**مالك**:- دا امام مالك بن انس رحمه الله دې. (٢)

**سمي**:- دا ابوبكربن عبدالرحمن بن دَحارث بن هشام مولی دې. (٣)

**ابی صالح**:- داابوصالح ذكوان مدنی رحمه الله دې. (٤)

**ابوهريره**:- دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه تذكره هم تيره شوې ده. (٥)

**ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت ښكاره دې.

**فوائد**:- علامه عينی رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله فرمائی په دې حديث كښې دَ مخلوق سره احسان اواكرام كولو ترغيب دې اوداهم چه په تګوباندې اوبه څكول دَ غټو نيكونه دی. تردې چه دَبعض تابعينونه نقل دی دَچاګناه چه زياته شی هغه دې خلقو باندې دَاوبوڅكولواهتمام كوی څكه چه كله دَغه سړی ګناه اوبخښلې شوه چه په تګی سپی باندې ئی اوبه اوڅكلې نوستاسو څه ګمان دې دَ هغه سړی دَ ګناهونودَ بخښنې په سلسله كښې چه څوك په مسلمان باندې اوبه اوڅكی. (٦)

**قوله**: تابعه حمادبن سلمة والربيع بن سلم عن محمدبن زياد:- دا متابعت په بعض نسخوكښې نشته لكه چه زمونږ په متداوله نسخوپه متن كښې موجود نه دې. (٧) شراح بخاری هم په دې كلام نه دې كړې. (٨)

---

١) كشف البارى:١/٢٨٩، ٤/١١٣.

٢) كشف البارى:١/٢٩٠، ٢/٨٠.

٣) كشف البارى:كتاب أبواب الاذان باب الاستهام فی الاذان.

٤) كشف البارى:١/٦٥٨.

٥) كشف البارى:١/٦٥٩.

٦) عمدة القارى:١٢/٢٩٢،إرشادالسارى:٥/٣٥٦.

٧) صحيح البخارى:١/٣١٨ قديمی.

٨) فتح البارى:٥٤ عمدة القارى:١٢/٢٠٣إرشادالسارى:٥/٣٥٦.

دحمادبن سلمة رحمه الله د متابعت ذكر خو دحديث په كتابونو كښې ملاؤنه شو اوربيع بن مسلم متابعت ته حافظ ابوعوتة يعقوب بن اسحاق اسفرائينى رحمه الله المستخرج على صحيح مسلم كښې خپل سندسره موصولاً ذكركړې دې.(۱)

[حديث ۲۲۳۵] (۲) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ - رضي الله عنهما - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - صَلَّى صَلَاةَ الْكُسُوفِ، فَقَالَ «دَنَتْ مِنِّي النَّارُ حَتَّى قُلْتُ أَيْ رَبِّ، وَأَنَا مَعَهُمْ فَإِذَا امْرَأَةٌ - حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ - تَخْدِشُهَا هِرَّةٌ قَالَ مَا شَأْنُ هَذِهِ قَالُوا حَبَسَتْهَا حَتَّى مَاتَتْ جُوعًا». [ر: ۷۱۲]

**ترجمه**:- دَ حضرت اسماء بنت ابى بكر رضي الله عنهما نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ دَ نمرتندر نيولو مونځ اوكړو بيا (دَمونځ نه پس) ئى اوفرمائيل چه دوزخ ماسره دومره نيزدې شو چه ماوئيل اې پروردګاره آيا زه هم د دوزخ والانه يم، اومې كتل چه يوه ښځه ده حضرت اسماء رضي الله عنها وائى چه زما خيال دې چه حضورپاك اوفرمائيل چه پيشو دغه ښځه شوكوله رسول الله ﷺ تپوس اوكړو ددې ښځې څه معامله ده؟ فرښتو اووئيل چه دې ښځې (دنيا كښې) دا پيشو تړلې وه تردې چه د اولګې نه مړه شوه.

## رجال الحديث

**ابن أبي مريم**:- داسعيدبن حكم بن ابى مريم جمحى مصرى رحمه الله دې.(۳)
**نافع**:- دا نافع بن عمربن عبدالله جمحى قرشي رحمه الله دې.(۴)
**ابن أبي مليكه**:- دې نه مراد عبدالله بن عبيدالله بن ابى مليكه رحمه الله دې.(۵)
**دعلامه عينى رحمه الله اوعلامه قسطلانى تسامح**:- دې حضراتو دابن ابى مليكه باره كښې ليكلى دى چه دې نه مراد عبدالله بن عبدالرحمن بن ابى مليكه رحمه الله دې.(۶) حالانكه حافظ ابن حجر رحمه الله تقريب التهذيب كښې اوعلامه مزى رحمه الله تهذيب الكمال كښې(۷) كښې صراحت كړې دې

---

(۱) تغليق التعليق: ۳۱۵/۳.

(۲) وأخرجه البخاري رحمه الله تعالى أيضًا فى كتاب الاذان باب مايقول بعد التكبير رقم:۷۴۵ وفى الادب المفرد رقم: ۳۷۴ ومسلم رحمه الله تعالى فى كتاب الكسوف باب ماعرض على النبى صلى الله تعالى عليه وسلمفى صلاة الكسوف من أمر الجنة الخ رقم: ۹۰۴ والنسائى رحمه الله تعالى فى سننه الكبرى كتاب كسوف الشمس والقمر رقم:۱۸۴۸ والدارمى رحمه الله تعالى فى سننه فى كتاب الصلاة أبواب العيدين رقم: ۲۷۲۴ وابن ماجه رحمه الله تعالى فى سننه رقم:۱۰۵۲.

(۳) كشف البارى: ۱۰۶/۴.

(۴) كشف البارى: ۱۰۷/۴.

(۵) كشف البارى: ۵۴۸/۴.

(۶) عمدة القارى: ۲۹۳/۱۲ إرشادالسارى: ۳۵۶.

(۷) تقريب التهذيب: ۴۸۴/۲ تهذيب الكمال: ۲۵۶/۱۵.

چه ابن ابی ملیکه ؒ نه مراد عبدالله بن عبیدالله بن ابی ملیکه ؒ دی
**أسماء بنت أبي بكر:-** دوی ذات النطاقین حضرت اسماء بنت ابی بکر ؓ ده. (۱)

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحدیث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت په دې توګه دې چه دې ښځې ته عذاب ځکه ورکړې شو چه هغې پیشو تګې ساتلې وه نو دې حدیث مقتضی هم دا ثابت شو که هغې په دې باندې اوبه څکلې وې نو هغې ته به عذاب نه ورکړې کیدو. (۲)

**قوله: فـاذا امرأة:-** دلته دابحث شوې دې چه دا ښځه مسلمانه وه که کافره. په روایت باب کښې په دې باندې هیڅ تصریح نشته. قاضي عیاض ؒ فرمائی دا ښځه کافره وه او هغې ته دَخپل کفر دَ وجې عذاب ورکولې شو او په دې عذاب کښې زیاتوالی دَ پیشو دَ اولګې تندې نه دَ وژلو دَ وجې وو. او هغه مؤمنه نه کیدو دَ وجې هم دَ دغه زیاتی عذاب هم مستحق شوې وه. که چرې هغه مؤمنه وه نو دَ هغې صغائر به دَ کبائرونه په اجتناب کولو دَ وجې نه هم داسې معاف کولې شو. (۳)
علامه نووی ؒ فرمائی دغه ښځه مسلمانه وه او هغې ته عذاب دَ هغه پیشو دَ وجې نه ورکړې کیدو لکه چه دَ حدیث شریف ظاهر په دې دلالت کوی او دا ګناه دَ صغائرنه نه وه بلکه دَ هغې دَ اصرار دَ وجې نه کبیره جوړه شوې وه. او بیا په حدیث کښې هم دَ دې خبرې څه تصریح نشته چه هغه ښځه په اور کښې داخله وه. (۴) لیکن مجمع الزوائد کښې علامه هیثمی ؒ دَ حضرت عائشه صدیقه ؓ نه روایت نقل کړې دې (۵) په کوم کښې چه هغې صراحت کړې دې چه هغه ښځه کافره وه.

[۲۲۳۶] (۱) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «عُذِّبَتِ امْرَأَةٌ فِي هِرَّةٍ حَبَسَتْهَا، حَتَّى مَاتَتْ جُوعًا، فَدَخَلَتْ فِيهَا النَّارَ - قَالَ فَقَالَ وَاللَّهُ أَعْلَمُ - لاَ أَنْتِ أَطْعَمْتِهَا وَلاَ سَقَيْتِهَا حِينَ حَبَسْتِيهَا، وَلاَ أَنْتِ أَرْسَلْتِيهَا فَأَكَلَتْ مِنْ خَشَاشِ الأَرْضِ». [۳۱۴۰، ۳۲۹۵]

**ترجمه:-** دَحضرت عبدالله بن عمر ؓ نه روایت دې چه حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو یوې ښځې ته دَ یوې پیشو دَ وجې نه عذاب ورکړې شو هغې هغه پیشو تړلې وه تردې چه دَ اولګې تندې نه مړه شوه. دَ دغه پیشو دَ وجې هغه ښځه په دوزخ کښې داخله شوه او وئی فرمائیل (بیا الله تعالی یا دَ دوزخ داروغه ملائك) هغې ته اووئیل الله تعالی ته ښه پته ده چه نه تا په هغې

(۱) کشف الباری: ۳/۴۸۷.
(۲) فتح الباری: ۵/۵۴.
(۳) المنهاج شرح صحیح مسلم: ۱۴/۴۶۰.
(۴) المصدر السابق.
(۵) مجمع الزوائد: ۱/۱۲۱، ۱۰/۱۹۳.
(۶) مرتخریجه فی الحدیث السابق.

خوراك كولواونه دې پرې څنباك كولوكله چه تاهغه اوتړله اونه تاهغه پريخوده چه په زمكه چرته چينجي وغيره اوخوري.

**حل لغات:- خشاش:** چينجي وغيره يا زنده سرددې واحد خَشَاشَةٌ راځي.[1]

## رجال الحديث

**إسماعيل:-** دااسماعيل بن ابى اويس رحمه الله دې.[2]

**مالك:-** دا امام مالك بن انس بن مالك بن ابى عامر، ابوعبدالله مدنى رحمه الله دې.[3]

**نافع:-** دا نافع مولى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې.[4]

**دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَحديث باب ترجمة الباب سره مطابقت دَ حديث سابق په شان دې.

## ۱۱- باب: من رأى إن صاحب الحوض والقربه أحق بمائه

### د حوض يا مشكيزې مالك د خپلو اوبو زيات حقداردې

**دَترجمة الباب مقصد:-** دَترجمة الباب غرض خوښكاره دې كوم سړې چه دَ يوحوض يا مشكيزې مالك دې هغه دَ خپلو اوبوزيات حق لرى او په هغې كښې دَ نورو حق نشته.[5]

صاحب بدائع علامه كاسانى رحمه الله فرمائى چه اوبه څلورقسمه دى:[6] ① هغه اوبه چه په لوښووغيره كښې محفوظ كړې شى نوهغه اوبه دَ لوښى دَ خاوند مملوك دې اودَ هغه په دې كښې دَمالكانه تصرف مكمل اختياردې اوبل چا په دغه اوبوكښې هيڅ حق نشته.

② هغه اوبه چه په حوض يا چينه كښې وى چه هغې حكم دادې چه اول به ئى په خپلو ضرورتونوكښې خرچ كوى اوكومې چه دَ هغه دَ ضرورت نه زياتى اوبه دى دَ هغې نه څوك منع كول دَهغه دَپاره جائزنه دى. ③ دَ انهارصغيره اوبه دى.

④ دَانهاركبيره اوبه دى لكه دجلة فرات چه دى. په دې كښې دَ ټولو خلقو يوشان حكم دې هيچاته دَ منع كولوحق نشته. نولكه چه امام بخارى رحمه الله دلته دَ دغه مذكوره صورتونونه دَرومبى صورت بيان كړې دې.

---

[1] إرشادالساري:۱/۴۹۲.

[2] كشف البارى::۲/۱۱۳.

[3] كشف البارى::۲/۸۰،۱/۲۹۰.

[4] كشف البارى:: ۴/۶۵۱.

[5] عمدة القارى:۱۲/۲۹۴.

[6] بدائع الصنائع:۸/۲۹۳باختصار.

[حدیث ۲۲۳۷] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رضي الله عنه - قَالَ أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِقَدَحٍ فَشَرِبَ وَعَنْ يَمِينِهِ غُلاَمٌ، هُوَ أَحْدَثُ الْقَوْمِ، وَالأَشْيَاخُ عَنْ يَسَارِهِ قَالَ «يَا غُلاَمُ أَتَأْذَنُ لِي أَنْ أُعْطِيَ الأَشْيَاخَ». فَقَالَ مَا كُنْتُ لأُوثِرَ بِنَصِيبِي مِنْكَ أَحَدًا يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ. [ر: ۲۲۲۴]

**ترجمه**:- دحضرت سهل بن سعد ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ له یوه پیالئی راوړلې شوې رسول الله ﷺ اوڅکله. دحضورپاك ښی طرف ته یوهلك وو چه په خلقوکښې دټولونه کم عمر وواود حضورپاك ګس طرف ته مشران حضرات وو. حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو اې هلکه ته ماته اجازت راکوې چه اول په بوډاګانو باندې اوڅکوم نوهغه اوونیل چه زه ستاسو جوټه (تبر) خپله حصه هیچاته ورکونکې نه یم نوحضورپاك هغه پیالئی هم دغه هلك ته ورکړه.

## رجال الحدیث

**قتیبة**:- دا قتیبه بن سعید ثقفی رحمه الله دې. (۲)

**عبدالعزیز**:- داعبدالعزیزبن ابی حازم سلمة بن دینار مخزومی مدنی رحمه الله دې. (۳)

**ابوحازم**:-دا سلمة بن دینارمدنی رحمه الله دې. (۴)

**سهل بن سعد**: دحضرت سهل بن سعدساعدی انصاری خزرجی رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده. (۵)

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت باندې اشکال**:- علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه په حدیث شریف اوترجمة الباب کښې هیڅ مناسبت نشته. ځکه چه په حدیث کښې خوصرف ددې تذکره ده چه ښی طرف ته کیناستونکې د پیالئی یا بل څه څیززیات حقداردې او په دې کښې ددې خبرې هیڅ ذکرنشته چه صاحب ماء دخپلو اوبوزیات حقداردې. (۶)

**دعلامه ابن المنیرمالکی رحمه الله جواب**:- علامه ابن منیر مالکی رحمه الله فرمائی چه حدیث باب اوترجمة الباب کښې مطابقت موجود دې اوهغه په دې وجه چه صرف په ښی طرف کیناستو دوجې یوسړې د اوبود پیالئی مستحق کیدې شی رسول الله ﷺ دهغه نه بل چاته د ورکولواجازت طلب کوی نوچه کوم سړې په لوښی کښې اوبه واخلی نو په درجه اولی باندې به په هغه اوبو کښې دده استحقاق ثابت شی. (۷)

---

۱) مرتخریجه فی باب فی الشرب وقول الله تعالی ﴿وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ﴾ الایة.

۲) کشف الباری: ۱۸۹/۲.

۳) کشف الباری کتاب الصلاة باب نوم الرجال فی المسجد.

۴) کشف الباری کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباهاالدم عن وجهه.

۵) المصدرالسابق.

۶) عمدة القاری: ۲۹۴/۱۲ إرشادالساری: ۳۵۸/۵.

۷) المتواری علی تراجم بخاری ص: ۲۶۵.

**دعلامه عینی رحمه الله رد:-** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه داقیاس مع الفارق دې لکه چه مونږ بیان کړو.[1] بیا فرمائی چه که ډیر تکلف اوکړې شی نو دَحدیث مبارك ترجمة الباب سره مناسبت داسې ثابتیدې شی چه دَ استحقاق لزوم یا عدم لزوم نه قطع تعلق کولو سره صاحب حوض مجرد استحقاق کښې دَ صاحب پیاله په شان دې.[2]

[حدیث ٢٢٣٨] [3] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لأَذُودَنَّ رِجَالاً عَنْ حَوْضِي كَمَا تُذَادُ الْغَرِيبَةُ مِنَ الإِبِلِ عَنِ الْحَوْضِ».

**ترجمه:-** دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو زمادې قسم وی په هغه ذات دَچا په قبضه کښې چه زما ځان دې زه خوبه (دَ قیامت په ورځ) څه خلق دَخپل حوض نه داسې اخواکوم لکه چه پردې اوښ دَحوض نه اخواکولې شی.

**حل لغات: لأذُودَنَّ** : دَ باب نصرنه دَواحد متکلم صیغه ده ذَادَ ذَوْداً وذِیاداً په معنی لرې کول، اخواکول شړل.[4]

## رجال الحدیث

**محمد بن بشار:-** دابندار ابوبکر محمد بن بشار رحمه الله دې.[5]

**غندر:-** دا غندر محمد بن جعفر بصری رحمه الله دې.[6]

**شعبة:-** داشعبه بن حجاج رحمه الله دې.[7]

**محمد بن زیاد:-** دا ابوحارث محمد بن زیاد جمحی مدنی رحمه الله دې.[8]

**ابوهریره:-** د حضرت ابوهریره رضی الله عنه تذکره هم تیره شوې ده.[9]

**دَ حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:-** دَ حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: کما**

---

[1]) عمدة القاری:١٢/٢٩٥.

[2]) المصدر السابق.

[3]) وأخرجه مسلم فی الفضائل باب إثبات حوض نبینا صلی الله تعالی علیه وسلم وصفاته رقم:٥٩٩٣ ولم یخرج أحد سوی البخاری ومسلم من أصحاب السنة. وانظر جامع الاصول الکتاب التاسع فی القیامة. الباب الثانی. الفصل الرابع النوع الثانی رقم:٨٠٠٣.

[4]) النهایة: ٦١٤/١.

[5]) کشف الباری:٢٥٨/٣.

[6]) کشف الباری:٢٥٠/٢.

[7]) کشف الباری:٦٧٨/١.

[8]) کشف الباری:کتاب الوضوء باب غسل الاعقاب.

[9]) کشف الباری:٦٥٩/١.

**تذاد الغريبة من الابل عن الحوض** سره دي. يعني حضورپاك تذكره اوفرمائيله چه زه به بعض خلق دَخپل حوض نه داپاره كوم لكه چه صاحب حوض يوپردى اوښان پاره كوى. او حضورپاك په دې باندې هيڅ نكيرهم اونه فرمائيلو. په كوم سره چه دَ صاحب حوض دَ خپل حوض په اوبوباندې زيات استحقاق ثابتيږى.[1]

**دَ علامه عينى اوعلامه مهلب رحمهما الله قول:-** داحضرات فرمائى چه دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت **قوله: لاذودن رجالاً عن حوضى** دَوجې نه دې. يعني چونكه دَ حوض نسبت رسول الله ﷺ طرف ته شوې دې نومعلومه شوه چه حضورپاك دَخپل دې حوض دَاوبوزيات حقداردې دغه شان په څكلوكښې هم صاحب حوض دَ خپلو اوبوزيات حق لرى.[2]

**دَعلامه ابن المنير مالكى رحمه الله دَ دغه حضراتو په جواب باندې رد:-** علامه ابن المنير مالكى رحمه الله فرمائى چه دَدغه حضراتو قول صحيح نه دې ځكه چه دَ دنيااحكام دَ آخرت په احكامو قياس كولې نه شى[3] لهذا صحيح دادى چه دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت **قوله كما تذاد الغريبة من الابل** سره ثابتيږى لكه چه ذكرشو.

**تشريح:-** علامه عينى رحمه الله فرمائى چه مذكوره حديث دَخپلې معنې په اعتبارسره دَتواترحدته رسيدلې دې په دې وجه په حوض كوثر باندې ايمان راوړل دَاهل سنت والجماعت دَمعتقداتو يولازمى جزء دې.[4] ددې دَپاره اهل عقائداوكلام په خپل متون كښې ددې خبرې تصريح فرمائيلې ده چه **والحوض الذى أكرمه الله تعالى به غياثاً لامته حق (العقيدة الطحاوية) والحوض حق لقوله تعالى: ﴿ إِنَّا أَعْطَيْنَكَ الْكَوْثَرَ ﴾ (العقيدة النسفية)**

دَ صحابه كرام رضي الله عنهم يولوئى جماعت دَ دې مضمون احاديث دَ رسول الله ﷺ نه نقل كړى دى: حضرت عبدالله بن مسعود ، حضرت عبدالله بن عمر ، حضرت جابربن سمرة حضرت جندب بن عبدالله، حمضرت زيدبن ارقم، حضرت عبدالله بن عمرو، حضرت انس بن مالك، حضرت حذيفه، حضرت ثوبان، حضرت ابوبردة، حضرت جابربن عبدالله، حضرت ابوسعيدخدرى، حضرت بريده، حضرت عتبة بن عامر، حضرت حارثة بن وهب، حضرت مستور، حضرت ابوبرزة، حضرت ابوامامه، حضرت عبدالله بن زيد ، حضرت سهل بن سعد ، حضرت سويدبن جبلة، حضرت براء، حضرت ابوبكرة، حضرت خولة بن قيس حضرت ابوذر، حضرت صنابحى، حضرت اسماء، حضرت عائشه، حضرت عمرفاروق اوحضرت ابوبكرالصديق وغيرهم رضي الله عنهم.[5]

---

[1] فتح البارى:۵/۵۶.

[2] عمدة القارى:۱۲/۲۹۵ فتح البارى:۵/۵۶.

[3] المتوارى على تراجم البخارى:۲۶۵.

[4] عمدة القارى:۱۲/۲۹۵ – ۲۹۶.

[5] عمدة القارى:۱۲/۲۹۶ إرشادالسارى:۵/۳۵۹.

**قوله:** لاذودن رجالاعنت حوضي - هغه خلق کوم چه به رسول الله ﷺ دحشر په ورځ دحوض کوثر نه اخواکوی هغوی نه څوك مراددی؟ په دې کښې دعلماؤ مختلف اقوال دی. ابن التین رحمه الله فرمائی چه هغه منافقان دی.[1] ابن الجوزی رحمه الله فرمائی دې نه مراد اهل بدعت دی.[2] او بعض حضرات فرمائی دې نه مرتدین مراددی.[3]

**یوه شبه اودهغې ازاله:** -امام ابن الجوزی رحمه الله فرمائی که دا اعتراض اوکړې شی چه ددغه خلقو حال د رسول الله ﷺ نه څنګه پټ اوساتلې شو حالانکه په حدیث کښې راغلی دی زما په وړاندې زمادامت اعمال پیش کولې شی. نوددې جواب دادې چه د حضورپاك ﷺ په وړاندې د مؤمنینو مؤحدینو اعمال پیش کولې شی نه چه دمنافقانواوکافرانو.[4]

[حدیث ٢٢٣٩][5] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ أَيُّوبَ وَكَثِيرِ بْنِ كَثِيرٍ - يَزِيدُ أَحَدُهُمَا عَلَى الآخَرِ - عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «يَرْحَمُ اللَّهُ أُمَّ إِسْمَاعِيلَ، لَوْ تَرَكَتْ زَمْزَمَ - أَوْ قَالَ لَوْ لَمْ تَغْرِفْ مِنَ الْمَاءِ - لَكَانَتْ عَيْنًا مَعِينًا، وَأَقْبَلَ جُرْهُمُ فَقَالُوا أَتَأْذَنِينَ أَنْ نَنْزِلَ عِنْدَكِ قَالَتْ نَعَمْ وَلاَ حَقَّ لَكُمْ فِى الْمَاءِ. قَالُوا نَعَمْ». [٣١٨٣، ٣١٨٥]

**ترجمه:** -د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې الله تعالی دې دحضرت اسماعیل علیه السلام په موربانډې رحم اوکړی که چرې هغې زمزم پریخودې وې یائی داسې اوفرمائیل چه هغې دزمزم نه چونګ چونګ نه ډکولو اواخستلو نوهغه به یوه جاری چینه وه اودقبیله جرهم خلق هغې له راغلل ورته ئی اووئیل. آیا ته مونږ خپل ځان سره د کوزیدلو اجازت راکوې؟ هغې وئیل او لیکن په اوبوبه ستاسو هیڅ حق نه وی هغوی اووئیل ټیك ده.

## رجال الحدیث

**عبدالله بن محمد:** - دا ابوجعفر عبدالله بن محمدبن عبدالله جعفی مسندی رحمه الله دې.[6] یادساتئی چه دامام بخاری په شیوخ کښې عبدالله بن محمد نومې شیوخ شمیراته دې.[7]

---

[1]) المصدر السابق.

[2]) المصدر السابق.

[3]) عمدة القاری:١٢/٢٩٦.

[4]) المصدرالسابق.

[5]) أخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی أحادیث الانبیاء باب یزفون رقم:٢٣٦٢، ٢٣٦٤، ٢٣٦٥ ولم یخرجه أحد من أصحاب السنةسوی البخاری رحمه الله تعالی انظر جامع الاصول: ١٠/٢٩٧ الکتاب الثامن قصة ابراهیم واسماعیل وأمه علیهم السلام رقم:٧٨١٩.

[6]) کشف الباری:١/٦٥٧.

[7]) مفتاح صحیح البخاری:٩٤ — ٩٥.

**عبدالرزاق**:- دا عبدالرزاق بن همام صنعانی رحمه الله دي. [1]
**معمر**:-دا معمر بن راشد ازدی بصری رحمه الله دي. [2]
**ایوب**:- دا ایوب بن ابی تیمیه کیسان سختیانی رحمه الله دي. [3]
**کثیربن کثیر**:- دا کثیر بن کثیر بن مطلب بن أبي وداعة بن صبيرة بن سعيد بن سعد بن سهم قرشي سهمي مکی رحمه الله دي. [4] دوی د جعفربن کثیر او عبدالله بن کثیر رحمه الله رور دي. [5]
**اساتذه**:- هغوی د سعیدبن جبیر، علی بن عبدالله ازدی باقي او خپل والد محترم کثیر بن مطلب بن ابی وداعة وغیرهم رحمهم الله نه روایات نقل کوی. [6]
**تلامذه**:- ابراهیم بن نافع مکی، سالم خیاط، سفیان بن عیینه، عبدالملك بن جریج، معمر بن راشداو هشام بن حسان د هغوی رحمه الله نه روایات نقل کوی. [7]

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی **ثقة**. [8] یحیی بن معین رحمه الله فرمائی **ثقة**. [9] محمدبن سعد رحمه الله فرمائی **کان شاعرا، قلیل الحدیث**. [10] امام نسائی رحمه الله فرمائی **لاباس به**. [11] ابن حبان رحمه الله د هغوی تذکره ثقات کښې کړې ده. [12] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی **ثقة، من السادسة**. [13]
**سعیدبن جبیر**:- دوی سعیدبن جبیر کوفی رحمه الله دي. [14]
**عبدالله بن عباس**:- او د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما تذکره هم تیره شوې ده. [15]
**د حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت**:- علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت قولها لجرهم ولاحق لکم في الماء نه ماخوذ دي. یعنی د حضرت هاجره بی بی د

---

[1] کشف الباری:۲/۴۲۱.
[2] کشف الباری:۱/۴۶۵، ٤/۳۲۱.
[3] کشف الباری:۲/۲۶.
[4] تهذیب الکمال:٢٤/١٥١.
[5] المصدرالسابق.
[6] تهذیب الکمال:٢٤/١٥١ – ١٥٢.
[7] المصدرالسابق.
[8] العلل ومعرفة الرجال:۱/۱۲۹.
[9] الجرح والتعدیل:۷، رقم الترجمة:۸۶۷.
[10] طبقات لابن سعد رحمه الله ۵/۴۸۵.
[11] تهذیب الکمال:٢٤/١٥٢.
[12] الثقات: ۷/۳٤۹.
[13] تقریب التهذیب: ۲/۱٤۲.
[14] کشف الباری:۱/۴۳۵، ٤/٤۱۸.
[15] کشف الباری:۱/۴۳۵، ۲/۲۰۵.

قبيله جرهم خلقو ته دا وينا چه په اوبو به ستا سوڅه حق نه وى. دا قول په دې خبره باندې دلالت كوى چه هغه د نورو خلقو نه زياته د دغه چينې حقداره وه. او حضورپاك په دې قصه باندې څه انكارهم نه دې فرمائيلې. اوكه شرائع ماقبلنا بغيرد نكير نه بيان كړې شى نوزمونږ په حق كښې هم حجت دې.(1)

**قوله: يزيد أحدهما على الآخر:**- يعنى ايوب سختيانى رحمه الله او كثير بن كثير رحمه الله دواړو په دې روايت كښې څه مضمون زياتى نقل كړې دې لكه چه علامه قسطلانى رحمه الله صاحب كواكب په حواله سره نقل كړى دى چه په دې دواړو كښې د هريو روايت په دوو اعتبارو سره مزيد اومزيد عليه دواړو حيثيت لرى.(2)

**قوله: يرحم الله أم اسماعيل:**-علامه عينى رحمه الله فرمائى (3) كله چه په شام كښې قط راغلونو ابراهيم عليه السلام خپل ځان سره حضرت ساره او حضرت لوط عليهم السلام واخستلو اومصرته لاړل. په هغه وخت كښې په مصركښې د فراعنه مصر د ړومبى فرعون حكومت وو. او بيا حضرت ابراهيم اوحضرت ساره عليهم السلام ته د مصرد فروعون نه كوم تكليف اورسيدو د هغې قصه اهل تاريخ وسير كښې مشهوره ده. بهرحال آخرى خبره دا اوشوه چه الله تعالى حضرت ساره ته د هغه فرعون نه خلاصې وركړو او په هغه باندې د هغې داسې رعب راغلو چه د هغې د خدمت د پاره حضرت هاجره بى بى هغې وركړه. مقاتل رحمه الله فرمائى چه حضرت هاجره دحضرت هود عليه السلام د اولاد نه وه. اوحضرت ضحاك رحمه الله فرمائى د مصرد بادشاه لوروه اوبياچه كله په مصرباندې يوبل بادشاه حمله اوكړه او غلبه ئې حاصله كړه نود هغې پلارئى قتل كړو اودائى وينځه جوړه كړه . او بياهم دا دې بادشاه د حضرت ساره په خدمت كښې پيش كړه. اوحضرت ساره داحضرت ابراهيم عليه السلام ته هبه كړه اوبياهم د دې نه حضرت اسماعيل عليه السلام پيدا شو. بياحضرت ابراهيم عليه السلام حضرت اسماعيل اوحضرت هاجره عليهما السلام د الله تعالى په حكم باندې د مكې په آب وګيا ميدان كښې پريخودل د كومې چه اوږده قصه مشهوره ده. مختصردا چه حضرت هاجره سره هغه وخت د اوبويوروكې مشك وو هغه ختم شو اوكله چه تنده زياته شوه نوحضرت جبرائيل عليه السلام نازل شو اوهغوى روان كړل د زمزم ځائى ته ئى راؤرسول اوهلته ئى خپله پونده اووهله نوهلته يوه چينه روانه شو دې زمزم ته ركضة جبرائيل هم وئيلې شى. كله چه چينه راؤخوټكيدله نوحضرت هاجره د اوبونه خپله مشكيزه ډكه كړه او په دې كښې اوبه راجمع كړې. نوحضورپاك هم د دې قصې طرف ته اشاره اوفرمائيله يرحم الله ام إسماعيل لوتركت زمزم لكانت عينا معينا. او بياحضرت جبرائيل عليه السلام هغوى ته اووئيل اوس ته په دې ښاروالاباندې د تندې ويره مه كوه بيشكه دا داسې چينه ده چه دې نه به د الله تعالى سبحانه وتعالى ميلمانه اوبه ځكى. بيا په دې ځائى كښې د قبيله جرهم څه خلق د

(1) عمدة القاري:۱۲/۲۹۶ بتفصيل.

(2) إرشادالساري:۱۰/۳۵۹.

(3) عمدة القاري:۱۲/۲۹۷.

شام د تللو د پاره په دې ځائې تیریدل هغوی د مکې مکرمې د وادئې لاندې طرف ته ډیره واچوله نو هغوی په غرباندې مارغان اولوتونکی اولیدل هغوی اووئیل چه دا مرغئې خو په اوبو الوزی او مونږ په دې وادئې باندې تیریږو راتیریږو. دلته خو چرته د اوبو نوم اونښه نه وه نو دغه شان هغوی دې اوبو طرف ته راغلل. بیا هغوی حضرت هاجره ته دې خلقو عرض اوکړو که تاسو اجازت راکوئې نو مونږ به دلته اووسیږو اواوبه به هم ستاسو وی. هغې اجازت ورکړو نو دغه شان دا اولین خلق ووچه هلته ئې استوګنه اختیارکړه اوهغوی هم هلته پاتې شو تردې چه حضرت اسماعیل علیه السلام خوان شو او هم د دوی نه ئې فصیح اوبلیغ عربی زده کړه اوبیا د حضرت هاجره انتقال اوشو. حضرت اسماعیل علیه السلام هم د دوی یوې ښځې سره واده اوکړو د کومې نوم چه جداء بنت سعد عملاً وو او د دوی په قصه کښې ډیر زیات تفاصیل دی چه په تاریخ والسیر کښې کتلې شئې.[1]

**د بنوجرهم څه تفصیل:**- بنوجرهم په دوو قسمونو باندې دی اول هغه جرهم چه د قوم عاد د زمانې نه وو هغوی خو هلاك شو او د هغوی نښې نښانې هم ختمې شوې او هغوی ته به ئې عرب بائده وئیل او دویم هغه جرهم بن قحطان د اولاد نه دی. دا جرهم بن قحطان د یعرب بن قحطان رور وو. یعرب د یمن د علاقې حکمران وو او جرهم د حجاز د دوی نسب بعض اهل تاریخ داسې نقل کړې دې چه جرهم بن قحطان بن عامر بن شالح بن ارفحشذ بن سام بن نوح علیه السلام.[2]

[حدیث ۲۲۴۰][3] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رضى الله عنه-عَنِ النَّبِيِّ-صلى الله عليه وسلم-قَالَ «ثَلاَثَةٌ لاَ يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَلاَ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ رَجُلٌ حَلَفَ عَلَى سِلْعَةٍ لَقَدْ أَعْطَى بِهَا أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَى وَهْوَ كَاذِبٌ، وَرَجُلٌ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ كَاذِبَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ، وَرَجُلٌ مَنَعَ فَضْلَ مَاءٍ، فَيَقُولُ اللَّهُ الْيَوْمَ أَمْنَعُكَ فَضْلِي، كَمَا مَنَعْتَ فَضْلَ مَا لَمْ تَعْمَلْ يَدَاكَ». قَالَ عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ غَيْرَ مَرَّةٍ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ أَبَا صَالِحٍ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ-صلى الله عليه وسلم-.[ر: ۲۲۳۰]

---

[1]) عمدة القاری:۲۹۷/۱۲.

[2]) المصدر السابق.

[3]) أخرجه البخاری رحمه الله تعالى أيضًا فی المساقاة باب أثم من منع ابن السبيل من الماء رقم:۲۳۵۸وفی الشهادات باب اليمين بعدالعصر رقم:۲۶۷۲وفی الاحكام باب من بائع رجلا لايبائعه إلا للدينا رقم:۷۲۱۲وفی التوحيد باب قول الله تعالى ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ﴾ رقم:۷۴۴۶وأخرجه مسلم رحمه الله تعالى فی الايمان باب بيان غلظ تحريم إسبال الازار والمن بالعطية الخ رقم:۲۹۷ وأبوداؤد رحمه الله تعالى فی البيوع باب فی منع الماء رقم: ۳۴۷۴، ۳۴۷۵ والنسائی رحمه الله تعالى فی البيوع باب الحلف الواجب للخديعة فی البيع رقم:۴۴۶۷.

**ترجمه**:- دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه درې کسان داسې دی چاسره چه به الله سبحانه وتعالی خبرې نه وی اونه به دَهغوی طرف ته نظرکرم کوی. یوهغه سړې چه په خپل مال قسم خوری چه ما ته دَدې سامان دومره روپئی ملاویدلې اودروغ وائی. بل هغه کس چه دَ مازیگرنه پس ئی قسم اوخوړلودې دَ پاره چه دَ یومسلمان مال اووهی اودریم هغه سړې چه زیاتی اوبه ئی بندې کړې. الله تعالی به هغه ته فرمائی چه څنګه تا (دنیا کښې) زیاتی اوبه بندې کړې وې چه تانه وې جوړې کړې نن زه ستانه خپل فضل بندوم.

## رجال الحدیث

**عبدالله بن محمد**:- داعبدالله بن محمدبن عبدالله جعفی مسندی رحمه الله دې.[1]
**سفیان**:- دا سفیان بن عیینه رحمه الله دې.[2]
**عمرو**:- دا عمرو بن دینار مکی رحمه الله دې.[3]
**أبی صالح**:- دا ابوصالح ذکوان مدنی رحمه الله دې.[4]
**ابوهریره**:- اودَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه چه مشهورصحابی دې تذکره هم تیره شوې ده.[5]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت **قوله: ورجل منع فضل ماء** نه ماخوذدې. په دې وجه چه هغه سړې زیاتی اوفاضل اوبه دَ خلقونه دَمنع کولودَ وجې دَ عذاب مستحق شو نوداخبره په دې باندې دلالت کوی چه هغه دَخپل اصل اوضرورت اوبه کومې چه دَ هغه په حوض یا مشکیزه کښې موجود دی دَ نورو نه زیات حقداردې.[6]

**قوله**: قال علی حدثنا سفیان الخ:- یعنی علی بن مدینی رحمه الله فرمائی چه سفیان بن عیینه رحمه الله داحدیث زمونږ په وړاندې څوځل عمرو بن دینار رحمه الله نه بیان کړو اوهغه داحدیث دَ ابوصالح ذکوان رحمه الله نه اوریدلې اوابوصالح دَدې حدیث سند حضورپاک ﷺ ته رسولې دې.
**دَتعلیق مقصد**:- مقصددادې چه سفیان بن عیینه رحمه الله به چونکه داحدیث اکثرمرسل بیانولو نو په دې وجه دَدې دَمرسل کیدو وهم نه دی کول پکار بلکه صحیح هم دغه دی چه دا حدیث موصول دې او هغوی دا دَحفاظ حدیث نه موصولاً اوریدلې دې لکه چه په حدیث باب کښې دی او عمرو ناقد رحمه الله هم دا موصولاً ذکرکړې دې. دغه شان امام مسلم رحمه الله هم سفیان عن عمرو عن ابی صالح عن ابی هریرة رضی الله عنه په طریق سره دا موصولاً ذکرکړې دې[7] اوعلامه

---

[1] کشف الباری:۶۵۷/۱.
[2] کشف الباری:۲۳۸/۱، ۱۰۲/۳.
[3] کشف الباری:۳۰۹/٤.
[4] کشف الباری:۶۵۸/۱.
[5] کشف الباری:۶۵۹/۱.
[6] عمدة القاری:۲۶۸/۱۲ إرشادالساری:۳۶۱/۵.
[7] إرشاد الساری:۳۶۱/۵ عمدة القاری:۲۹۸/۱۲.

اسماعيلى رحمه الله فرمائى چه سعيدبن عبدالرحمن مخزومى عبدالله بن يونس محمدابن ابى الوزير اومحمدبن يونس وغيره رحمهم الله دَ سفيان بن عيينه رحمه الله متابعت كړې دې او مذكوره روايت ئې موصولاً بيان كړې دې.[1]

## ۱۲ - باب: لاحمى إلالله ولرسوله صلى الله عليه وسلم

### محفوظ دڅرن ځايونه د الله تعالى اودهغه د رسول صلى الله عليه وسلم دپاره دى

**حل لغات: حمى:** - دَ څرن ځائى په كوم كښې چه دَنورو خلقو دَ څارووڅ څرولوممانعت وى، هرهغه ځيزچه حفاظت ئې اوكړې شى.[2]

**دَترجمة الباب مقصد:** - دَ عربود أميرانوطريقه داوه چه هغوى به په ځنګلوكښې يودَ څرن ځائې دَخپل ځان دَپاره مخصوص كولو دَهغوى ځاروى به په هغې كښې څريدل اونورو خلقوته به دَ ځاروو څرولو اجازت نه وو نوحضورپاك دې نه منع اوفرمائيله چه الله تعالى يا دَهغه رسول صلى الله عليه وسلم يادَهغوى په ځائې خليف نه علاوه بل دَ هيچاحق نشته چه هغه دَ خپل ذات دَپاره دَ جاهليت دَ زمانې په شان نور خلق منع كړى اودَخپل ځان دَپاره څه ځائې مخصوص كړى.[3]

[حديث ۲۲۴۱][4] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَنَّ الصَّعْبَ بْنَ جَثَّامَةَ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لاَ حِمَى إِلاَّ لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ». وَقَالَ بَلَغَنَا أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - حَمَى النَّقِيعَ، وَأَنَّ عُمَرَ حَمَى السَّرَفَ وَالرَّبَذَةَ. [۲۸۵۰]

**ترجمه:** - حضرت ابن عباس رضى الله عنهما دَحضرت جثمامه رضى الله عنه نه نقل كوى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلې مخصوص دَ څرن ځائې صرف دَالله تعالى اودَهغه دَ رسول صلى الله عليه وسلم دَپاره دى.

## رجال الحديث

**يحيى بن بكير:** - دا يحيى بن عبداللهبن بكير مخزومى مصرى رحمه الله دې.[5]

**ليث:** - داامام ليث بن يزيدايلى رحمه الله دې.[6]

---

[1]) فتح البارى:٥/٤٤.

[2]) النهاية:١/٤٣٨ – ٤٣٩.

[3]) إراشادالسارى:٥/٣٦٣ عمدة القارى:١٢/٢٩٩.

[4]) أخرجه البخارى رحمه الله تعالى أيضًا فى الجهاد باب أهل الدار يبيتون فيصاب الولدان والذرارى رقم:٣٠١٢ وأبوداؤد رحمه الله تعالى فى الخراج والامارة باب فى الارض يحميها الامام الخ رقم:٣٠٨٣، ٣٠٨٤ وانظر جامع الاصول: ٢/٧٣٥الكتاب الاول فى الجهاد الباب الثانى فى فروع الجهاد الفصل الثالث فى الغنائم والفرء، الفرع السادس فى أحاديث متفرقة الخ رقم:١٢٣٢.

[5]) كشف البارى:١/٣٢٣.

[6]) كشف البارى:١/٣٢٤.

**یونس:**- دا یونس بن یزید ایلی رحمه الله دې. [۱]

**ابن شهاب:** - دا محمد بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب رحمه الله دې. [۲]

**عبدالله:**- دا عبیدالله بن عبدالله بن عتبة بن مسعود رحمه الله دې. [۳]

**ابن عباس:**- دا مشهور صحابی عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب رضی الله عنهما دې. [۴]

**صعب بن جثامة:**-داحضرت صعب بن جثامة لیثی حجازی رضی الله عنه دې. [۵]

**دَحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:**-علامه عینی رحمه الله فرمائی چه حدیث مبارك خوعین ترجمه ده اودَدې نه دَ قوی مطابقت تصور نه شی کیدې. [۶]

**تشریح:**- مطلب داچه په مسلمانانوکښې چاته هم داحق حاصل نه دې چه هغوی ځنګلاتو کښې یودَ ځړن ځائی دَځپل ځان دَپاره مخصوص کړي اونورخلق دَ هغې نه منع کړي.اوصرف الله سبحانه وتعالی اودَهغه رسول صلی الله علیه وسلم اوځوك چه دَ هغوی په ځائی خلیفه دوخت وی. اودَ عامومسلمانانودَمصلحت دَپاره هغه دا ضروری ګڼړی نوهغوی ته داحق حاصل دې چه هغه یودَ ځړن ځائی مخصوص کړي. [۷]اوامام هم یوداسې دَ ځړن ځائی مخصوص کولې شی چه دَچا مملوك نه وی لکه وادیانې ځنګلې او دَ مرو زمکې وغیره. [۸]

لکه څنګه چه حضرت ابوبکرصدیق، حضرت عمر فاروق اوحضرت عثمان غنی رضی الله عنهم نه داسې کول ثابت دی. اوچه کله په حضرت عمر رضی الله عنه باندې یوسړی دا اعتراض اوکړو نوهغه په جواب کښې اوفرمائیل چه دا دَالله تعالی سبحانه وتعالی زمکه ده اوهم دَالله تعالی دَ مال دَ حفاظت دَپاره دا مخصوص کړې شوې ده. [۹]

**قوله: وقال بلغنا أن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم الخ:**- دلته دَ بخاری شریف تقریباًدَټولو راویانوپه نسخو کښې داسې دی چه **وقال بلغنا الخ** بغیردَابوذر رحمه الله دَ نسخې نه په هغې کښې دی **وقال أبوعبدالله** . حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی هم په دې وجه بعض شراح ته دا وهم شوې دې چه دا دَمصنف یعنی امام بخاری رحمه الله کلام دې حالانکه داسې نه ده دا کلام دَ ابن شهاب زهری رحمه الله دې اودا روایت مرسل یا معطل دې. اوهم دَدې حدیث باب په

---

[۱]) کشف الباری:۱/۳۶۳، ۳/۲۸۲.

[۲]) کشف الباری:۱/۳۲۶.

[۳]) کشف الباری:۱/۳۲۶.

[۴]) کشف الباری:۱/۴۳۵ ، ۲/۲۰۵.

[۵]) کشف الباری کتاب جزاء الصید باب إذا أهدی للمحرم حمارا وحشیا حیا الخ..

[۶]) عمدة القاری: ۱۲/۳۰۰ إرشادالساری:۵/۳۶۲.

[۷]) عمدة القاری: ۱۲/۳۰۰إرشادالساری:۵/۳۶۲.

[۸]) إرشادالساری:۵/۳۶۲.

[۹]) عمدة القاری:۱۲/۳۰۰.

اسنادسره موصولاً هم نقل کړې شوې دې[1] لکه څنګه چه امام ابوداؤد په خپل سنن کښې دَدې خبرې تصریح کړې ده[2] دغه شان ابن سعد ﷫ دَحضرت عمر ﷜ اثر موصولاً نقل کړې دې[3] اودَدې تعلیق مطلب دادې چه امام ابن شهاب زهری ﷫ فرمائی چه مونږ ته داخبررسیدلې دې چه نبی کریم ﷺ نقیع محفوظ کړو اوحضرت عمر ﷜ سرف او ربذة محفوظ کړل.

**قوله: النقیع**:- نقیع: دَنون فتحه سره او قاف په کسره سره دې. دادَمدینې منورې نه شل فرسخ فاصله باندې ځائی دې او په اصل کښې نقیع هرهغه ځائی ته ونیلې شی چرته چه اوبه جمع وی اوهلته وابنه راؤټوکیږی.[4]

**قوله: الشرف**:- دادَ شین او راء فتحه سره دې زمونږ په متداول نسخوکښې اودَبخاری شریف دَ بعض شراح په نسخو کښې دا هم دغه شان دې.[5] دا دَ مدینې منورې نه دَ یوځومیله فاصله باندې یوځائی دې هغې ته وائی.[6] اودَ بعض شراح په نسخو کښې دا سین سره دې.[7] علامه میاطی ﷫ فرمائی چه دا خطاء ده او صحیح هم شرف دې.لکه چه دَ بخاری بعض راویانوذکرکړې دې او په موطاء ابن وهب کښې هم دغه شان دې. اوتر کومې چه دَ سرف تعلق دې نوهغه دَمکې مکرمې نه تقریباً شپږ میله لرې دَ یوځائې نوم دې.[8] او په دې لفظ باندې الف اولام هم نه شی داخلیدې.[9]

**قوله: الربذة**:- دا دَ راء او باء فتحې سره دې اوذات عرق سره نیزدې دَ یوکلی نوم دې اودَمدینې منورې نه تقریباً درې میله فاصله باندې دې.[10]

....

---

[1]) فتح الباری:۵۷/۵إرشادالساری:۳۶۲/۵عمدة القاری:۳۰۱/۱۲.

[2]) سنن ابوداؤد کتاب الخراج والامارة والفیئ باب فی الارض یحسبها الامام أوالرجل رقم:۳۰۸۳ وقال بعده: قال ابن شهاب رحمه الله تعالی:وبلغنی أن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم حمی النقیع.

[3]) الطبقات لابن سعد رحمه الله ۳۰۵/۳ ترجمة عمر. رضي الله عنه

[4]) إرشاد الساری:۳۶۲/۵.

[5]) صحیح بخاری:۳۱۶/۱۱قدیمی. فتح الباری:۵۸/۵عمدة القاری:۳۰۱/۱۲.

[6]) عمدة القاری:۳۰۱/۱۲.

[7]) إرشادالساری:۲۶۲/۵ عمدة القاری:۳۰۱/۱۲.

[8]) المصدرالسابق.

[9]) فتح الباری:۵۸/۵.

[10]) عمدة القاری:۳۰۱/۱۲.

# ١٣- باب: شرب الناس والدواب من الانهار

## د نهرونو نه انسانان او حيوانان اوبه څكلې شي

**دترجمة الباب مقصد:-** امام بخاري رحمه الله فرمائي چه په عامونهرونوكښې يوسړى ته داحق حاصل نه دى هغه نور خلق د اوبوڅكلونه يا څناور د اوبوڅكلونه منع كړى اودامسئله متفق عليه ده (١) دكومې تفصيل چه په شاته ابواب كښې تيرشوې دې.

[حديث ٢٢٤٢] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «الْخَيْلُ لِرَجُلٍ أَجْرٌ، وَلِرَجُلٍ سِتْرٌ، وَعَلَى رَجُلٍ وِزْرٌ، فَأَمَّا الَّذِى لَهُ أَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَأَطَالَ بِهَا فِي مَرْجٍ أَوْ رَوْضَةٍ، فَمَا أَصَابَتْ فِي طِيَلِهَا ذَلِكَ مِنَ الْمَرْجِ أَوِ الرَّوْضَةِ كَانَتْ لَهُ حَسَنَاتٍ، وَلَوْ أَنَّهُ انْقَطَعَ طِيَلُهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا أَوْ شَرَفَيْنِ كَانَتْ آثَارُهَا وَأَرْوَاثُهَا حَسَنَاتٍ لَهُ، وَلَوْ أَنَّهَا مَرَّتْ بِنَهَرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ وَلَمْ يُرِدْ أَنْ يَسْقِيَ كَانَ ذَلِكَ حَسَنَاتٍ لَهُ، فَهِيَ لِذَلِكَ أَجْرٌ، وَرَجُلٌ رَبَطَهَا تَغَنِّيًا وَتَعَفُّفًا ثُمَّ لَمْ يَنْسَ حَقَّ اللَّهِ فِي رِقَابِهَا وَلاَ ظُهُورِهَا، فَهِيَ لِذَلِكَ سِتْرٌ، وَرَجُلٌ رَبَطَهَا فَخْرًا وَرِيَاءً وَنِوَاءً لأَهْلِ الإِسْلاَمِ، فَهِيَ عَلَى ذَلِكَ وِزْرٌ». وَسُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الْحُمُرِ فَقَالَ «مَا أُنْزِلَ عَلَيَّ فِيهَا شَيْءٌ إِلاَّ هَذِهِ الآيَةُ الْجَامِعَةُ الْفَاذَّةُ (فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ * وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ)» [٢٧٠٥، ٣٤٤٦، ٤٦٧٨، ٤٦٧٩، ٦٩٢٣]

**ترجمه:-** حضرت ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي اس د يوسړى دپاره (سبب) داجر اوثواب دې اود يوسړى دپاره پرده (بچاؤ) دې اود يوسړى دپاره وبال دې. بهرحال دهغه سړى دپاره چه (سبب) داجر اوثواب دې نوهغه هغه سړې دې چه دالله تعالى سبحانه وتعالى دپاره ئى دا اس تړلې دې. د څرن په ځائى كښې يا باغ كښې دهغه رسئى اوږده كړى نوهغه اس دڅرن په ځائى كښې يا د باغ كښې دڅپلې رسئى د اوږدوالى په اندازه خورى څكى نودده دپاره نيكئى ليكلې كيږى. اوكه چرې دهغه رسئى پرې شى اوهغه د يواوچتوالى يا دوو اوچتوالو برابر اوتختى منډه كړى نودهغه د خپو نښې اود خرانشه تول به دهغه د پاره نيكئى شميرلې شى. اوكه هغه چرته په واله باندې تيرشى اودهغې نه اوبه اوڅكى سره ددې چه مالك

---

(١) عمدة القاري: ٣٠١/١٢.

(٢) أخرجه البخارى رحمه الله تعالى أيضًا فى الجهاد باب الخيل ثلاثة الخ رقم: ٢٨٦٠ و فى المناقب باب رقم: ٣٦٤٦ وفى التفسير سورة إذا لزلت رقم: ٤٩٦٢، ٤٩٦٣ وفى الاعتصام باب الاحكام التى تصرف بالدلائل الخ رقم: ٧٣٥٦ وأخرجه النسائى رحمه الله تعالى فى كتاب الخيل والسيف والرمى باب الخيل معقود فى نواصيها الخير إلى يوم القيمة رقم: ٣٥٩٣ ومسلم رحمه الله تعالى فى الزكاة باب إثم مانع الزكاة رقم: ٢٢٩٠ وانظر: جامع الاصول الكتاب الاول فى الزكاة الباب الاول فى وجوبها وإثم تاركها رقم: ٢٦٥٧.

ئي د اوبوڅکلو اراده نه وي کړې نوبيابه هم دهغه دپاره نيکئي ليکلې کيږي دداسې سړي دپاره خو اس ثواب اوهم ثواب دې. اويوهغه سړې دې چه اس ئي تړلې دې رويو ګټلو او د سوال نه د بچ کيدلودپاره بيا دهغه په سټ او پټوکښې چه کوم د الله تعالى حق دې هغه هيرنه کړي نود داسې سړي دپاره (اس) پرده (يعنې بچاؤ) دې اوکوم سړې چه اس اوتړي فخر اوکبر ښائي اود اهل اسلام د نقصان رسولودپاره نود داسې سړي دپاره دا اسونه وبال اوعذاب دې.
د رسول الله ﷺ نه د خرو باره کښې تپوس اوشو نوحضورپاك اوفرمائيل چه الله سبحانه وتعالى دَدې متعلق(څه خاص) حکم په مابانديې نه دې نازل کړې مګر د سورت إذازلزلت دا يوآيت کوم چه جامع دې ﴿فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ ۝ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ ۝﴾ الاية يعنى چه څوك يو ذره برابر نيکي کوي هغه ويني او څوك چه يوذره برابر بدي کوي هغه به هم ويني.

## رجال الحديث

**عبدالله بن يوسف**:- داعبدالله بن يوسف تنيسى مصرى رحمه الله دې.[1]
**مالک بن انس**:-دا امام دارلهجرة مالك بن انس بن مالك بن ابى عامر، ابوعبدالله مدنى رحمه الله دې.[2]
**زيدبن اسلم**:- دا زيدبن اسلم عدوى مدنى رحمه الله دې.[3]
**أبى صالح السمان**:- دا ابوصالح ذكوان مدنى رحمه الله دې.[4]
**ابوهريره**:- اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه تذکره هم تيره شوې ده.[5]
**حل اللغات**:- المرج: د څرن ځائى ارت اوکولاؤ د وښووالازمکه، دَدې جمع مروج راځى.[6]
الطيل والطول: هغه اوږده رسئى چه يوسرئى موګى وغيره پورې وي او بل سرد اس خپه کښې تړلې وي دې دپاره چه ګرځيدې شى څرن کولې شى ليکن چرته تختيدې نه شى.[7]
استنان: داس بغيرد سورنه په مستئى سره يوځوابل خوامندې وهل.[8]
نواء: دمفاعله نه مصدردې ناواه مناواة نونواء فخر کول دښمنى کول مقابله کول.[9]
**دحديث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دحديث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: أنها مرت بنهرفشربت منه الخ سره دې. اوددې توضيح داده که چرې د نهرونواوبه دڅا دپاره مخصوص

---

[1]) کشف الباری:۱/۲۸۹، ٤/۱۱۳.
[2]) کشف الباری:۱/۲۹۰، ۲/۸۰.
[3]) کشف الباری:۲/۲۰۳.
[4]) کشف الباری:۱/۶۵۸.
[5]) کشف الباری:۱/۶۵۹.
[6]) النهاية: ۲/٦٤٨.
[7]) النهاية:۲/۱۲۸.
[8]) النهاية: ۱/۸۱٤.
[9]) النهاية:۲/۸۰۰.

وي نوځامخابه د اذن اواجازت ضرورت وو ليکن شارع ﷺ چه مطلقا ذکرکړې نومعلومه شوه چه د نهرونو اوبه د ځاد پاره مخصوص نه دی.[1]

**قوله:** ثم لم ينس حق الله في رقابها ولاظهورها - بيا د هغوى په ستونو او شاګانو کښې د الله سبحانه وتعالى چه کوم حق دې هغه مه هيره وني يعنى ددې په تجارت کښې زکوة اداکوني[2] او بعض حضرات فرمائى چه ولاظهورها نه مراد دادې چه په هغې باندې د الله سبحانه وتعالى په لارکښې سورلى کوئى اوامام ابوحنيفه رحمه الله د خيل سانمه په سلسله کښې ددې روايت نه استدلال کوى دکوم تفصيل چه کتاب الزکوة کښې تيرشو.[3] اويادې نه مراد دادې په دې باندې د ده د طاقت نه زيات بوج مه اچوئى.[4] داهم وئيلى شوى دى چه دې نه مراد دادې چه د دې په ذريعه د ضرورت مندو اومحتاجانو امدادکوئى.[5]

**قوله:** وسئل رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم عن الحمر - يعنى د رسول الله ﷺ نه د خرو د حکم باره کښې پښتنه اوشوه. علامه قسطلانى رحمه الله فرمائي چه دا سائل صعصة بن ناجية رضي الله عنه وو چه د مشهورشاعر فرزوق نيکه دې.[6] او سوال د خرو د زکوة اوصدقه باره کښې وو لکه چه علامه خطابى رحمه الله نه نقل کړې شوې دى[7] نورسول الله ﷺ آيت مبارك ﴿فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ ۝ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ ۝﴾ (الزلزال: ۷،۸) په عموم سره جواب طرف ته اشاره اوفرمائيله يعنى چه کوم سړې ذره برابرهم نيکى کوى (ضرور) به هغه اووينى (که هغه نيکى اوعمل هرڅومره معمولى وى او وړوکې وى بيشکه هغه ته به د کړې نيکئى بدله ملاوېږى) اوکوم سړې چه يوه ذره برابربدى کوى (يقيناً) به هغه وينى (اودهغې نتيجه زغمى).[8]

بعض حضرات فرمائى چه دا آيت مبارك ډير جامع او بې مثاله دې او لږ شان الفاظوسره ډيره زيات معانى ته جامع کيدو کښې بل يوآيت ددې په شان نشته. ځکه چه دا د خيراوشر هرې يوې معنى ته شامل دې.[9] لکه څنګه چه پخپله رسول الله ﷺ ارشادفرمائيلې دې. إلا هذه الآية الجامعة الفاذة او په يوروايت کښې کعب احبار رحمه الله د نبى کريم ﷺ ارشاد نقل کړې دې

---

[1] عمدة القاري: ۳۰۶/۱۲.

[2] إرشادالساري: ۳۶٤/۵ عمدة القاري: ۳۰۳/۱۲.

[3] المصدرالسابق.

[4] المصدرالسابق.

[5] المصدرالسابق.

[6] إرشادالساري: ۳٦٤/۵.

[7] إرشادالساري: ۳٦٤/۵ عمدة القاري: ۳۰٤/۱۲.

[8] معارف القرآن للشيخ الکاندهلوى رحمه الله ۵۱۹/۸.

[9] عمدة القاري: ۳۰٤/۱۲ الکوثر الجاري: ٦۸/۵.

چه دا دوه آیاتونه داسې نازل شوی چه د تورات اوانجیل خلاصه او حاصل دې او په یوروایت
کښې دی سورة إذا زلزلت الارض د تلاوت ثواب د نصف قرآن د ثواب برابردې.(١)
علامه ابن العربی رحمه الله فرمائی چه ددې آیاتونو په عموم باندې د ټولو علماؤ اتفاق دې.(٢)
علامه عینی رحمه الله فرمائی ددې آیت مبارك په ذریعه د جواب تفصیل دادې لکه چه د هغوی
سوال دا وو چه آیا د خرو هم هغه حکم دې کوم چه د اسونودې؟ نود آیت مبارك په ذریعه جواب
ورکړې شو که چرې دغه خره د خیر په کارونو کښې وی نو ضرور به د هغې بدله او ثواب
ورکولې شي او که چرې د شرپه کارونو کښې وی نو یقینا د هغې بدله اوعذاب نه خوری.(٣)
**یوه شبه اود هغې جواب:** اوس یو سوال داکیږی چه هغوی د بغال قچرو باره کښې سوال ولې
اونه کړو؟ د دې جواب بعض علماؤ دا ورکړې دی چه د قچرباره کښې سوال ځکه اونه کړې شو
چه هغه هم د خرو په شان دی اوهم د هغې په حکم کښې داخل دی.(٤)
یوبل جواب دا علامه ابن العربی رحمه الله نقل کړې دې چه هغه وخت د عربو په زمکه باندې د
قچرو وجود نه وو اوړومبی قچر چه هلته اورسیدو هغه دلدل نومې قچر وو کوم چه مقوقس
حضورپاك ته هدیه رالیګلې وه.(٥)

[حدیث ۲۲۴۳] (٦) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ-رضی الله عنه-قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ-صلی الله علیه وسلم- فَسَأَلَهُ عَنِ اللُّقَطَةِ، فَقَالَ «اعْرِفْ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا، ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً، فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَإِلاَّ فَشَأْنَكَ بِهَا». قَالَ فَضَالَّةُ الْغَنَمِ قَالَ «هِيَ لَكَ أَوْ لأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ». قَالَ

---

(١) معارف القرآن للشیخ کاندهلوی:۸/۵۱۹.
(٢) حکام القرآن لابن العربی رحمه الله ٤/٤٤٠.
(٣) عمدة القاری:۱۲/۳۰٤.
(٤) احکام القرآن لابن العربی رحمه الله ٤/٤٤٠.
(٥) المصدرالسابق.
(٦) أخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی صحیحه کتاب العلم باب الغضب فی الموعظة والتعلیم الخ رقم:۹۱ وکتاب اللقطة باب ضالة الابل الخ رقم:۲٤۲۷ وباب إذا لم یوجد صاحب اللقطة الخ رقم:۲٤۲۹ وباب إذا جاء صاحب اللقطة بعدسنة الخ رقم:۲٤۳٦ وباب من عرف اللقطة ولم یدفعهاإلی السلطان رقم:۲٤۳۸ وکتاب الطلاق باب حکم المفقود فی أهله وماله رقم:۵۲۹۲ وکتاب الادب باب مایجوز من الغضب والشدة لامرالله تعالی رقم:٦۱۱۲ ومسلم رحمه الله تعالی فی صحیحه کتاب اللقطة باب معرفة العفاص والوکاء وحکم ضالة الغنم والابل رقم: ٤٤۹۸- ٤۵۰۵ وأبوداوٗد رحمه الله تعالی فی سننه کتاب اللقطة باب التعریف باللقطة رقم: ۱۷۰٤ – ۱۷۰۸ والترمذی رحمه الله تعالی فی حامعه کتاب الاحکام باب ماجاء فی اللقطة وضالة الابل والغنم رقم:۱۳۷۲ – ۱۳۷۳ وابن ماجة رحمه الله تعالی فی سننه کتاب القطة باب ضالة الابل والبقر والغنم رقم:۲۵۰٤ وباب اللقطة رقم:۲۵۰۷.

فَضَالَّةُ الإِبِلِ قَالَ «مَالَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَاؤُهَا وَحِذَاؤُهَا، تَرِدُ الْمَاءَ وَتَأْكُلُ الشَّجَرَ، حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا». [ر: ۹۱]

**ترجمه**:- حضرت زيدبن خالد ﷺفرمائيلي چه يوسړي رسول الله ﷺ له راغلواو لقطه (پريوتلي څيز)باره كښې سوال اوكړو. حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو دَهغه ظرف (تيله) اودَدې دتړلوڅيزاوپيژنه بيا دَيوكال پورې دَدې اعلان اوكړه اوس كه دَهغې مالك راغلو (نووړئي كړه) گنې چه څه غواړې كوه. هغه وئيل وركه شوې چيلئي؟ حضورپاك اوفرمائيل هغه ستا ده يا ستادَ رور ده يا دَ شرمخ. هغه وئيل ورك شوې اوښ؟ حضورپاك اوفرمائيل چه اوښ سره ستا څه غرض دې هغې سره دَ هغې مشك او موزه هرڅه موجود دى په اوبو كښې وركوزيږى يعنى پخپله اوبه څكى، اودَ ونوپانړې خورى تردې چه دَهغې مالك راشى اوهغه واخلى.

**حل اللغات**: **اللقطة**: هغه څيزچه تاته په لاركښې پروت ملاؤشى. اوهغه ته اوچت كړې ياهغه متروك څيز دكوم مالك چه معلوم نه وى.

**اللقط**: اوچت كړې شوې ماشوم اوهغه وړوكې ماشوم چه اوغورزولې شى. **من لقط لقطاً** (ن): دَ زمكې نه اوچتول.

**والتقط الشئ**: بغيردَ قصد او طلب نه په يوڅيز خبريدل، **اللقطة سميت بها لانها تلتقط غالبًا**: او پريوتلي څيز ته **لقطة** څكه وئيلې شى چه بلا قصد او طلب په زمكه ملاويږى او اوچت كړې شى.[1]

**عفاص**: كاك، دَ بوتل سر، دَ څرمن وغيره نه جوړشوې تيلئى په كوم كښې چه سامان كيخودې شى.[2] **وكاء**: دَمشك وغيره دَتړلومزې، لوښې وغيره دكوم سرچه تړلې شوى وى. دَدې جمع اوكية راځى.[3]

## رجال الحديث

**اسماعيل**:-دا اسماعيل بن ابى اويس رحمه الله دې.[4]
**مالك**:- دا امام مالك بن انس رحمه الله دې.[5]
**ربيعة بن ابى عبدالرحمن**:-دا ربيعه بن ابى عبدالرحمن فروخ رحمه الله دې. دَ ربيعة الرائي په نوم سره مشهوردې.[6]

---

[1] النهاية:۶۰۹/۲ طلبة الطلبة للنسفى:۲۰۸.
[2] النهاية: ۲۲۷/۲.
[3] النهاية:۸۷۷/۲.
[4] كشف البارى:۱۱۳/۲.
[5] كشف البارى:۲۹۰/۱، ۸۰/۲.
[6] كشف البارى:۴۳۴/۳.

**يزيدمولى المنبعث**:-دا يزيدمولى المنبعث مدنى رحمه الله دى.[1]

**زيدبن خالد جهنى رضي الله عنه**:- دا ابوعبدالرحمن زيد بن خالد جهنى رضي الله عنه دى.[2]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت قوله: تردالماء سره دې يعني حضورپاك دَ يو ورك شوى اوښ دَ اخستلو نه منع فرمائيلې ځكه چه دَاولګې اوتندې د وجې نه دَهغه د مړكيدو انديښنه نشته ځكه چه هغه پخپله دَاوبودَ چينې نه اوبه څكى اوهغه څوك منع كولې نه شى اودادې دَپاره دې چه الله تعالى دا چينې او نهرونه دَټولو خلقو او ځناورو دَ فائدې دَپاره جوړكړى دى اودَې دَالله تعالى نه سوا بل هيڅوك مالك نشته.[3] دَ حديث مبارك متعلقه مسائلوباندې تفصيلى بحث كشف البارى كتاب العلمباب الغضب فى الموعظة والتعليم إذا رأى مايكره كښې تيرشوې دې.

## ۱۴-باب: بيعِ الحطبِ والكلاء

### دلرګې اود وښود بيع بيان

**دَترجمة الباب مقصد**:- دا باب دَ لرګى او وښودَ خرڅ په بيان كښې دې اودَامام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه دَدې دواړو خرڅول جائزدى كه يوسړى دَدې احراز كړې وى او په خپل تحويل كښې ئى اخستې وى نوهغه دَدې مالك شو اوس هغه دا خرڅولې شى.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله دَعلامه ابن بطال رحمه الله قول نقل كړې دې چه مباح لرګى او واښه راغونډول دَمتفق عليها مسائلونه دې او په دې كښې دَچاهم اختلاف نشته ترڅو چه هغه لرګى او واښه څوك په خپل مملوكه زمكه كښې اولګوى نوبيادَدې دَهريودَپاره اباحت مرتفع كيږى.[5] خو مونږ ته دَ شارح ابن بطال رحمه الله په متداوله نسخوكښې دَمتفق عليه الفاظ نه دى ملاؤشوى.[6]

**يوسوال اودَهغې جواب**:-دلته يوسوال داپيداكيږى چه امام بخارى رحمه الله دا باب په ابواب الشرب كښې ولې ذكر كړو نودَدې دوه جوابات وركړې شوى دى: ① په اصل كښې درې څيزونه داسې دى چه دَ حقوق عامه نه شميرلې شوى دى حطب كلاء اوماء هرسړى ته ددې نه فائده حاصليږى دَدې دَپاره چه كوم ځائى امام بخارى رحمه الله دَاوبوذكر كړې دې هلته ئى دَ دې دواړو څيزونوهم ذكر كړې دې. چونكه امام بخارى رحمه الله دې نه وړاندې دا خودلى راروان دې چه صاحب الحوض اودغه شان صاحب القرية أحق بمائه چه داخلق دَخپلو اوبوډير حقداردى

[1] كشف البارى:۵۴۳/۳.

[2] كشف البارى:۵۴٤/۳.

[3] إرشاد السارى:۳۶۵/۵عمدة القارى:۳۰٤/۱۲.

[4] عمده القارى:۳۰۵/۱۲ فتح البارى:۶۰/۵.

[5] المصدرالسابق.

[6] شرح ابن بطال:٤۱۸/۶ طبع: دارالكتب العلمية.

نو اوس ددې نه پس ضمناً د کلاء او حطب تذکره هم او فرمائیله که څوك سرې لرګى راغونډوى یا وابنه راجمع کوى نو هغه د دې مالك دې. (١)

② او دویم جواب دادې چه امام بخارى رحمه الله په اصل کښې داخودل غوارى چه سرې کله د احتطاب او احتشاش د وجې نه مالك جوړېږى نو هغه ته په دې کښې د مالکانه تصرف کولو اختیار حاصلیږى. نو د احیاء موات د وجې نه خو په طریق اولی به هغه د زمکې مالك شى نولکه چه دې نه هغه د احیاء موات مسئله ثابتوى. (٢)

[حديث ٢٢٤٤] (٣) حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ -رضي الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «لأَنْ يَأْخُذَ أَحَدُكُمْ أَحْبُلاً، فَيَأْخُذَ حُزْمَةً مِنْ حَطَبٍ فَيَبِيعَ، فَيَكُفَّ اللَّهُ بِهِ وَجْهَهُ، خَيْرٌ مِنْ أَنْ يَسْأَلَ النَّاسَ أُعْطِيَ أَمْ مُنِعَ». [ر: ١٤٠٢]

**ترجمه**:- د حضرت زبير بن عوام رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلې دې که په تاسو کښې څوك رسئى واخلى او د لرګو ګيډې راوړى خرڅ ئى کړى او الله سبحانه وتعالى د هغې (د ثمن په ذريعه) د هغه عزت بچ کړى نو دا د هغې نه بهتر ده چه د خلقو نه سوال او کړى او بيا هغه ته ورکړې شى يا منع کړې شى.

**حل اللغات**: أحبل: دا د حبل جمع ده رسئى د ترلو څه څيز، د دې جمع حبال حبول احبال هم راځى. (٤)

## رجال الحديث

**معلى بن أسد**:- دا ابوالهيثم معلى بن اسد العمى البصرى رحمه الله دې. (٥)

**وهيب**:- دا وهيب بن خالد بن عجلان الباهلي رحمه الله دې. (٦)

**هشام**:- دا هشام بن عروة بن زبير رحمه الله دې. (٧)

**عن أبيه**:- دا عروة بن زبير بن العوام رحمه الله دې. (٨)

---

(١) عمدة القارى:٣٠٥/١٢ بتفصيل.

(٢) فتح البارى:٦٠/٥ بتفصيل.

(٣) أخرجه البخارى رحمه الله تعالى أيضًا في الزكاة باب الاستعفاف عن المسئلة رقم:١٤٧١ وفى البيوع باب كسب الرجل وعمله بيده رقم:٢٠٧٥ وقد تفردبه الامام البخارى رحمه الله تعالى وانظر جامع الاصول: ١٤٦/١٠ رقم:٧٦٢٦.

(٤) النهاية:٣٢٥/١، ٣٢٦.

(٥) كشف البارى كتاب الحيض باب المرأة تحيض بعد الافاضة.

(٦) كشف البارى:١١٨/٢.

(٧) كشف البارى:٤٣٢/٢، ١٢٩/١.

(٨) كشف البارى:٢٩١/١.

**زبیربن العوام**:- دا مشهورصحابی حضرت زبیر بن العوام بن خویلدبن اسدبن عبدالعزی بن قصی بن کلاب ابوعبدالله القرشی الاسدی رضي الله عنه دي. [1]

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: فیاخذ حزمة من حطب فیبیع سره واضح دې. [2]

[حدیث ۲۲۴۵] (۳) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لأَنْ يَحْتَطِبَ أَحَدُكُمْ حُزْمَةً عَلَى ظَهْرِهِ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَسْأَلَ أَحَدًا فَيُعْطِيَهُ أَوْ يَمْنَعَهُ». [ر: ۱۴۰۱]

**ترجمه**:- حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائیلی دی که په تاسو کښې څوک په خپله شاباندې د لرګو ګیډې راوړی راشی نو دا دهغې نه بهتر دی چه دچانه سوال اوکړی بیا هغه ده ته ورکړی یا ورنه کړی.

## رجال الحدیث

**یحمیی بن بکیر**:-دا یحیی بن عبدالله بن بکیرمخزومی مصری رحمه الله دې. [4]

**لیث**:- دا امام لیث بن سعد رحمه الله دی. [5]

**عقیل**:- داعقیل بن خالد بن عقیل رحمه الله دی. [6]

**ابن شهاب**:-دا محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب الزهری رحمه الله دې. [7]

**ابی عبیدمولی عبدالرحمن بن عوف** رضي الله عنه:- دا سعدبن عبید ابوعبیدمولی عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې اوهغوی ته مولی ابن ازهرهم وئیلې شی. [8]

---

[1] کشف الباری: ۱۶۹/۴.

[2] کشف الباری: ۳۰۵/۱۲.

[3] أخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی الزکاة باب الاستعفاف عن المسالة رقم: ۱۴۷۰ وفی باب قول الله عزوجل: ﴿لَا يَسْئَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾ رقم: ۱۴۸۰ وفی البیوع باب کسب الرجل وعمله بیده رقم: ۲۰۷۴ ومسلم رحمه الله تعالی فی الزکاة باب کراهیة المسالة للناس رقم: ۲۴۰۰ والترمذی رحمه الله تعالی فی الزکوة باب ماجاء فی النهی عن المسالة رقم: ۶۸۰ والنسائی رحمه الله تعالی فی الزکاة باب الاستعفاف عن المسئلة رقم: ۲۵۹۰.

[4] کشف الباری: ۳۲۳/۱.

[5] کشف الباری: ۳۲۴/۱.

[6] کشف الباری: ۳۲۵/۱، ۴۵۵/۳.

[7] کشف الباری: ۳۲۶/۱.

[8] کشف الباری کتاب البیوع باب کسب الرجل وعمله بیده.

**دحدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت:-** دحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت دحدیث سابق په شان دي

[حدیث ۲۲۴۶](۱) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ أَبِيهِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ - رضی الله عنهم - أَنَّهُ قَالَ أَصَبْتُ شَارِفًا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي مَغْنَمٍ يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ وَأَعْطَانِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - شَارِفًا أُخْرَى، فَأَنَخْتُهُمَا يَوْمًا عِنْدَ بَابِ رَجُلٍ مِنَ الأَنْصَارِ، وَأَنَا أُرِيدُ أَنْ أَحْمِلَ عَلَيْهِمَا إِذْخِرًا لأَبِيعَهُ، وَمَعِي صَائِغٌ مِنْ بَنِي قَيْنُقَاعَ فَأَسْتَعِينَ بِهِ عَلَى وَلِيمَةِ فَاطِمَةَ، وَحَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَشْرَبُ فِي ذَلِكَ الْبَيْتِ مَعَهُ قَيْنَةٌ، فَقَالَتْ أَلاَ يَا حَمْزَ لِلشُّرُفِ النِّوَاءِ. فَثَارَ إِلَيْهِمَا حَمْزَةُ بِالسَّيْفِ، فَجَبَّ أَسْنِمَتَهُمَا، وَبَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا، ثُمَّ أَخَذَ مِنْ أَكْبَادِهِمَا. قُلْتُ لاِبْنِ شِهَابٍ وَمِنَ السَّنَامِ قَالَ قَدْ جَبَّ أَسْنِمَتَهُمَا فَذَهَبَ بِهَا. قَالَ ابْنُ شِهَابٍ قَالَ عَلِيٌّ - رضى الله عنه - فَنَظَرْتُ إِلَى مَنْظَرٍ أَفْظَعَنِي فَأَتَيْتُ نَبِيَّ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَعِنْدَهُ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ فَأَخْبَرْتُهُ الْخَبَرَ فَخَرَجَ وَمَعَهُ زَيْدٌ، فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ، فَدَخَلَ عَلَى حَمْزَةَ فَتَغَيَّظَ عَلَيْهِ فَرَفَعَ حَمْزَةُ بَصَرَهُ وَقَالَ هَلْ أَنْتُمْ إِلاَّ عَبِيدٌ لآبَائِي فَرَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يُقَهْقِرُ حَتَّى خَرَجَ عَنْهُمْ، وَذَلِكَ قَبْلَ تَحْرِيمِ الْخَمْرِ. [ر: ۱۹۸۳]

**ترجمه:-** حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه فرمائی چه د غزوه بدر په مال غنیمت کښې یوه ځوانه اوښه مارسول الله ﷺ سره اولیدله او یوه بله اوښه رسول الله ﷺ ماته (خمس د مال نه) راکړه. یوورځ ما دا دواړه اوښې د یوانصاری سړی په دروازه کې کینولې او ما اراده کوله چه په دې دواړو اوښوباندې اذخربارکړم او راوړم چه خرڅ ئی کړم اوما سره د قنقاع یو زرګرهم وو اود هغه (اذخرپه پیسو) سره دحضرت فاطمه رضی الله عنها په ولیمه کښې امدادواخلم اوحضرت حمزه رضی الله عنه بن عبدالمطلب (هغه وخت) هم هغه کورکښې شراب څکل اوحضرت حمزه رضی الله عنه سره یوه سندر غاړې هم وه. هغې په خپله سندره کښې دامصرع اووئیله پاسه اې حمزه د چاقوچاقو اوښو طرف ته دې اوریدوسره حضرت حمزه رضی الله عنه توره واخسته اوحمله ئی اوکړه اودهغه اوښوقبونه ئی پرې کړل اودهغوی خیټې ئی اوشلولې اودهغوی اینې ئی راوویستې (ابن جریج رحمه الله وائی چه، ما ابن شهاب رحمه الله ته اووئیل اوقبونه؟ نوهغه وئیل چه قبونه ئی هم پرې کړل یوړل. ابن شهاب رحمه الله وائی چه حضرت علی رضی الله عنه فرمائی ماداسې نظاره اولیدله چه هغې سره اوویریدم

---

(۱) أخرجه البخاری رحمه الله تعالی أیضًا فی البیوع باب ماقیل فی الصواغ:۲۰۸۹ وفی الجهاد باب فرض الخمس رقم:۳۰۹۱ وفی المغازی باب رقم:۴۰۰۳ وفی اللباس باب الادویة رقم:۵۷۹۳ ومسلم رحمه الله تعالیٰ فی الاشربة باب تحریم الخمر الخ رقم:۵۱۲۷ وأبوداؤد رحمه الله تعالی فی الخراج باب بیان مواضع قسم الخمر رقم: ۱۹۸۶ وانظر فی جامع الاصول، الفصل الثالث فی الخمر وتحریمها، ومن أی شئ هی؟ رقم:۳۱٤٤.

اودنبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم اوحضورپاك سره حضرت زیدبن حارثه رضی الله عنه هم وو ما هغوی ته ټوله قصه واؤروله نو حضورپاك د هغه خانی نه لاړواوحضورپاك سره حضرت زید بن حارثه رضی الله عنه هم وو اوزه هم لاړم. رسول الله ﷺ حضرت حمزه رضی الله عنه اورسیدو او په هغه باندې غصه شو په دې باندې حضرت حمزه رضی الله عنه (چه نشه کښې وو) سترګې اوچتې کړې او وني ونیل ته خوزما د پلارنیکه غلام ئی (دې کتوسره) حضورپاك اولټه خپې (یعنی رجعت قهقری) واپس شو اودا واقعه د شرابو د حراموالی نه وړاندې ده.

**حل لغات: شرفا:** د زیات عمر پخه اوښه د دې جمع شُرُف وشُرَّف وشُرُوف راخی.[1]

**اذخر:** شنه واښه د یوقسم خوشبوداروابنه لکه چه فارسی کښې کوم ته وائی جمع أذاخر راخی.[2] **قینة:** وینځه، سندرغاړې ګمنزه کونکې د دې جمع قیان وقینات راخی.[3]

**یقهقر:** قَهْقَرَة د تَقَهْقَرَ روستنئ خپې واپس کول، وکذا یقال رجع القهقری هغه واپس لاړو.[4]

## رجال الحدیث

**ابراهیم بن موسیٰ:**- دا ابراهیم بن موسیٰ بن یزدی الرازی الفراء رحمه الله دې.[5]

**هشام:**- دا ابوعبدالرحمن بن هشام بن یوسف الصنعانی رحمه الله دې.[6]

**ابن جریج:**- دا ابن جریج عبدالملك بن عبدالعزیز بن جریج رحمه الله دې.[7]

**ابن شهاب:**- دامحمدبن مسلم بن غبیدالله بن شهاب الزهری رحمه الله دې.[8]

**علی بنحسین رحمه الله:**-دا علی بن حسین بن علی بن ابی طالب الهاشمی زین العابدین رحمه الله دې.[9]

**حسین بن علی رضی الله عنهما:**- داحسین بن علی بن ابی طالب رضی الله عنهما دې.[10]

**علی بن ابی طالب رضی الله عنه:**- د دوی تذکره هم تیره شوې ده.[11]

---

[1]) النهایة:۸۵۸/۱.

[2]) النهایة ۴۶/۱ طلبة البطلة للنسفی رحمه الله تعالی:۱۸۱/۱.

[3]) النهایة:۵۱۱/۲.

[4]) النهایة:۵۰۶/۲.

[5]) کشف الباری کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجهاوترجیله.

[6]) کشف الباری کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله.

[7]) کشف الباری کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله.

[8]) کشف الباری:۳۲۶/۱.

[9]) کشف الباری کتاب الغسل باب الغسل بالصاع ونحوه.

[10]) کشف الباری کتاب التهجد باب تحریض صلی الله تعالی علیه وسلم علی قیام اللیل.

[11]) کشف الباری:۱۵۰/۴.

**دحديث ترجمة الباب سره مطابقت**:- دحديث ترجمة الباب سره مطابقت قوله: وأنا أريد أن أحمل عليهما إذخر لابيعه سره واضح دې چه ترجمة الباب هم د لرګی اووښو د بيع د جواز باره کښې دې اوحديث کښې هم صراحت دې.(١)

**قوله: ألا يا حمز للشرف النواء**:- د شعردې مصرع سره نور هم مصرعې دی ليکن په بخاری شريف کښې صرف دغه يوه مذکوره ده. شراح بخاری ددې قصيدې يوڅو نور اشعار ذکرکړې دی:

الايا حمز للشرف النواء وهن معقلات بالفناء

**ترجمه**:- اې حمزه پاسه دچاقو چاقو اوښوطرف ته منډه کړه کومې چه تړلې دی دکورنه بهرميدان کښې.

ضع السكين فى اللباب منها وضجهن حمزة بالدماء

**ترجمه**:- دهغوی په مرئی چاړه کيږده اواې حمزه اوهغه په وينوکښې لړپړ کړه.

وعجل من أطائبها لشرب قديداً من طبخ أو شواء

**ترجمه**:- اود هغوی بهترين غوښه د شرابوڅکونکودپاره زر راوړه چه بوټئی پخې شوې وی اوکه وريتې شوی وی.(٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه معجم الشعراء کښې مرزبانی ليکلی دی چه دا اشعار عبدالله بن السائب بن ابی السائب المخزومی دی. بيا حافظ رحمه الله دا اشکال اوکړو چه په روايت کښې تصريح ده چه هغه وخت کوم خلق شراب څکونکی وو هغه انصاروو او عبدالله بن السائب انصاری نه دې. بيا حافظ ابن حجر رحمه الله دا جواب ورکړې دې چه ممکن ده په ټولو حاضرينو باندې د انصار اطلاق بالمعنى الاعم يعنى دتغليب په توګه کړې شوې وی. (٣)ددې نه پس فرمائی چاچه دا شعر منظوم کړې او په سندرغاړې وينځې باندې ئې اوئيل ددې مقصود داوو چه په حضرت حمزه رضي الله عنه کښې د اوښو پرې کولو جوش راپيداشی اوټول حاضرين دهغې غوښې اوخوری څکه چه دحضرت حمزه رضي الله عنه سخاوت داول نه مشهور وو هغه ته په شعرونوکښې خطاب کولوسره هغې طرف ته متوجه کړې شو چه اوښې پرې کړه.(٤)

**قوله: وذلك قبل تحريم الخمر**:- يعنى دا ټوله قصه دهغه وخت ده کوم وخت چه شراب حرام شوی نه وو څکه چه حضرت حمزه رضي الله عنه په احد کښې شهيد شو او غزوه احد دهجرت په دريم کال نصف شوال کښې پيښه شوې اود شرابو حرمت ددې نه پس نازل شوې. په دې وجه

---

(١) الكوثر الجارى:٧١/٥ عمدة القارى:٣٠٦/١٢ إرشادالسارى:٣٦٩/٥.

(٢) فتح البارى:٢٣٦/٧عمدة القارى:٣٠٧/١٢ إرشادالسارى:٣٦٨/٥ انعام البارى فى شرح أشعار البخارى:٤٨.

(٣) فتح البارى:٢٤٦/٧ انعام البارى فى شرح أشعار البخارى:٤٩.

(٤) المصدر السابق.

حضورپاك هغه معذور اوګرځولو اومواخذه ئې اونه فرمائیله.[1] لهذا په دې باره کښې کوم سوال او جواب پیداکیږی دهغې ټولو هم دغه جواب دې. چه هغه وخت دغه احکام نه وو نازل شوی دَ سندرغاړې نه ګانه بجانا اوریدل هم په دغه ذیل کښې دی. کله چه روستو احکامات نازل شو نودَ پردې حکم هم نازل شو اوبنځوسره ګډوډوالې او ګانې بجانې حرام اوګرځیدې.

## السلم: (Predecessor, Anticipation)

سَلَم:- بیع آجِل بعاجل یعنی دَ داسې څیز بیع دکوم قیمت چه فوری اداکړې شی اوهغه څیز (مسلم فیه) دمخصوص صفت سره دَ چا په ذمه واجب الادا وی. دَدې ارکان ایجاب اوقبول دی. خریدار ته رب السلم (Hanower) خرڅونکی ته مسلم الیه (Predecessor) اوقیمت ته رأس المال (Capital) اوسامان ته مسلم فیه (Salam Asset) وئیلی شی.

دَ سلم متعلق شرطونه هم درې دی: ① نفس معامله سره متعلق دې. ② کوم چه قیمت (رأس المال) سره متعلق وی. ③ سامان (مسلم فیه) سره متعلق وی. مسلم فیه به په هغه څیزونو کښې صحیح وی دَ کوم دَمقدار او صفات تعیین چه کیدې شی دې دَپاره چه دَادائیګئی په وخت دَ سامان په بابت په فریقینو کښې دَ جګړې اندیښنه نه وی په موجوده زمانه کښې دَ سلم یواستعمال امپورټ اوایکسپورټ دَسائټ بل ډسکاؤنټینګ متبادل په توګه دې.

## کتاب الشفعه (Pre-emption Priorty)

:- یو اخستې شوې زمکه یا عمارت دَ حق شفعه په ذریعه هم په هغه قیمت جبراً حاصلولونوم دې. حق شفعه به په هغه څیزونو کښې حاصلیږی چه دَ جائیدادغیرمنقوله دَ قبیل نه وی لکه زمکه اومکان وغیره.

حق شفعه بالترتیب په درې شانه حاصلیدې شی: ① چه په نفس مبیع کښې شریك وی. ② په حق مبیع کښې شریك وی. ③ چه ګاونډی وی.

## کتاب الاجاره (Lease)

:- اجاره یعنی په کرایه باندې ورکول هغه معامله ته وئیلې شی په کوم کښې چه یوفریق یعنی اجیر (Lessor) دَ طرف نه دَمنفعت پیش کش وی او دویم مستاجر (Lesee) طرف نه معاوضه او اجرت وی. دَ اجارې دَ صحیح کیدوشرط دادې چه دَ یو فریق دَطرف نه منفعت او استفاده نوعیت اودَ دویم فریق دَطرف نه دَ اجرت اومعاوضه مقدار متعیین شی. په موجوده زمانه کښې دَ اجارې یواستعمال دَ لیزنګ دَ متبادل په توګه دې

## کتاب الحوالات (Transference of a debt to third Assignment)

:- حواله دَ یوسړی ذمه دَ بل سړی په ذمه کښې دین منتقل کولونوم دې دَدې ارکان ایجاب وقبول دې.یعنی مدیون (Transferer) دَخپل طرف نه ایجاب کوی چه قرض ورکونکې دَفلانکی سړی نه خپل واجبات وصول کړی اوصاحب دین اوهغه سړې څوك چه دَورکولو ذمه وارجوړکړې شوې دې دواړه داقبول کړی. مقروض ته فقهاء محیل اوصاحب دین ته محال یامحتال وائی اوکوم سړې

---

[1]) المصدرالسابق.

چه دَ اداکولوذمه واری واخلی هغه ته محال علیه یا محتال علیه اوچاچه دَ دین دَ ادا کولو ذمه واری قبوله کړې هغه ته به محتال ونیلې شی. دَحواله دَشرائطونه دی چه محیل محال اومحال علیه په دې رضا وی.
په موجوده زمانه کښې صك یعنی (Cheque) په توګه استعمالیږی. دغه شان السکات الصباحیة یعنی (Traveller's Cheque) دَ ټریولر چیك په توګه اَلکمبیاله یعنی بل آف ایکسچینج په توګه هم مستعمل دې.

**کتاب الکفاله (Guarantee):** لغةً یوځائی کولوته وائی او دَ شریعت په اصطلاح کښې دَ یوذمه دَ بل ذمه سره په مطالبه کښې ملاوولوته وائی. فقهاء کفالت کونکی ته کفیل (Guarantor) اودَ چادَ طرف نه چه کفالت اوکړې شی هغه ته مکفول عنه او دَ کوم څیزکفالت چه اوکړې شی هغه ته مکفول به او دَ چادَپاره چه کفالت اوکړې شی هغه ته مکفول له وائی. په موجوده زمانه کښې Guarantees یعنی دَ ضمانت په توګه استعمالیږی.

**وکالة (Agency Aggrement):** دَوکالة لغوی معنی ده حواله کول اودَ شریعت په اصطلاح کښې یوبل سړې په جائز اومعلوم تصرف کښې په خپل ځائی اودرولوته وائی. دَدې دوه قسمونه دی: ① وکالت خاص (Restricted Agency) یعنی دَ معین تصرف دَپاره بل سړې وکیل جوړول. ② وکالت مطلقه (Un-resticted Agency) یعنی چه یوسړې بل ته اووائی چه په هرڅیز کښې ته زمادَ طرف نه وکیل ئی.

**مزارعة (Share-Cropping):** لغةً زمینداری کول اواصطلاحًا دَ پیداواردَځه حصې په عوض دَتقسیم معامله کول. په دې کښې یوعاقد رب الارض (Honour of Land) دې او دویم عاقد، عامل (Former) دې.

### علواسناد اوثلاثیات مقام اومرتبه اودَ صحیح بخاری فوقیت

دَعلم صحیح بنیادی منبع دوه بنیادی څیزونه دی: اول قرآن کریم چه دَالله تعالی دَ طرف نه نازل شوې اودَ الله تعالی په فضل ترننه پورې په دې کښې دَ یوحرف کمې بیشې نه دې شوې اونه به دَقیامته پورې اوشی. ځکه چه دَدې دَ حفاظت ذمه قادرمطلق اخستې ده اودویم حدیث شریف دې. دَالله تعالی په فضل اوکرم سره امت مسلمه دَ خپل محبوب آقا ﷺ قول فعل اوحدیث اوسنت داسې حفاظت کړې دې دکوم چه په دنیاکښې هیڅ نظیراومثال موجودنه دې. اودَ حدیث اوسنت دَ حفاظت په ذرائع کښې دَ ټولو نه مضبوط ذریعه علم اسناددې. اسناد دَ دې امت دَهغه خصوصیات نه دې په کوم سره چه الله تعالی دې امت ته شرف ورعطاکړې دې. داخصوصیات الله تعالی وړاندینو امتونوکښې چاته هم نه ورکړې چه دَخپل نبی ځه خبره متصل سندسره نقل کړی.
دَ احادیث دَصحت او سقم مدار په سندباندې دې که سندصحیح دې نوحدیث هم صحیح دې. ځکه محدثینوحضراتو دې طرف ته ډیره زیاته توجو ورکړې ده او په ډیر زیات اهتمام سره ئی دامحفوظ ساتلې اودَدې اهمیت ئی هم په ډیر تاکیدسره بیان کړې.

چنانچه دمشهور محدث عبدالله ابن مبارک رحمه الله قول امام مسلم رحمه الله په خپل مشهورکتاب الجامع الصحیح په مقدمه کښې نقل کړې دې. **الاسناد من الدین لولا الاسناد لقال من شاء ماشاء.**[1] ترجمه: اسناد دَ دین حصه ده که چرې اسناد ضروری اونه ګرځولې شی نوهریوسړې هره یوه خبره دَ دین په نوم باندې وئیلې شی. اوهم دَدوی نه دا هم نقل دی **ومثل الذی یطلب أمر دینه بلا إسناد کمثل الذی یرتقی السطح بلاسطح.**[2] ترجمه: دَهغه سړی مثال چه دَدین یوه خبره بغیردَ سندنه اخستل غواړی دَهغه سړی په شان دې چه بغیرپاؤړې چت ته ختل غواړی (لکه څنګه چه بغیردَ پاؤړې سړې چت ته نه شی ختلې دغه شان بغیردَ اسنادنه خبره کونکی رسائی صحیح دین ته نه شی رسیدې) اومشهورمحدث سفیان ثوری رحمه الله دَ اسناد دَ اهمیت باره کښې فرمائی: **الاسناد سلاح لمؤمن فان لم یکن معه سلاح فبای شیئ یقاتل.**[3] ترجمه: اسناددَ مؤمن وسله ده که چرې هغه سره وسله نه وی نوهغه به په څه څیزسره جنګیږی. (لکه دَ اسناد نه بغیرحدیث بیانول هم داسې دی لکه بغیردَ وسله جنګ کول)

چونکه دَاحادیث دَصحت او سقم دارومدار په سندباندې دې نو په سند کښې چه څومره کمې واسطې وی هم هغه هومره به هغه حدیث دَ خلل او خطا واقع کیدونه زیات محفوظ وی. اودَ کمو واسطووالا سند به دَهغه سند په مقابله کښې په کوم کښې چه واسطې زیاتې وی سندعالی یادیږی. چونکه په دې کښې دَ خلل اوخطا واقع کیدو احتمال کم وی ددې دَپاره دَدې په فن حدیث کښې ډیرزیات اهمیت دی.

دَ مشکوة شارح ملاعلی قاری الحنفی رحمه الله المتوفی ۱۰۱۴هجری دَسندعالی اهمیت بیانولوسره لیکی: **اعلم أن أصل الاسناد خصیصة فاضلة من خصائص هذه الامة وسنة بالغة من السنن المؤکدة، بل من فروض الکفایة.... ثم طلب العلم أمر مطلوب، وشان مرغوب.**[4] یعنی ته پوهه شه چه اصل اسناد دَدې امت خصائص نه یولوئی خصوصیت دې اودَ سنن مؤکده نه دې بلکه دَ فرض کفایه نه دې..... اوبیاپه دې کښې سندعالی طلب کول یومطلوب امردې اودَدې دَ حاصلولوکوشش کول امرمرغوب دې.

امام احمدبن حنبل رحمه الله المتوفی ۲۴۱هجری فرمائی: **طلب الاسناد العالی سنة عمن سلف.**[5] یعنی طلب علو اسناد دَ سلف صالحین سنت دی. اودَ جرح او تعدیل امام یحیی بن معین رحمه الله نه دَهغوی دَ ژوند په آخری ورځوکښې تپوس اوکړې شو: **ماتشتهی؟ قال: بیت خالٍ، وإسناد عالٍ.**[6]

---

[1] مقدمه صحیح مسلم:۱۵/۱.
[2] الاجوبة الفاضلة للاسنله العشرة الکاملة ص:۲۱ – ۲۲.
[3] الاجوبة الفاضلة للاسنله العشرة الکاملة ص:۲۳.
[4] شرح شرح نخبة الفکر، ملاعلی قاری ص: ۶۱۷ قدیمی.
[5] ایضا.
[6] ایضا.

يعني ستاخواهش او غوښتنه څه ده؟ وئی فرمائیل چه کورخالی وی خو چه سند عالی وی.
او احمد بن اسلم رحمه الله فرمائی: قرب الاسناد قرب إلى الله عزوجل، فان القرب من الرسول بلاشك قرب إلى الله.[1] یعنی قرب اسناد قرب باری تعالی دې. ځکه چه دَ رسول قربت حاصلول دَ الله تعالی قربت حاصلول دی او دَ رسول ﷺ قربت دَ علوسند په ذریعه سره حاصلیږی.
دَ علو اسناد اهمیت دَ حدیث نبوی نه هم ثابت دې. مشهور حدیث دې په کوم کښې چه ضمام ابن ثعلبه رضی الله عنه واقعه ده چه په صحیح بخاری کښې هم موجود دې او طویل حدیث دې خو دلته صرف دَ علوسند اهمیت خودل مقصود دی. هغوی له دَ رسول الله ﷺ قاصد راغلو دَ دین دَ اهم امورو باره کښې ئی ورته اوخودل حالانکه دا قاصد صحابی رسول ﷺ وو او دَ صحابی په ثقه کیدو کښې او رښتونی کیدو کښې هیڅ شك شبه نه ی خو ضمام ابن ثعلبه رضی الله عنه دَ رسول الله ﷺ دَ قاصد خبر حق اوسچ منلو باوجود صرف په دغه سماعت باندې اکتفاء اونه کړه بلکه پخپله دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اونیغ په نیغه اوریدلو دَ پاره (لکه چه په علو اسناد کښې کیږی) حاضر شو.
دا حدیث امام حاکم رحمه الله په خپل سند سره معرفت علوم حدیث کښې هم نقل کړې دې او دَ نقل کولو نه پس په آخره کښې لیکی: ولوكان طلب العلوفى الاسناد غيرمستحب لانكر عليه سؤاله عما أخبره رسوله عنه لامره بالاقتصار على ما أخبره الرسول عنه.[2] یعنی که چرې طلب دَ علو اسناد مستحب نه وې نو رسول الله ﷺ به په دې باندې انکار فرمائیلو او هم دَ قاصد په خبر باندې به ئی دَ اکتفاء کولو حکم ورکولو (حالانکه داسې نه دی شوی) نو معلومه شوه چه طلب علو اسناد مستحب امر دې.
حافظ سخاوی رحمه الله فرمائی فتح المغیث شرح ألفیة الحدیث کښې دَ یوڅو نورو احادیث نبویه سره دَ علو سند په اهمیت باندې استدلال کړې دې. موصوف لیکی: قد استدل له بقول النبى صلى الله تعالى عليه وسلم لتميم الدارى رضى الله عنه لما رواه فى بعض طرق حديثه فى الجسامة يا تميم! حدث الناس بما حدثنى، وبقوله أيضا خير الناس قرنى...... الحديث، فان العلو يقربه من القرون الفاضلة....[3]
چونکه دا واقعه تمیم دری رضی الله عنه په خپلو سترګو لیدلې وه او نبی کریم ﷺ پخپله دَ دې مشاهده نه وه کړې په دې وجه به دلته دَ علوسند صورت داسې وی چه خلق دَ تمیم داری رضی الله عنه نه واورې دَ دې نه علاوه ئی هم ډیر احادیث ذکر کړی دی دکوم تفصیل چه فتح المغیث کښې کتلې شی.
بل دَ نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم دَ طرز عمل نه هم معلومیږی چه دَ علو اسناد ډیر لوئی اهمیت دې.
دَ حضرت جابر رضی الله عنه یوه مشهوره واقعه ده کومه چه دَ حدیث په مختلف کتابونو کښې موجود ده

---

[1] فتح المغیث شرح ألفية الحديث للسخاوى رحمه الله ٨٧/٣. بحث العالى والنازل.
[2] معرفة علوم الحديث للحاكم ص:٥. سيدمعظم حسين رحمه الله. دارالكتب العلمية بيروت.
[3] فتح المغيث ألفية الحديث:٨/٣ دارالكتب العلمية بيروت.

او صحیح بخاری کښې هم تعلیقًا ذکر ده چه حضرت جابر رضی الله عنه فرمائي: بلغني حديث عن رسول الله صلى الله تعالى عليه لم أسمعه، فابتعت بعيرا، فشددت عليه رحلي، وسرت شهرا حتى قدمت الشام، فأتيت عبدالله بن أنيس (الحديث) يعني حضرت جابر رضی الله عنه په خپل سند سره يو واسطه کمولو د پاره يوه مياشت مسلسل سفراوکړو.

دا واقعه نقل کولونه پس علامه الشيخ طاهر الجزائری الدمشقی رحمه الله المتوفی ۱۲۳۸هجری توجيه النظر کښې ليکی چه: دا واقعه د علو اسناد د پاره بنيادی حيثيت لري. [۱]

دغه شان حضرت ابوايوب انصاری رضی الله عنه هم د علو حديث د پاره سفر کړې دې او په دې باندې د نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم واقعات حاکم ابوعبدالله نيشاپوری رحمه الله کتاب معرفة الحديث کښې کتلې شی. [۲]

د کلام خلاصه دا ده چه د سند عالی ډيرې زياتې فائدې دی چه د حديث او علوم حديث شوق لرونکی د پاره د نشاط اوافتخار محمود سبب دې. د ټولونه اهم فائده داده چه هم د دې په وجه زمونږ اورسول الله صلى الله عليه وسلم په مينځ کښې واسطې کميږی اود محب اومحبوب په مينځ کښې چه څومره فاصلې کمې وی نو محب صادق ته هم دومره خوشی محسوس کيږی. يوه بله اهمه فائده داده چه د سند عالی د وجې په اکابر او اصاغر کښې فرق واضح کيږی د چا سند چه څومره عالی وی هغه ته په هم هغه هومره مقام ورکولې شی او هم په دې اعتبارسره هغوی د اکابر او اصاغر په طبقات کښې شميرلې شی. بيا د علو اسناد څلور قسمونه دی او د هريو تعريف او اقسام اوګورئی:

① **علو مطلق:- القرب من رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم من حيث العدد بإسناد نظيف غير ضعيف.** [۳]

ترجمه: علو مطلق د عدد رواة په لحاظ سره صحيح سند سره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته نيزدې کيدل دی اوچه دا قربت په ضعيف سند سره نه وی. دا ړومبې قسم د ټولو نه زيات د عظمت او لوئی شان والا دې. چنانچه حافظ احمد بن علی بن محمد العسقلانی رحمه الله المتوفی ۸۵۲هجری فرمائي:

**فإن اتفق أن يكون سنده صحيحًا كان الغاية القصوى.** [۴]

② **علو نسبي:- وهو ما يقل العدد فيه إلى ذلك الامام ولو كان لعدد من ذلك الامام إلى منتهاه كثيرا.** [۵]

ترجمه: که چرته داسې امام حديث پورې (په کوم کښې چه فقاهت عدالت ضبط وغيره صفات مرجحه موجودوی لکه امام بخاری شعبه مالك وغيره رحمهم الله) د رواة حديث تعداد کم وی

---

[۱]) توجيه النظر إلى اصول الاثر:۲/۷۲۰۰ المطبوعات الاسلامي.

[۲]) معرفة علوم الحديث للحاكم ص:۷.

[۳]) شرح التبصرة والتذكرة للعراقي:۲/۶۱ ماهر ياسين الفحد، دارالكتب العلمية بيروت.

[۴]) نزهة النظر في توضيح نخبة الفكر ص:۱۱۲ الرحيم اكيدمی.

[۵]) نزهة النظر في توضيح نخبة الفكر ص:۱۱۴ الرحيم اكيدمی.

سره ددې چه دهغې نه پس رسول الله ﷺ پورې درواة تعداد زیات وی نودې ته علونسبی وئیلې شی.

**دعلونسبی دویم صورت:- القرب من کتاب من کتب الحدیث المعتمدة کالکتب السنة والمؤطاء ونحوذلك، حدیث رواه البخاری مثلاً فیتتانی أحد الرواة فیرویه باسناد إلی شیخ البخاری أو شیخ شیخه وهکذا، ویکون رجال الروای فی الحدیث أقل عدداً مما لو رواه من طرق البخاری.** (١)

**ترجمه:-** دحدیث معتمد کتابونو لکه کتب سته اوموطاء وغیرها نه دچاد سند په اعتبارسره قریب کیدل مثلاً یوسړې یوحدیث د امام بخاری رحمه الله نه یا دهغوی د شیخ الشیخ نه روایت کوی اویه دې طریق کښې دامام بخاری رحمه الله د طریق په نسبت د راویانوتعداد کم وی.

بیا دعلو نسبی څلورقسمونه دی: ① الموافقة ② الابدال ③ المساواة ④ المصافحة.

⑤ **لعوبوجه قدم وفاة الشیخ:-** ددې صورت دادې چه یوسړې د دوو شیوخ نه یوحدیث روایت کوی دهغې سندونو تعداد او رجال کښې برابر وی لیکن په دغه دواړو کښې د یوانتقال ړومبې کیږی نود اول مړکیدونکی شیخ سند د دویم شیخ د سندپه مقابله کښې عالی ګڼړلې شی. علامه نووی رحمه الله په خپل کتاب تقریب النواوی کښې لیکی: **فما أرویه عن ثلاثة عن البیهقی عن الحاکم أعلی مما أرویة عن ثلاثة عن أبی بکر بن خلف عن الحاکم لتقدم وفاة البیهقی عن ابن الخلف.**

ترجمه: -فرمائی چه هغه حدیث په کوم کښې چه زه په دریو واسطوسره امام بیهقی رحمه الله بیا امام حاکم رحمه الله نه روایت کوم نودا سندعالی دې دهغه نه کوم چه زه په دریو واسطوسره ابوبکر ابنخلف رحمه الله نه بیا دحاکم رحمه الله نه روایت کوم. ځکه چه دامام بیهقی رحمه الله انتقال د ابن خلف رحمه الله نه وړاندې شوې دې. (٢)

⑥ **علوبوجه قدیم الاستفادة:-** ددې صورت داوی چه یوسړی دیوشیخ نه یوحدیث اوریدلې وی دویم سړی دهغه نه پس هم دهغه شیخ نه هغه حدیث واؤریدو نود ړومبی سماع کونکی سړی سندبه عالی ګڼړلې شی. مثلاً دووکسانو د یوشیخ نه هم یوحدیث واؤریدو یوشپیته کاله وړاندې اوریدلې او بل څلویښت کاله وړاندې اوریدلې نودړومبی سړی سندبه د دویم سړی په مقابله کښې عالی ګڼړلې شی. لکه زمونږ حضرت صاحب کشف الباري استاذ المحدثین زید مجدهم تلامذه کښې داسې ډیرمثالونه موجود دی **فلله الحمدوالفضل ونسئل تعالی ان یحفظه من جمیع الشرور والفتن آمین.**

علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه ددې ثمره به هغه وخت ښکاره کیږی چه کله په شیخ باندې داختلاط زمانه راغلی وی په هغه صورت کښې به ړومبې سماع کونکی سړی حدیث اصح او

---

(١) الثلاثیات فی الحدیث النبوی ص:٢٧ دار الکتب العلمیة.

(٢) تذریب الراوی فی شرح تقریب النواوی:٢/٩٨قدیمی.

ارجح ګڼړلې شی.[1]

په علو سند کښې دَ طبقې اعتبار کیږی دَ تابعین په طبقه کښې وحدان دَ تبع تابعین په طبقه کښې ثنائیات یعنی په هره طبقه کښې کوم سند دکمو واسطووالا وی دَهغې طبقې سند به عالی شمیرلې شی. دغه شان په کتب سته کښې چه دَټولونه عالی سند دې هغه ثلاثیات دی او په دوی کښې دَټولو نه فائق امام بخاری رحمه الله دې خکه چه دَټولونه زیات ثلاثیات هم دَامام بخاری رحمه الله دی. په سنن ترمذی اوسنن ابن ماجه کښې هم دی خو په ترمذی کښې یو او سنن ابن ماجه کښې ټول پنځه دی. لیکن دَ امام بخاری رحمه الله ۲۲ ثلاثیات دی او په نورو ډیرو حیثیتونوسره اوپه دې اعتبار سره هم دَامام بخاری رحمه الله کتاب ته دَنورو کتابوپه مقابله کښې فوقیت حاصل دې.

حدیث ثلاثی هغه حدیث ته وائی په کوم کښې چه دَ راوی اوحضورپاک صلی الله علیه وسلم په مینځ کښې درې واسطې وی. چنانچه علامه محمدبن عبدالدائم البرماوی الشافعی رحمه الله المتوفی ۸۳۱هجری شرح ثلاثیات البخاری لیکی: **وهومایکون بین البخاری وبین النبی (علیه الصلوة والسلام) فیه ثلاثة.**[2]

او کشف الظنون کښې حاجی خلیفه رحمه الله لیکی: **ما اتصل إلی رسول الله من الحدیث بثلاثة رواة.**[3]

دَ کتب سته نه الجامع الصحیح المسلم کښې اوسنن ابی داؤد اوسنن النسائی کښې یو ثلاثی حدیث نشته. او په سنن الترمذی کښې یوثلاثی حدیث شته. حافظ ابن حجر العسقلانی رحمه الله تهذیب التهذیب کښې دَعمر بن شاکرالبصری په ترجمه کښې لیکی: روی له الترمذي حدیث واحداً، یاتي علی الناس زمان، الصابر فیه علی دینه کالقابض علی الجمر. وقال: غریب من هذا الوجه ولیس في جامع الترمذي حمدیث ثلاثي سواه.[4]

او په سنن ابن ماجه کښې پنځه ثلاثی حدیث دی. ډاکټراشرف بن عبدالرحیم، الثلاثیات فی الحدیث النبوی کښې لیکی: **سنن الامام ابن ماجة بها خمسة أحادیث ثلاثیة الاسناد کلهامن طریق جبارة بن المغلس عن کثیربن سلیم عن أنس رضی الله عنه.**[5]

او جامع الصحیح البخاری کښې ۲۲ ثلاثی احادیث دی. حافظ ابن حجر فتح الباری کښې اوعلامه عینی رحمه الله عمدة القاري کښې لیکی: **ویبلغ جمیعها أکثرمن عشرین حدیثًا.**[6]

اوشیخ الحدیث مولانازکریا رحمه الله په لامع الدراری اوحاجی خلیفه صاحب رحمه الله کشف الظنون کښې او محمدبن عبدالدائم البرماوی الشافعی رحمه الله شرح ثلاثیات البخاری کښې

---

[1]) تدریب الرواوی فی شرح تقریب النواوی:۹۹/۲قدیمی.
[2]) ثلاثیات مصطفی مخدوم ص: ۲۰ غیرمطبوعه.
[3]) ۵۳۲/۱.
[4]) ۳۸۵/۲۱ بشار عواد معروف، مؤسسة الرسالة.
[5]) ص:۱۱۷دارالکتب العلمیة بیروت.
[6]) فتح الباری:۲۰۲/۱ دارالفکر عمدة القاری:۲۲۱/۲ رشیدیه.

اوعبدالرحمن مبارك پوری رحمه الله په تحفة الحوذی کښې لیکی چه بخاری کښې ټول ۲۲ ثلاثی احادیث دی.(۱) په دې کښې ۱۷ احادیث دَ سلمة بن اکوع رضی الله عنه نه څلوراحادیث دَحضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه اویوحدیث دَ حضرت عبدالله بن بصر رضی الله عنه نه مروی دې.(۲) او امام بخاری رحمه الله ددې ۲۲ ثلاثیات نه شل روایتونه دَ امام ابوحنیفه رحمه الله شاګردانونه یا دَ شاګردانودَ شاګردانوه اخستې دی. شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله لامع الدراری کښې لیکی:

**ولایدرون أن العشرین منها عن تلامذة الامام أبی حنیفة أو تلامذة، فانه أخرج منها إحدی عشرة روایة عن مکی بن إبراهیم... وأخرجه البخاری الستة عن أبی عاصم النبیل ضحاك بن مخلد.... وأخرج ثلثة عن محمد بن عبدالله الانصاری.**

دَ کلام خلاصه داشوه چه ثلاثیات دَعلم حدیث یوه ډیر لوئی نوع شمیرلې کیږی ځکه چه دَ راوی حدیث او رسول الله ﷺ په مینځ کښې صرف درې واسطې وی په دوی کښې صحابه کرام خو ټول عدول دی او تابعین او تبع تابیعن دا ټول دَ خیرالقرون حضرات دی. علماءکرامو په ثلاثیات باندې مستقل کتابونه او شروحات لیکلی دی. دا ثلاثیات دَ محدثین حضرات مابه الافتخار سرمایه ده او په بخاری شریف کښې لکه څنګه چه تیرشو ۲۲ احادیث دَ ثلاثیات نه دی دکومو چه په عام توګه زمونږ په متداوله نسخوکښې په جلی حروف کښې خودنه کړې شوې ده.

نورحضرت شیخ الحدیث حضرت مولانامکریا کاندهلوی رحمه الله خپل مقبول عام تصنیف تقریربخاری شریف کښې فرمائی: داخبره هم په ذهن کښې ساتئی چه فقه حنفی خودې نه هم مهتم بالشان ده ځکه چه هغه خو ثنائی ده یعنی په هغې کښې صرف یوه واسطه دَتابعی رحمه الله ده اودویمه دَ صحابی رضی الله عنه ځکه چه امام ابوحنیفه رحمه الله په مسلمه توګه باندې رویة تابعی دې او دَ احنافو په نیز خو روایةً هم تابعی دې. بعض روایاتوکښې څه زیاتی واسطې هم راځی لیکن هغه جزوی دی ګنی په کلی توګه ثنائی دې. لهذا که دَامام بخاری رحمه الله یا نورو حضراتو په زمانه کښې راتلو سره یوروایت ضعیف کیږی هم نو په دې سره دا لازم نه راځی چه دَحضرت امام اعظم رحمه الله په زمانه کښې به هم هغه روایت ضعیف پاتې وی. بیاهم که څوك په یوتابعی یا تبع تابعی باندې څه اشکال اوکړی نودَاحنافو جواب دَ یوکلیه په شکل کښې دادې چه حضرت امام صاحب رحمه الله یقیناً خپل استاذ زیات پیژندلو. بیا داخبره هم یاد ساتئی چه دَ بخاری شریف ۲۲ ثلاثیات کښې دَ شلو استاذ خو حنفی دې اودَ دوو متعلق په کتب رجال کښې معلومات ملاؤنه شو چه حنفی دی که شافعی. ان شاء الله هم حنفی به وی.

...........

(۱) لامع الدراری:۲۹/۱کشف الظنون:۴۳۰/۱ شرح ثلاثیات البخاری ص:۲۰.

(۲) الثلاثیات فی الحدیث النبوی ص:۵۸ مکتبه حنفیه.

# مصادر و مراجع


۱۔ القرآن الکریم

۲۔ الآحاد و المثانی ، الامام الحافظ ابو بکر احمد بن عمرو بن ابی عاصم الشیبانی ، رحمه الله ، المتوفی ۲۸۷ھ ، دار الکتب العلمیة ، بیروت۔

۳۔ الابواب والتراجم لصحیح البخاری ، شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا الکاندھلوی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفیٰ ۱۴۰۲ھ / ۱۹۸۲م ، ایچ ایم سعید کمپنی ، کراچی۔

۴۔ الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان ، امام ابو حاتم محمد بن حبان ، بستی رحمه الله تعالیٰ ، متوفیٰ ۳۵۴ ، مؤسسة الرسالة بیروت۔

۵۔ احکام القرآن ، امام ابو بکر احمد بن علی رازی جصاص ، رحمه الله ، متوفیٰ ۳۷۰ ، دار الکتاب العربی بیروت ، و دار الکتب العلمیة بیروت ، الطبعة الثانیة ۱۴۲۴ھ۔

۶۔ احکام القرآن ، الامام ابو بکر محمد بن عبدالله المعروف بابن العربی ، رحمه الله ، المتوفیٰ ۵۴۳ھ ، دار الکتب العلمیة بیروت ، الطبعة الثانیة ۱۴۲۴ھ۔

۷۔ احکام القرآن ، تالیف جماعة من العلماء الربانیین ، علی ضوء ما افاده حکیم الامة اشرف علی التھانوی ، رحمه الله ، ادارة القرآن والعلوم الاسلامیة ، کراتشی ، الطبعة الاولیٰ ۱۴۱۳ھ۔

۸۔ احیاء علوم الدین امام محمد بن محمد الغزالی رحمه الله تعالیٰ متوفیٰ ۵۰۵ھ دار احیاء التراث العربی بیروت

۹۔ اخبار المدینة ، الامام ابو زید عمر بن شبة النمیری البصری ، رحمه الله ، المتوفی ۲۶۳ھ ، دار الکتب العلمیة ، بیروت ، ۱۴۱۷ھ۔

۱۰۔ اخبار مکة فی قدیم الدهر و حدیثه ، الامام ابو عبد الله محمد بن اسحاق المکی الفاکهی ، رحمه الله ، المتوفی ۲۷۲ھ ، دار خضر ، بیروت ۱۴۱۴ ، الطبعة الثانیة۔

۱۱۔ ارشاد الساری شرح صحیح البخاری ، ابو العباس شهاب الدین احمد القسطلانی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفیٰ ۹۲۳ھ ، المطبعة الکبریٰ الامیریة ، مصر ، طبع سادس ۱۳۰۴ھ۔

۱۲۔ الاسامی و الکنی ، الامام ابو عبد الله احمد بن حنبل الشیبانی ، رحمه الله ، المتوفی ۲۴۱ھ ، مکتبة دار الاقصی ، الکویت ، الطبعة الاولیٰ ۱۴۰۶ھ۔

۱۳۔ الاستذکار الجامع لمذاهب فقهاء الامصار و علماء الاقطار ـــ ، ابو عمر یوسف بن عبد الله بن محمد بن عبد البر ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفیٰ ۴۶۳ھ ، دار احیاء التراث العربی بیروت ، الطبعة الاولیٰ ۱۴۲۱ھ۔

۱۴۔ الاستیعاب فی اسماء الاصحاب (بهامش الاصابة) ، ابو عمر یوسف بن عبدالله بن محمد بن عبد البر ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفیٰ ۴۶۳ھ ، دار الفکر بیروت ، و مطبوع فی مجلدین ، الطبعة الاولیٰ ۱۴۲۳ھ۔

۱۵۔ اسد الغابة فی معرفة الصحابة ، عز الدین ابو الحسین علی بن محمد الجزری المعروف بابن الاثیر ، رحمه الله تعالیٰ ، المتوفیٰ ۶۳۰ھ ، دار الکتب العلمیة بیروت۔

۱۶۔ الاشباه والنظائر مع شرحه للحموی ، العلامة زین الدین بن ابراهیم المعروف بابن نجیم الحنفی ، رحمه الله ، المتوفی ۹۷۰ھ ، ادارة القرآن و العلوم الاسلامیة ، کراتشی۔

۱۷۔ اشعة اللمعات۔

۱۸۔ اعلام الحدیث ۔ امام ابو سلیمان حمد بن محمد الخطابی ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۳۸۸ ھ ۔ مرکز احیاء التراث الاسلامی ۔ جامعۃ ام القریٰ ۔ مکۃ مکرمۃ ۔
۱۹۔ اعلاء السنن ۔ علامہ ظفر احمد عثمانی ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۱۳۹۴ ھ ۔ ادارۃ القرآن کراچی ۔
۲۰۔ اکمال تہذیب الکمال ۔ العلامۃ الہمام علاء الدین مغلطای بن قلیج الحنفی ۔ رحمہ اللہ ۔ المتوفی ۷۶۲ ھ ۔ الفاروق الحدیثۃ للطباعۃ و النشر ۔ الطبعۃ الاولی ۱۴۲۲ ھ ۔
۲۱۔ الاکمال فی رفع الارتیاب عن المؤتلف و المختلف فی الاسماء والکنی و الانساب ۔ الامیر الحافظ ابن ماکولا ۔ رحمہ اللہ ۔ المتوفی ۴۷۵ ھ ۔ دائرۃ المعارف العثمانیۃ ۔ الہند ۔
۲۲۔ اکمال المعلم شرح صحیح المسلم ۔ العلامۃ القاضی ابو الفضل عیاض الیحصبی ۔ رحمہ اللہ ۔ المتوفی ۵۴۴ ھ
۲۳۔ اکمال اکمال المعلم شرح صحیح المسلم ۔ ابو عبد اللہ محمد بن خلفۃ الوشتانی الابی المالکی ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ المتوفی ۸۲۷ ھ ۔ او ۸۲۸ ۔ دار الکتب العلمیۃ ۔ بیروت ۔
۲۴۔ الام (انظر کتاب الام) ۔
۲۵۔ الانساب ۔ ابو سعد عبد الکریم بن محمد بن منصور السمعانی ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۵۶۲ ھ ۔ دار الجنان ۔ بیروت ۔ طبع اول ۱۴۰۸ ھ / ۱۹۸۸ م ۔
۲۶۔ اوجز المسالک الیٰ مؤطا مالک ۔ شیخ الحدیث حضرت مولانا زکریا کاندھلوی ۔ رحمہ اللہ ۔ متوفی ۱۴۰۲ ھ ۔ مطابق ۱۹۸۲ م ۔ دار القلم ۔ دمشق ۔ الطبعۃ الاولیٰ ۱۴۲۴ ھ ۔
۲۷۔ اوزان شرعیہ ۔ مفتی محمد شفیع صاحب رحمہ اللہ تعالیٰ ۔
۲۸۔ البحر الرائق شرح کنز الدقائق ۔ العلامہ بن نجیم المصری الحنفی ۔ رحمہ اللہ ۔ المتوفیٰ ۹۷۰ ھ ۔ دار الکتب العلمیۃ ۔ بیروت ۔
۲۹۔ بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ۔ ملک العلماء علاء الدین ابو بکر بن مسعود الکاسانی ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۵۸۷ ھ ۔ دار الکتب العلمیۃ ۔ بیروت ۔
۲۹۔ بدایۃ المجتہد ۔ علامہ قاضی ابو الولید محمد بن احمد بن رشد القرطبی ۔ متوفیٰ ۵۹۵ ھ ۔ مصر طبع خاص ۔ ودار الکتب العلمیۃ ۔ بیروت ۔ الطبعۃ الثانیۃ ۱۴۲۴ ھ ۔
۳۰۔ البدایۃ و النہایۃ ۔ حافظ عماد الدین ابو الفداء اسماعیل بن عمر المعروف بابن کثیر ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۷۷۴ ھ ۔ مکتبۃ المعارف بیروت ۔ طبع ثانی ۱۹۷۷ م ۔
۳۱۔ البدر الساری حاشیۃ فیض الباری ۔ حضرت مولانا بدر عالم میرٹھی صاحب ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۱۳۸۵ ھ ۔ ربانی بکڈپو دہلی ۔ ۱۹۸۰ م ۔
۳۲۔ بذل المجہود فی حل ابو داؤد ۔ علامہ خلیل احمد سہارنپوری ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۱۳۴۶ ھ ۔ مطبعۃ ندوۃ العلماء لکھنؤ ۱۳۹۳ ھ / ۱۹۷۳ م و مرکز الشیخ ابی الحسن الندوی ۔ یوپی ۔ الہند ۔ الطبعۃ الاولیٰ ۱۴۲۷ ھ ۔
۳۳۔ البنایۃ شرح الہدایۃ ۔ العلامۃ بدر الدین عینی محمود بن احمد ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۸۵۵ ھ ۔ دار الکتب العلمیۃ ۔ بیروت ۔ الطبعۃ الاولیٰ ۱۴۲۰ ھ و مکتبہ حقانیہ ملتان ۔
۳۴۔ تاج العروس من جواہر القاموس ۔ ابو الفیض سید محمد بن محمد المعروف بالمرتضیٰ الزبیدی ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۱۲۰۵ ھ ۔ دار مکتبۃ الحیاۃ ۔ بیروت و دار الہدایۃ ۔
۳۵۔ تاریخ الاسلام اردو ۔ مولانا اکبر شاہ نجیب آبادیؒ ۔ نفیس اکیڈمی ۔ اردو بازار کراچی ۔

٣٦۔ تاریخ الامم و الملوک (تاریخ الطبری)، الامام ابو جعفر محمد بن جریر الطبری، رحمہ اللہ، المتوفی ٣١٠ھ، دار الکتب العلمیة، بیروت، الطبعة الثالثة، ١٤٢٦ھ۔

تاریخ الاسلام ووفیات المشاهیر والاعلام، حافظ ابو عبد اللہ شمس الدین محمد بن احمد الذهبی رحمة اللہ علیہ، متوفی ٧٤٨ھ، دار الکتب العلمیة۔

٣٧۔ تاریخ بغداد او مدینة السلام، حافظ احمد بن علی المعروف بالخطیب البغدادی، رحمہ اللہ تعالیٰ، متوفیٰ ٤٦٣ھ، دار الکتاب العربی بیروت۔

تاریخ الطبری، انظر (تاریخ الامم و الملوک)۔

٣٨۔ تاریخ عثمان بن سعید الدارمی، المتوفی ٢٨٠ھ، عن ابی زکریا یحیی بن معین، المتوفی ٢٣٣ھ، دار المامون للتراث، ١٤٠٠ھ۔

٣٩۔ التاریخ الصغیر، امیر المؤمنین فی الحدیث محمد بن اسماعیل البخاری، رحمہ اللہ تعالیٰ، متوفیٰ ٢٥٦ھ، دار المعرفة بیروت۔

٤٠۔ التاریخ الکبیر، امیر المؤمنین فی الحدیث محمد بن اسماعیل البخاری، رحمہ اللہ تعالیٰ، متوفیٰ ٢٥٦ھ، دار الکتب العلمیة بیروت۔

تاریخ مدینة دمشق و ذکر فضلها و تسمیة من حلها من الاماثل، ابو القاسم علی بن الحسن ابن هبة اللہ الشافعی، رحمہ اللہ، المتوفی ٥٧١ھ، دار الفکر، بیروت ١٩٩٥م۔

٤٢۔ تحفہ اثنا عشریہ (فارسی)، شاہ عبدالعزیز محدث دہلوی، رحمہ اللہ، متوفی ١٢٣٩ھ، سہیل اکیڈمی، لاہور، پاکستان۔

٤٣۔ تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف، ابو الحجاج جمال الدین یوسف بن عبد الرحمن المزی، رحمہ اللہ تعالیٰ، متوفی ٧٤٢ھ، المکتب الاسلامی بیروت، طبع دوم ١٤٠٣ھ۔

٤٤۔ تحفة الباری بشرح صحیح البخاری، شیخ الحدیث زکریا بن محمد الانصاری، رحمہ اللہ تعالیٰ، المتوفیٰ ٩٢٦ھ، دار الکتب العلمیة بیروت، الطبعة الاولیٰ ١٤٢٥ھ۔

٤٥۔ تدریب الراوی بشرح تقریب النواوی، حافظ جلال الدین عبد الرحمن سیوطی رحمہ اللہ تعالیٰ، متوفیٰ ٩١١ھ، المکتبة العلمیة مدینہ منورہ۔

٤٦۔ تذکرة الحفاظ، حافظ ابو عبد اللہ شمس الدین محمد بن عثمان الذهبی، رحمہ اللہ تعالیٰ، متوفی ٩١١ھ، دائرة المعارف العثمانیة، الهند۔

٤٧۔ التصریح بما تواتر فی نزول المسیح، امام العصر، المحدث الکبیر محمد انور شاہ الکشمیری،، رحمہ اللہ تعالیٰ، المتوفی ١٣٥٢ھ، مکتبہ دار العلوم کراتشی۔

٤٨۔ التعلیق الممجد المطبوع مع المؤطا لمحمد، ابو الحسنات محمد عبد الحی اللکنوی، رحمہ اللہ تعالیٰ، المتوفی ١٣٠٤ھ، قدیمی کتب خانہ کراتشی۔

٥٠۔ تعلیقات علی بذل المجهود، شیخ الحدیث محمد زکریا کاندهلوی، رحمہ اللہ تعالیٰ، المتوفی ١٤٠٢ھ، المکتبة التجاریة ندوة العلماء لکهنؤ الطبعة الثالثة ١٣٩٣ھ/ ١٩٧٣م و مرکز الشیخ ابی الحسن الندوی، الهند

٥١۔ تعلیقات علی تحریر تقریب التهذیب الدکتور بشار عواد معروف و الشیخ شعیب ارنؤوط، حفظهما اللہ، مؤسسة الرسالة، بیروت، الطبعة الاولیٰ ١٤١٧ھ۔

٥٢ـ تعليقات على تهذيب التهذيب، المطبوع بذيل تهذيب التهذيب۔
٥٣ـ تعليقات على الكاشف للذهبي، شيخ محمد عوامة / شيخ احمد محمد نمر الخطيب حفظهما الله، مؤسسة دار القبلة / مؤسسة علوم القرآن، الطبعة الاولى ١٤١٣ھ۔
٥٥ـ تعليقات على كوكب الدرى، مولانا شيخ الحديث مولانا محمد زكريا الكاندهلوى، رحمه الله تعالىٰ، المتوفىٰ ١٤٠٢ھ۔
٥٦ـ تعليقات على لامع الدرارى، شيخ الحديث مولانا محمد زكريا الكاندهلوى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ١٤٠٢ھ / ١٩٨٢م، مكتبه امداديه، مكه مكرمه۔
٥٧ـ تعليقات على المصنف، الشيخ محمد عوامه، حفظه الله ورعاه، ادارة القرآن والعلوم الاسلامية، كراتشي، الطبعة الثانية، ١٤٢٨ھ۔
٥٩ـ تغليق التعليق، حافظ احمد بن على المعروف بابن حجر رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ٨٥٢ھ، المكتب الاسلامى، ودار عمار، والمكتبة الاثرية، لاهور، پاكستان۔
٦٠ـ تفسير آيات الاحكام من القرآن، الشيخ محمد على الصابونى، حفظه الله و رعاه، دار الكتب العلمية، بيروت، الطبعة الاولىٰ، ١٤٢٥ھ۔
٦١ـ تفسير البغوى المسمى بمعالم التنزيل، الامام ابو محمد الحسين بن مسعود البغوى، رحمه الله، المتوفى ٥١٦ھ، دار المعرفة، بيروت۔
٦٣ـ تفسير الطبرى (جامع البيان)، امام محمد بن جرير الطبرى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٣١٠ھ، دار المعرفة، بيروت۔
تفسير عثمانى، لشيخ الاسلام علامه شبير احمد عثمانى رحمة الله عليه۔
٦٥ـ تفسير القرآن العظيم، حافظ ابو الفداء عماد الدين اسماعيل بن عمر ابن كثير دمشق، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ٧٧٤ھ، دار احياء الكتب العربية۔
٦٦ـ تفسير القرطبى (الجامع لاحكام القرآن)، امام ابو عبد الله محمد بن احمد الانصارى القرطبى، رحمه الله تعالىٰ متوفى ٦٧١ھ، دار الفكر، بيروت۔
٦٧ـ التفسير الكبير، (تفسير الرازى او مفاتيح الغيب)، الامام ابو عبدالله فخر الدين محمد بن عمر الرازى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٦٠٦ھ، مكتب الاعلام الاسلامى، ايران۔
٦٩ـ تفسير النسفى (مدارک التنزيل و حقائق التاويل)، ابو البركات عبد الله بن احمد النسفى، رحمه الله، المتوفى ٧١٠ھ، المكتبة العلمية، لاهور، پاكستان۔
٧٠ـ تقريب التهذيب، حافظ ابن حجر عسقلانى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ٨٥٢ھ، دار الكتب العلمية، بيروت، الطبعة الاولىٰ ١٤١٣ھ۔
٧١ـ تقرايرات الرافعى المسماة: التحرير المختار لرد المحتار، الامام العلامة عبد القادر بن مصطفى البيسارى الرافعى الحنفى، رحمه الله، المتوفى ١٣٢٣ھ، مكتبه رشيديه، كوئٹه۔
٧٢ـ التقرير و التحرير فى علم الاصول، الجامع بين اصطلاحى الحنفية و الشافعية، ابن امير الحاج، رحمه الله، المتوفى ٨٧٩ھ، دار الفكر، بيروت، الطبعة الاولىٰ ١٤١٧ھ۔
٧٣ـ تكملة فتح الملهم، مولانا محمد تقى عثمانى صاحب مدظلهم، مكتبه دار العلوم كراچى و دار احياء التراث العربى، بيروت، الطبعة الاولىٰ ١٤٢٦ھ۔

٧٤- التلخیص الحبیر فی تخریج احادیث الرافعی الکبیر ، حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله ، متوفی ٨٥٢ ھ ، دار نشر الکتب الاسلامیة لاهور ، و دار الکتب العلمیة ، بیروت ١٣١٩ ھ۔

٧٥- تلخیص المستدرک (مع المستدرک) ، حافظ شمس الدین محمد بن احمد عثمان ذهبی رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ٧٤٨ ھ ، دار الفکر بیروت۔

٧٦- التمهید لما فی المؤطا من المعانی و الاسانید ، حافظ ابو عمر یوسف بن عبد الله بن محمد عبد البر مالکی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ٤٦٣ ھ ، المکتبة التجاریة ، مکة المکرمة۔

٧٧- تنزیه الشریعة المرفوعة عن الاحادیث الشنیعة الموضوعة ، الامام ابو الحسن علی بن محمد ابن عراق الکنانی ، رحمه الله تعالیٰ ، المتوفی ٩٦٣ ھ ، دار الکتب العلمیة بیروت ، الطبعة الثانیة ١٤٠١ ھ۔

٨٠- تهذیب الاسماء و اللغات ، امام محی الدین ابو زکریا یحیی بن شرف النووی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ٦٧٦ ھ ، ادارة الطباعة المنیریة۔

٨١- تهذیب تاریخ دمشق الکبیر ، الامام الحافظ ابو القاسم علی المعروف بابن عساکر الشافعی ، رحمه الله ، المتوفی ٥٧١ ھ ، دار المسیرة ، بیروت ، الطبعة الثانیة ١٣٩٩ ھ۔

٨٢- تهذیب التهذیب ، حافظ ابن حجر عسقلانی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ٨٥٢ ھ ، دائرة المعارف النظامیة ، حیدر آباد دکن ١٣٢٥ ھ۔

٨٣- تهذیب سنن ابی داود ، الامام ابن قیم الجوزیة ، رحمه الله ، المتوفی ٧٥١ ھ ، مطبعة انصار السنة المحمدیة ، ١٣٦٧ھ۔

٨٤- تهذیب الکمال ، حافظ جمال الدین ابو الحجاج یوسف بن عبد الرحمن مزی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ٧٤٢ ھ ، مؤسسة الرسالة ، طبع اول ، ١٤١٣ ھ۔

٨٥- الثقات (کتاب الثقات) ، حافظ ابو حاتم محمد بن حبان بستی ، رحمه الله ، متوفی ٣٥٤ ھ ، دائرة المعارف العثمانیة ، حیدر آباد ، ١٣٩٣ ھ۔

٨٦ - جامع الاصول من حدیث الرسول ، علامه مجد الدین ابو السعادات المبارک بن محمد بن الاثیر الجزری ، رحمه الله ، متوفی ٦٠٦ ھ ، دار الفکر ، بیروت۔

٨٧- جامع الترمذی ، (سنن ترمذی) ، امام ابو عیسیٰ محمد بن عیسیٰ بن سورة الترمذی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ٢٧٩ ھ ، سعید کراچی / دار احیاء التراث العربی۔

٨٨- الجامع الصغیر من احادیث البشیر النذیر ، الامام جلال الدین السیوطی ، رحمه الله ، المتوفی ٩١١ ھ ، دار الکتب العلمیة ، بیروت۔

الجامع لاحکام القرآن (تفسیر القرطبی)۔

٨٩- جامع المسانید و السنن ، الامام الحافظ عبد الرحمن بن ابی حاتم الرازی ، رحمه الله ، المتوفی ٧٧٤ ھ ، دار الفکر ، بیروت ، الطبعة الثانیة ، ١٤٢٢ ھ۔

٩٠- الجرح والتعدیل ، الامام الحافظ عبد الرحمن بن ابی حاتم الرازی ، رحمه الله تعالیٰ ، المتوفی ٣٢٧ ھ ، دار الکتب العلمیة ، بیروت ، الطبعة الثانیة ، ١٤٢٢ ھ۔

٩١۔ الجمع بين الصحيحين: البخارى و مسلم، الامام محمد بن الفتوح الحميدى، رحمه الله، المتوفى ٤١٩ھ، دار ابن حزم، بیروت، الطبعة الثانية، ١٤٢٣ھ۔
٩٢ جمع الجوامع (الجامع الكبير و الجامع الصغير و زوائده) الامام جلال الدين السيوطى، رحمه الله، المتوفى ٩١١ھ، دار الكتب العلمية، بيروت، الطبعة الاولى ١٤٢١ھ۔
٩٨۔ حاشية السندى على البخارى، امام ابو الحسن نور الدين محمد بن عبد الهادى السندى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ١١٣٨ھ، دار المعرفة، بيروت۔
٩٩۔ حاشية السندى على مسلم، المطبوع مع صحيح مسلم، الامام ابو الحسن السندى، رحمه الله، متوفى ١١٣٨ھ، قديمى كتب خانه كراتشى۔
١٠٠۔ حاشية السهارنفورى، المطبوع مع صحيح البخارى، مولانا احمد على السهارنفورى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ١٢٩٧ھ، طبع قديمى۔
الحدود و الاحكام، للبسطامى رحمة الله عليه۔
١٠٢۔ الخصائص الكبرى، الامام جلال الدين السيوطى، رحمه الله تعالىٰ، ٩١١ھ، دار الكتب العلمية، بيروت۔
١٠٣۔ خصائل نبوى شرح شمائل ترمذى (اردو) شيخ الحديث محمد زكريا كاندهلوى، رحمه الله، متوفى ١٤٠٢ھ
١٠٤۔ الدر المختار، علامه علاء الدين محمد بن على بن محمد الحصكفى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ١٠٨٨ھ، مكتبه عارفين، پاكستان چوک كراتشى۔
الدراية فى تخريج احاديث الهداية، لابن حجر رحمة الله عليه۔
١٠٨۔ دلائل النبوة، الحافظ ابو بكر احمد بن الحسين بن على البيهقى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٤٥٨ھ، مكتبه اثريه، لاهور۔
١٠٩۔ الديباج على صحيح مسلم بن الحجاج، ابو الفضل عبد الرحمن بن ابى بكر جلال الدين السيوطى، رحمه الله، المتوفى ٩١١ھ، ادارة القرآن كراتشى، الطبعة الاولى، ١٤١٢ھ۔
١١١۔ ذخائر المواريث فى الدلالة على مواضع الحديث، العلامة عبد الغنى بن اسماعيل بن عبد الغنى النابلسى، رحمه الله، متوفى ١١٤٣ھ، دار المعرفة، بيروت۔
١١٢۔ رد المحتار، علامه محمد امين بن عمر بن عبد العزيز عابدين شامى، رحمه الله، متوفى ١٢٥٢ھ، مكتبه رشيديه، كوئٹه۔
١١٣۔ رسالة شرح تراجم ابواب البخارى، (مطبوعه مع صحيح البخارى)، حضرت مولانا شاه ولى الله، رحمه الله، متوفى ١١٧٦ھ، قديمى۔
روائع البيان (انظر تفسير آيات الاحكام)۔
١١٥۔ روح المعانى فى تفسير القرآن العظيم و السبع المثانى، ابو الفضل شهاب الدين سيد محمود آلوسى بغدادى، رحمه الله تعالىٰ، متوفىٰ ١٢٧٠ھ، مكتبه امداديه، ملتان۔
١١٦۔ زاد المعاد من هدى خير العباد، حافظ شمس الدين ابو عبد الله بن ابى بكر المعروف بابن القيم، رحمه الله، متوفى ٧٥١ھ، مؤسسة الرسالة۔

١١٨ـ سبل السلام شرح بلوغ المرام ، السيد الامام محمد بن اسماعيل الصنعانى المعروف بالامير ، رحمه الله ، المتوفى ١١٨٢ھ ، دار احياء التراث العربى ، بيروت ، الطبعة الخامسة ـ
١١٩ـ سنن ابن ماجه ، امام ابو عبد الله محمد بن ماجه ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٢٧٣ھ ، قديمى / دار الكتاب المصرى قاهره ،
١٢٠ـ سنن ابى داؤد ، امام ابو داؤد سليمان بن الاشعث السجستانى ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٢٧٥ھ ، ايچ ايم سعيد كمپنى / دار احياء السنة النبوية ـ
١٢١ـ سنن الدار قطنى ، حافظ ابو الحسن على بن عمر الدارقطنى ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٣٨٥ھ ، دار نشر الكتب العلمية ، بيروت ، الطبعة الثانية ، ١٤٢٢ھ / ٢٠٠٢م ـ
١٢٢ـ سنن الدارمى ، امام ابو محمد عبد الله بن عبد الرحمن الدارمى ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٢٥٥ھ ، قديمى
١٢٣ـ سنن سعيد بن منصور ، الامام الحافظ سعيد بن منصور بن شعبة الخراسانى المكى ، رحمه الله ، المتوفى ٢٢٧ھ ، دار الكتب العلمية ، بيروت ـ
١٢٤ـ السنن الصغرىٰ للنسائى ، امام ابو عبد الرحمن بن شعيب النسائى ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٣٠٣ھ ، قديمى / دار السلام رياض ـ
١٢٥ـ السنن الكبرىٰ للنسائى ، امام ابو عبد الرحمن احمد بن شعيب النسائى ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٣٠٣ھ ، نشر السنة ، ملتان ـ
١٢٦ـ السنن الكبرى للبيهقى ، امام حافظ ابو بكر احمد بن الحسين بن على البيهقى ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٤٥٨ھ ، دار الكتب العلمية بيروت ـ
١٢٧ـ سير اعلام النبلاء ، حافظ ابو عبد الله شمس الدين محمد بن احمد بن عثمان ذهبى ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٧٤٨ھ ، مؤسسة الرسالة ، و بيت الافكار الدولية ـ
السير الكبير (انظر كتاب السير الكبير) ـ
١٢٨ ـ السيرة الحلبية (انسان العيون) ، علامه على بن برهان الدين الحلبى ، رحمه الله ، المتوفى ١٠٤٤ھ ، المكتبة الاسلامية ، بيروت ـ
١٢٩ ـ السيرة النبوية ، الامام ابو محمد عبد الملك بن هشام المعافرى ، رحمه الله ، متوفى ٢١٣ھ ، مطبعة مصطفى البابى الحلبى بمصر ، ١٣٥٥ھ ، والمكتبه العلمية ، بيروت ـ
١٣٠ ـ شرح علل الترمذى ، الامام الحافظ ابن رجب الحنبلى ، رحمه الله ، المتوفى ٧٩٥ھ ـ
١٣١ ـ الشرح الكبير ، للإمام الدردير المالكى ، رحمه الله ، المتوفى ١٢٠١ھ ، المطبوع من حيث المتن مع حاشية الدسوقى ، رحمه الله ، دار الكتب العلمية ، بيروت ـ
١٣٢ ـ شرح التوضيح (التلويح) ، العلامة سعد الدين التفتازانى الشافعى ، رحمه الله ، المتوفى ٧٩٣ھ ، مير محمد كتب خانه ، كراچى ـ
١٣٣ـ شرح ابن بطال ، امام ابو الحسن على بن خلف بن عبد الملك المعروف بابن بطال ، رحمه الله تعالىٰ ، متوفىٰ ٤٤٩ھ ، مكتبه الرشد ، الرياض ، الطبعة الاولىٰ ، ١٤٢٠ھ ـ
١٣٤ـ شرح الزرقانى على الموطا ، شيخ محمد بن عبد الباقى بن يوسف الزرقانى المصرى ، رحمه الله ، متوفى ١١٢٢ھ ، دار الفكر ، بيروت ـ

